تذکرہ اولیائے پاکستان افغانستان

دمشرق او مغربی پاکستان مشاهیر
اولیاء الله او عالمانو حالات

# روحانی رابطه

او

# روحانی ترون

جلد اول


مؤلف
عبدالحلیم اثرؔ افغانی



مکتبہ حضرت سید نجات قلندر علیہ الرحمہ
قریہ ھونی سیدان

# تذکرہ اولیائے پاکستان افغانستان

دمشرق اومغربی پاکستان مشاهیر
اولیاء الله اوعالمانو حالات

# روحانی رابطه

او

# روحانی ترون

مؤلف
عبدالحلیم اثر افغانی

ناشر
مکتبہ حضرت سید نجات قلندر علیہ الرحمہ قریہ هونی سیدان

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# روحانی رابطہ
او
# روحانی تړون

تالیف ____ عبدالحلیم اثرؔ افغانی

ژبه ____ پښتو

کتابت ____ مولوی محمد گل سعید مزاری

ناشر

مکتبہ حضرت سید نجات قلندر علیہ الرحمہ قریہ ھونی سیدان

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

الحمدلله رب العٰلمین الرحمٰن الرّحیم o
ملک یوم الدین o ایاک نعبد وایاک
نستعین o اهدنا الصراط المستقیم o
صراط الذین انعمت علیهم o غیر
المغضوب علیهم ولاالضآلین o

( آمین )

وانما یخشی الله من عباده العلماؤ ط

الا ان اولیاء الله لاخوف علیهم ولاهم یحزنون

ولاتقولولمن یقتل فی سبیل اموات ط بل احیاء ولکن لاتشعرون

الله ولی الذین امنوا ویخرجهم من الظلمات الیٰ النور

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه ونور عرشه محمدوآله واصحابه اجمعین

# اولیاءُ الله

( فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَا آتَيْنَاهُ رَحْمَةً مِّنْ عِندِنَا وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا )

که نظر کا څوک په کار د درویشانو     خود به ووینی وقار د درویشانو

په دعا لاړې به ورشی خدای رسول ته     که څوک یون کاندی په لار د درویشانو

هر گفتار یې د خدای په در قبول وی     چه قبول یې وی گفتار د درویشانو

هسې گرم بازار بل په جهان نشته     لکه گرم دے بازار د درویشانو

په یوه قدم تر عرشه پورې رسی     ما لیدلے دے رفتار د درویشانو

ډېره خلق یې زیارت کا پس له مرګه     چه بازار وی په مزار د درویشانو

بادشاهان دد ے دنیا واړه پراته وی     لکه خاورې په دربار د درویشانو

هر بهار لره خزان په جهان شته دے     خزان نه لری بهار د درویشانو

د جنت د باغ گلونه به یې هېر وی     که څوک او وینی گلزار د درویشانو

په دنیا یې کړه د خدای د پاره ترکه     صد رحمت شه په روزگار د درویشانو

د قارون وحال ته گوره حال یې څه شو     راشه مه کوه انکار د درویشانو

په هر چا چه د غضب لیندۍ کا کشه     خطا نه درومی گذار د درویشانو

درست دیوان د رحمن زار تر دا غزل شه

چه بیان یې کړ وکردار د درویشانو

(عبد الرحمان بابا)

# فهرست


| نمبرشمار | عنوان | زمانه | صفحه |
|---|---|---|---|
| ۱ | فهرست د حوالې د کتابونو | | ۶ |
| ۲ | تشکر | | ۱۲ |
| ۳ | تړون | | ۲۶ |
| ۴ | دیباچه | | ۲۹ |
| ۵ | تقریظ د حافظ محمد ادریس مرحوم | ۹، ستمبر سنه ۱۹۶۳ء | ۳۸ |
| ۶ | تقریظ د محمد یونس سیټهي | ۱۰، اکتوبر سنه ۱۹۶۳ء | ۴۲ |
| ۷ | تقریظ د سید نصرمن الله مشوانی | ۱۶، اکتوبر سنه ۱۹۶۳ء | ۴۶ |
| ۸ | تقریظ د خان عبدالودود خان | ۱۳، نومبر سنه ۱۹۶۳ء | ۵۰ |
| ۹ | تقریظ د شیخ محمد حسین صاحب | ۲۵، نومبر سنه ۱۹۶۳ء | ۵۲ |
| ۱۰ | حضرت سنان ابن محبّق هُذلی المعروف په اصحاب بابا رضی الله عنه. شهید | سنه ۴۵ هـ | ۵۶ |
| ۱۱ | سید جلال بخاری گنج علم شهید | سنه ۳۹۲ هـ | ۶۴ |
| ۱۲ | مولانا علی ابن یوسف دلازاک | سنه ۳۹۳ هـ | ۶۸ |
| ۱۳ | حضرت داتا گنج بخش لاهوری | سنه ۴۸۵ هـ | ۷۱ |
| ۱۴ | حضرت مدیح بابا چشتی | سنه ۴۰۰ هـ | ۱۳۰ |
| ۱۵ | شیخ ابوبکر صالح | سنه هـ | ۱۳۵ |
| ۱۶ | حضرت اکوشور بابا نی خویشگی | سنه ۵۴۷ هـ | ۱۳۶ |
| ۱۷ | حضرت میران محی الدین شیخ عبدالقادر جیلانی | سنه ۵۶۲ هـ | ۱۴۵ |
| ۱۸ | حضرت سخی سرور سلطان | سنه ۵۷۷ هـ | ۱۵۸ |

| نمبر شمار | عنوان | زمانہ | صفحہ |
|---|---|---|---|
| ۱۹ | سلطان بختیار خلجی، مشرقی پاکستان | سنہ ۶۰۲ھ | ۱۶۳ |
| ۲۰ | سید امیر کبیر۔ سندھی | سنہ ۶۳۰ھ | ۱۷۲ |
| ۲۱ | شیخ شہاب الدین، سہروردی | سنہ ۶۳۲ھ | ۱۷۶ |
| ۲۲ | حضرت خواجہ معین الدین حسن چشتی | سنہ ۶۳۲ھ | ۱۸۰ |
| ۲۳ | حضرت سید مبارک غزنوی | سنہ ۶۳۲ھ | ۲۳۲ |
| ۲۴ | حضرت لعل شہباز قلندر سہروردی | سنہ ۶۵۰ھ | ۲۴۱ |
| ۲۵ | حضرت ابراہیم دانشمند انصاری | سنہ ۶۶۰ھ | ۲۴۵ |
| ۲۶ | حضرت شیخ بہاؤالدین ذکریا ملتانی | سنہ ۶۶۶ھ | ۲۴۹ |
| ۲۷ | خواجہ بابا فرید گنج | سنہ ۶۷۰ھ | ۲۶۱ |
| ۲۸ | حضرت جلال الدین میر سرخ بخاری | سنہ ۶۹۰ھ | ۲۷۴ |
| ۲۹ | اولیائے مشرقی پاکستان | ــــــــ | ۲۸۸ |
| ۳۰ | شیخ شرف الدین تواله | سنہ ۷۲۵ھ | ۲۹۹ |
| ۳۱ | شیخ جلال الدین تبریزی | سنہ ۷۴۳ھ | ۳۰۵ |
| ۳۲ | سلطان فخر الدین مبارک شاہ | سنہ ۷۴۷ھ | ۳۰۵ |
| ۳۳ | سلطان علاء الدین علیشاہ | سنہ ۷۴۷ھ | ۳۱۰ |
| ۳۴ | حاجی الیاس شاہ | سنہ ۷۵۱ھ | ۳۲۲ |
| ۳۵ | غیاث الدین اعظم شاہ | سنہ ۷۸۹ / ۸۰۱ھ | ۳۲۳ |
| ۳۶ | مولانا سراج الدین عطاء | سنہ ۷۱۵ھ | ۳۲۴ |
| ۳۷ | حضرت شیخ راجہ بیابانی | سنہ ۷۵۰ھ | ۳۲۹ |
| ۳۸ | عثمان اخی سراج | سنہ ۷۵۳ھ | ۳۳۱ |
| ۳۹ | شیخ علاء الحق | سنہ ۷۸۳ھ | ۳۳۴ |
| ۴۰ | حضرت مخدوم جہانیاں | سنہ ۷۸۸ھ | ۳۳۷ |

| نمبر شمار | عنوان | زمانہ | صفحہ |
|---|---|---|---|
| ۴۱ | خواجہ بہاء الدین نقشبندی | سنہ ۷۹۱ھ | ۳۶۰ |
| ۴۲ | حضرت بدر عالم زاہدی | سنہ ۷۹۴ھ | ۳۶۹ |
| ۴۳ | قاضی سراج الدین صدیقی | سنہ ۸۰۰ھ | ۳۷۹ |
| ۴۴ | نور قطب عالم | سنہ ۸۱۸ھ | ۳۸۴ |
| ۴۵ | حضرت پیر قتال زاہدی | سنہ ۸۲۱ھ | ۳۸۶ |
| ۴۶ | حضرت خواجہ محمد گیسودراز ثانی | سنہ ۸۲۵ھ | ۳۸۸ |
| ۴۷ | سید محمد گیسودراز اول | سنہ ۴۰۰ھ | ۳۸۸ |
| ۴۸ | سیدنا آدم بنوری | سنہ ۱۰۵۳ھ | ۴۰۳ |
| ۴۹ | سادات تارن | ـــــــ | ۴۰۵ |
| ۵۰ | سیدنا محمد طاہر الحسینی | سنہ ۴۰۰ھ | ۴۰۵ |
| ۵۱ | خواجہ یحییٰ کبیر غورغشتی | سنہ ۸۳۴ھ | ۴۰۷ |
| ۵۲ | شیخ صدر الدین صدر جہان | سنہ ۹۳۲ھ | ۴۱۵ |
| ۵۳ | حضرت سید علی ترمذی، پیربابا | سنہ ۹۹۱ھ | ۴۲۰ |
| ۵۴ | مولانا شیخ احمد سون | سنہ ۱۰۳۰ھ | ۴۴۷ |
| ۵۵ | حضرت سید پیر ابراہیم بخاری | سنہ ۱۰۳۳ھ | ۴۵۴ |
| ۵۶ | مولانا عبدالوہاب اخون پنجو بابا | سنہ ۱۰۴۰ھ | ۴۵۹ |
| ۵۷ | شیخ محمد طاہر بنگی | ״ | ۵۰۵ |
| ۵۸ | حضرت مولانا اخوند درویزہ | سنہ ۱۰۴۸ھ | ۵۰۹ |
| ۵۹ | شیخ سید خواجہ ذکریا | سنہ ۱۰۵۵ھ | ۵۴۳ |
| ۶۰ | اخوند محمد یونس گیلانی | سنہ ۱۰۵۹ھ | ۵۵۴ |
| ۶۱ | شیخ امام الدین خلیل | سنہ ۱۰۶۰ھ | ۵۶۲ |
| ۶۲ | حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب | سنہ ۱۰۶۳ھ | ۵۷۱ |

| نمبر شمار | عنوان | زمانہ | صفحہ |
|---|---|---|---|
| ۶۳ | شیخ حمید دانشمند (مشرقی پاکستان) | سنہ ۱۰۶۳ھ | ۵۹۰ |
| ۶۴ | شیخ حاجی بہادر کوہاٹی | سنہ ۱۰۷۸ھ یا ۱۰۹۰ | ۵۹۵ |
| ۶۵ | حضرت اخوند الیاس یوسفزائی | سنہ ۱۰۸۶ھ | ۶۱۲ |
| ۶۶ | حضرت شیخ حبیب پشاوری | سنہ ۱۰۹۳ھ | ۶۲۳ |
| ۶۷ | حضرت اخوند مامون یوسفزائی | سنہ ۱۰۹۹ھ | ۶۲۵ |
| ۶۸ | مولانا سعد اللہ خان وزیر آبادی | سنہ ۱۱۰۲ھ | ۶۲۷ |
| ۶۹ | مولانا شیخ سعدی لاہوری | سنہ ۱۱۰۸ھ | ۶۳۰ |
| ۷۰ | مولانا سید محمد قطب بنوری | سنہ ۱۱۰۸ھ | ۶۳۳ |
| ۷۱ | حضرت مولانا محمد اسماعیل غوری | سنہ ۱۱۱۱ھ | ۶۳۷ |
| ۷۲ | حضرت پیر سید حسن پشاوری | سنہ ۱۱۱۵ھ | ۶۳۹ |
| ۷۳ | حضرت شیخ عبد الغفور پشاوری | سنہ ۱۱۱۶ھ | ۶۴۸ |
| ۷۴ | حضرت میاں عبد الحئ سندھی | سنہ ۱۱۱۷ھ | ۶۵۴ |
| ۷۵ | حضرت اخوند میاں نعیم | سنہ ۱۱۲۱ھ | ۶۶۳ |
| ۷۶ | حضرت شیخ محمد یحییٰ داتک | سنہ ۱۱۳۱ھ | ۶۶۵ |
| ۷۷ | حضرت شیخ شہباز قلندر قادری | سنہ ۱۱۳۳ھ | ۶۷۵ |
| ۷۸ | حضرت شیخ شہباز مہمند | سنہ ۱۱۴۶ھ | ۶۷۷ |
| ۷۹ | حضرت شاہ محمد غوث قادری لاہوری | سنہ ۱۱۵۲ھ | ۶۷۸ |
| ۸۰ | حضرت میاں عبد الحکیم کاکڑ | سنہ ۱۱۵۳ھ | ۶۹۴ |
| ۸۱ | حضرت شاہ عبد الرحیم (مشرقی پاکستان) | سنہ ۱۱۵۸ھ | ۷۰۷ |
| ۸۲ | حضرت شیخ جنید پشاوری | سنہ ۱۱۶۲ھ | ۷۰۹ |
| ۸۳ | حضرت شاہ عبد اللطیف بھٹائی | سنہ ۱۱۶۵ھ | ۷۱۳ |
| ۸۴ | حضرت شیخ محمد مؤمن | سنہ ۱۱۸۲ھ | ۷۲۳ |

| نمبر شمار | عنوان | زمانه | صفحه |
|---|---|---|---|
| ۸۵ | حضرت میاں محمد عمر چمکنی | سنه ۱۱۹۰ھ | ۷۲۵ |
| ۸۶ | حضرت شیخ اخوند محمد نقشبندی | سنه ۱۱۹۱ھ | ۷۴۸ |
| ۸۷ | حضرت اخوند محمد صدیق پهلواڑیؒ | سنه ۱۱۹۵ھ | ۷۵۳ |
| ۸۸ | حضرت حافظ محمد صدیق بشوانیؒ | سنه ۱۱۹۸ھ | ۷۵۴ |
| ۸۹ | اخوند حافظ محمد، عمر زائےؒ | سنه ۱۲۰۶ھ | ۷۵۷ |
| ۹۰ | حضرت صوفی سید محمد دائمؒ (شرقی پاکستان) | سنه ۱۲۱۲ھ | ۷۵۹ |
| ۹۱ | اخوند سید شیر محمد فاروقی | سنه ۱۲۱۴ھ | ۷۶۱ |
| ۹۲ | حضرت حافظ عبد المقتدر، الپوریؒ | سنه ۱۲۱۵ھ | ۷۶۹ |
| ۹۳ | حضرت محمدی صاحبزاده، چمکنی | سنه ۱۲۲۰ھ | ۷۷۴ |
| ۹۴ | حضرت فضل احمد، معصومی | سنه ۱۲۳۲ھ | ۷۸۰ |
| ۹۵ | حضرت عبید الله میاں گل چمکنی | سنه ۱۲۳۳ھ | ۷۹۳ |
| ۹۶ | اخند زاده فیض الله | سنه ۱۲۳۴ھ | ۷۹۵ |
| ۹۷ | بابا فیض الله تیراهی | سنه ۱۲۳۵ھ | ۷۹۷ |
| ۹۸ | حضرت سید عبد الحکیم بخاری | سنه ۱۲۳۶ھ | ۸۰۲ |
| ۹۹ | حضرت سچل سرمست (سندهی) | سنه ۱۲۴۲ھ | ۸۰۵ |
| ۱۰۰ | حضرت سید احمد شهید بریلوی | سنه ۱۲۴۶ھ | ۸۱۳ |
| ۱۰۱ | حضرت شاه سلیمان تونسوی | سنه ۱۲۶۷ھ | ۸۴۳ |
| ۱۰۲ | حضرت نور محمد تیراهی | سنه ۱۲۶۸ھ | ۸۴۹ |
| ۱۰۳ | حضرت میاں مستجاب (قبایلی علاقه مهمند) | سنه ۱۲۷۵ھ | ۸۵۳ |
| ۱۰۴ | حضرت سید محمد امیر دکوٹهی | سنه ۱۲۹۴ھ | ۸۵۸ |
| ۱۰۵ | حضرت شیخ عبد الغفور دسوات | سنه ۱۲۹۵ھ | ۸۹۶ |
| ۱۰۶ | حضرت شاهؒ بابا صاحب دَ دیر | سنه ۱۳۱۲ھ | ۹۱۹ |

| نمبر شمار | عنوان | زمانہ | صفحہ |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱۰۷ | حضرت مولانا نجم الدینؒ ھڈے | سنہ ۱۳۱۹ھ | ۹۲۴ |
| ۱۰۸ | حضرت میاں فقیراللہ جلال آبادی | — | ۹۲۶ |
| ۱۰۹ | حضرت مولانا عبدالوہاب دمانکی | سنہ ۱۳۲۲ھ | ۹۳۱ |
| ۱۱۰ | حضرت مولانا محمد اسرائیل شہید | سنہ ۱۳۲۴ھ | ۹۴۰ |
| ۱۱۱ | حضرت خواجہ سید مہرعلی شاہ گیلانی | سنہ ۱۳۵۶ھ | ۹۵۱ |
| ۱۱۲ | حضرت پیر فضل واحد حاجی صاحب ترنگزائی | سنہ ۱۳۵۷ھ | ۹۵۸ |
| ۱۱۳ | حضرت سید میر آغا جان گیلانی | سنہ ۱۳۶۹ھ | ۹۸۰ |
| ۱۱۴ | حضرت سید بادشاہ جان | سنہ ۱۳۷۲ھ | ۹۹۱ |

# تشکر

الحمد لله رب العالمين والصلوٰة والسلام علیٰ نبیّه محمد واٰله واصحابه الطيّبين الطاهرين وعلیٰ عباده الصالحين، چه څما د تاليف «روحاني رابطه» او روحاني تړون» تکميل ته اورسيده. د ټولونه اول زۀ د الله تعالیٰ جلّ وعلیٰ شانه شکريه ادا کووم چه ماله ئې د خپلو نيکو بندګانو. عالمانو. بزرګانو. شهيدانو د تذکرے او سوانح حيات ليکلو توفيق راکړ. چه عامو مسلمانانو ورونړو ته ترینه فائده اورسيږي او څما د پاره د نيک بختئ موجب اوګرځيږي. بے شميره درود او سلام دےوی په روح پرفتوح د حضرت محمد مصطفیٰ صلی الله عليه وسلم او دهغوئ په آل او اصحابو ؓ باندے چه د هغوئ د روحاني فيوضاتو شفقت او مهربانئ په برکت د انيکبختي څما نصيب شوه. او دهغه ټولو اولياء الله درجے دے خدائ بلندے کړي چه د چا تذکره په دے کتاب کښں راغلے ده او که نه ده ليکن څما روحاني سرپرستي او رهنمائي ئې فرمائيلے ده- او په دے سلسله کښں په ظاهري او باطني دواړو طريقو سره بے شميره مهربانئ راسره کړي دي- د دے نه پس چه کومو رونړو او مشفق دوستانو چه د دے علمي. ادبي. تاريخي او تحقيقي روحاني تذکرے د تاليف او اشاعت په سلسله کښں په مختلفو طريقو سره څما امداد کړے دے. او څما حوصله افزائي ئې کړے ده. د هغوي شکريه ادا کول هم په ما لازم دي ځکه چه وَمَنْ لَمْ يَشْكُرِ النَّاسَ لَمْ يَشْكُرِ اللهَ - خدائ دے ټولو له نيک اجر ورکړي.

د ډیرے زمانے راسے د "اولیائے کرام" په موضوع به د ملک په مختلفو اخبارونو او رسالو کښې څما مضمونونه چاپ کیدل.
په مارچ سنه ۱۹۶۳ء کښې یوه ورځ څما عزیز ترین دوست او مشفق جناب محمد یونس سیټهي چشتي نظامي ډپټي ډائرکټر محکمه اطلاعات قبائل پیښور راته دا خبره راوړاندے کړله. چه دے خپلو مطبوعه مضامینو له د نورو اضافو سره که یو کتابي شکل ورکړے نو فائده به یے زیاته شي. او یو مستقل علمي او روحاني یادګار به پاتے شي.
د ښاغلي موصوف دا یو ډیر نیک تجویز وو. خدائے دے ورله د دے نیک اجر ورکړي. د حدیث شریف الفاظ هم داسے دي اَلدَّالُ عَلَی الْخَیْرِ کَفَاعِلِهٖ. د دوئ دا خبره څما زړه ته پریوته. او تر اګست سنه ۱۹۶۳ء م د مشرقي او مغربي پاکستان د یوڅو مشاهیرو (۴۲) اولیاء الله دوم حالات راجمع کړل چه د هغے نه پنځه سوه صفحاتو کتاب جوړیدلے شو. څه وخت چه دا مسوده م خپلو عالمانو او فاضلانو رونړو او دوستانو ته پیش کړله. چه هغوئ یے ملاحظه کړي. اصلاح او ترمیم پکښې اوکړي او ضروري مشورے راکړي. نو هغوئ د خپلو نیکو مشورو او هدایاتو سره سره دا کتاب ډیر زیات خوښ کړ ډیر تعریف یے اوکړ - او په ډیرو موزونو الفاظو کښې یے تقریظونه پرے اولیکل. چه روستو به ملاحظه کړے شي. کومو فاضلانو عالمانو - بزرګانو او ادیبانو چه دا مسوده ملاحظه کړے ده. په هغے کښې (۱) د قدوة السالکین حضرت لاله عبدالرحیم نیازي استاذ د فلسفه او الهیات د پیښور یونیورسټي (۲) حضرت آغا سید عنایت علي شاه ضیاء جعفري قادري چشتي (۳) آغا سید محمد امیر شاه ګیلاني قادري (۴) جناب سید محمد امین ګیلاني. قادري (خوګیاني) (۵)

جناب عبدالودود خان ریسرچ آفیسر دَ وزارت اطلاعات مرکزی حکومت پاکستان (۶) جناب محمد یونس سیٹھی چشتی نظامی.
(۷) جناب سید نصرمن الله مشوانی. (۸) او جناب محمد امین ماٹل ابن مولانا غازی سیف الرحمان الکوزی علیه الرحمة نوموته دَ یادولو دی.

په دے تقریظونوکښې یو تقریظ دَ سید حافظ محمد ادریس شهید هم دَ یے. چه دغه اولنے تقریظ دے. اودَ ټولو نه اول ما دا مسوّده حافظ شهید ته دَ ملاحظے دَ پاره حواله کړے وه. حافظ شهید ځما همدرس او همزولے وو. او ما ته دَ خپل رورنه کران وو. حافظ شهید چه دَ پیښور یونیورسټی دَ شعبه عربیه صدر وو. فاضل عالم او بے مثله ادیب وو. ځما په دوه نورو کتابونو (۱) "پښتو ادب" (۲) "تذکرهٔ د سید افغانی" هم هغه تقریظونه لیکلی دی. حافظ شهید به ځما په کتاب صرف تقریظ نه لیکلو بلکه ځما د کتاب ټوله مسوده به یٔے په خپل تیز او تند تنقید سره په بل مخ راته واړوله. او ما ته به یٔے دوباره مسودے له ترتیب ورکول را پغاره کړل. د دے کتاب سره هم حافظ شهید دغه شان سلوک کړے وو. او بیا چه دغه مسوده مې سباغلی محمد یونس چشتی ته د ملاحظے دَ پاره ورکړله نو هغوي پکښې هم دَ بے شمیره ترمیم او اضافے دَ پاره سبنودنے راته اوکړلے. او په دَ یے شان سره دَ کتاب مسوّدے له مې په دویم ځل نوے ترتیب ورکړ. او د کتابت دَ پاره مې کاتب ته حواله کړلو.

ځما په دے کتاب کښې دَ ټولو نه زیات تاریخي او تحقیقي مضمون دَ حضرت سید علی الهجویري المعروف په داتا گنج بخش لاهوري قدّس سِرّهٔ په حقله دَ یے. په دَ یے مضمون کښې دَ بعض حوالو دَ

زیات تحقیق د پاره په جنوري ۱۹۶۷ء کښې لاهور ته تلے وم هلته مې
د جناب شیخ محمد اکرام صاحب سي - ایس - پي چیف ایډمنسټریټر
محکمه اوقاف حکومت مغربي پاکستان سره په دے غرض ملاقات کړے
وو - چه موصوف لوي فاضل عالم مورخ او ادیب دے . د اسلامي تصوف
وسیع مطالعه لري . "رود کوثر" "آب کوثر" "موج کوثر" د هغوي د اسے
قابل قدر تالیفات دي چه تر ابده به د دوي د علمي فضیلت یادګار پاتے
وي - د سنه ۱۹۳۴ء راسے د موصوف سره زما ادبي تعلق موجود دے - او ډیر
شفقت راسره فرمائي . خیال مې داو وچه زما په دے مسوده به موصوف
هم یو نظر واچوي . او د تصوف بعض مباحث چه زما په دے کتاب کښې
راغلي دي د هغے په حقله به مفید مشورے او هدایات راکړي . چه
زما د دے تالیف افادیت نور هم زیات شي . هر کله چه هغوي د دے کتاب
مسوده اولیدله - نو ډیر زیات ئې خوښ کړه - د موصوف په نظر کښې
زما د دے تالیف لوئ تعریف داوو - چه په دے کښې په خصوصیت
سره د شمال مغربي پاکستان د هغه بے شمیره بزرګانو عالمانو او
شهیدانو تذکره راغلے ده . چه تر اوسه پورے د پاکستان د یو بل
ادیب او مورخ په کومه تذکره کښې نه دے راغلے . موصوف ډیرے نیکے
مشورے هم راکړے او علاوه د هغے نه ئې د دے کتاب د اشاعت د
اخراجاتو د پاره د محکمه اوقاف حکومت مغربي پاکستان د طرف نه
څلورنیم زره روپئ هم په طور د "قرض حسنه" سره منظورے کړے - او
د یو سل کتابونو خریدلو منظوري ئې هم او فرمائیله . د ا یقیناً چه
ډیر لوئ عملي امداد او شاباشے وُو - چه زما حوصله ئې نوره هم اوچته
کړله - او زه ئې د دے قابل کړم - چه د اخپل تالیف نور هم په ښه او
مکمله طریقه سره د خپلے اشاعتي ادارے "دار الاشاعة باجوړ"

په اهتمام سره چاپ کړے شم - په دے علمي او عملي امداد چه زه د بناغلي شيخ محمد اکرام صاحب هرڅومره شکريه ادا کړم کمه به وي - په دے منځ کښې اعليحضرت شهريار جهانزيب خان والي سوات د سل کتابونو اخستلو منظوري او فرمائيله او د عزتمند جناب "شيخ محمد حسين" بي - اے کرم ايجنسي او عزتمند جناب سيد "نصرمن الله" بي اے شمالي وزيرستان (ميرانشاه) هم د دے کتاب د اشاعت د پاره پنځه پنځه سوه روپۍ پطور د پيشګۍ راکولو او د پنځه پنځه سوه کتابونو خريد کولو مهرباني او کړله. او د عزتمند جناب سيد "اجلال حيدر زيدي صاحب بي - اے مالاکنډ ايجنسۍ يو زر روپۍ په طور د پيشګۍ راکړے. او ورسره ئے دوه سوه کتابونه خريد کول هم منظور کړل. او د بناغلي صدر مملکت پاکستان فيلډ مارشل محمد ايوب خان صاحب د سکريټريټ د طرف نه د دے کتاب د پنځه سوه جلدونو د خريد اړې منظوري هم راته را ورسيده - نو ما دا خيال او کړ - چه ماله د دے دوستانو او مشرانو د دے حوصله افزائۍ نه دا فائده اخيستل پکار دي - چه کتاب که لږ روستو چاپ شي خير دے - ليکن چه هرڅومره ممکن کيدلے شي. هغه هومره نورے اضافے پکښې او کړے شي - په خصوصيت سره د شمال مغربي پاکستان د هرڅومره نورو بزرګانو حالات چه په لاس راتللے شي هغه پکښې شامل کړے شي - د بزرګانو په حالاتو او واقعاتو تاريخي او تحقيقي نظر واچولے شي - او په دے شان سره دا کتاب په زيات نه زيات مکمل شکل کښې پيش کړے شي - د دے نتيجه دا شوه چه روغ کتاب د اول نه تر آخره پورے په څلورم ځل د نوي سر نه ليکلو ته م ملا او تړله - د بزرګانو د حالاتو راغونډولو د پاره تر لرے لرے علاقو مزلونه م او کړل - د بے شميره کتب خانو د قلمي او مطبوعه

ذخیرو او ذاتی یادا شتونو او بیاضونو نه م فائده واخیستله. دَ نوی سرنه م ترتیب ورکړ - دَ هرخو مره حصې چه کتابت شوې وو - په هغې کښ رد و بدل ترمیم او اضافې م اوکړې. او په دې شان سره دَ دې کتاب " روحانی رابطه " او " روحانی تړون " دَ تالیف کوم مهم کار چه په مارچ ۱۹۶۳ء کښ م شروع کړې وو - هغه اوس په اکتوبر ۱۹۶۵ء کښ په درې کاله زمانه کښ دَ خدای په فضل او کرم سره سرته اورسیده. او هغه مسوده چه په هغې کښ دَ (۴۲) بزرګانو حالات وو - او په ۵۱۲ صفحاتو مشتمله وه اوس دَ ۱۰۲ بزرګانو په حالاتو او ۱۰۷۲ صفحاتو مشتمله ده. والحمد لله علیٰ ذالك.

په آخر کښ زه دَ هغه ټولو اصحابو شکریه اداکوم دَ چا دَ علمی ذخیرو نه چه ما فائده اخیستی ده - او دخپل ګران رور مولانا عبد القاسم نقشبندی دَ موضع موسیٰ زئ ضلع پیښاور په خاص طور سره شکریه اداکوم. چه هغوئ دَ دې کتاب کتابت په بهترین پښتو رسم الخط کښ کړې دَے. او دکتاب په حسن او خوبئ کښ ئې اضافه کړې ده -

(۱۱ اکتوبر ۱۹۶۵ء)

(عبد الحلیم اثر افغانی)

# دَحوالے دَکتابونو فهرست

په دے کتاب "روحاني ترون" کښې چه دَ کومو قلمي کتابونو۔ بیاضونو یاداشتونو او شجرهٔ نسبونو او مطبوعه کتابونو نه حوالے آخیستے شوي دي. په خپله خپله موقعه دَ هر یو کتاب نوم ورسره ورسره درج کړے شوے دَے. چه دا اقتباس دَ فلانکي کتاب څخه اخیستے شویه ے. او چه کومے قلمي نسخے دي هغه چه دَ کومو عالمانو یا خاندانونو سره موجودے دي. دَ هغوي حوالے ورسره په دے غرض ورکړ شوید ی. چه کومو کسانو دا علمي خزانه ترننه ورځے پورے محفوظه ساتلے دہ. دَ هغوئ نومونه دَ شکریئے په ډول ذکر کول راته مناسب بلکه لازمي معلومیدل. دَحوالے او مأخذ دَکتابونو نومونه دادي:۔

(۱) تاریخ فرشته (۲) تاریخ کامل ابن اثیر (۳) افغانستان و یک نگاه اجمالی به تاریخ آن (۴) تاریخ یعقوبی (۵) تاریخ بلاذری (۶) چچ نامه (۷) کتاب الهند دَ البیروني (۸) تذکرة الابرار دَ اخوند رویزه (۹) نظم الدرر فی سلک السیر (۱۰) شجرهٔ پیران مانکی (۱۱) تاریخ خورشید جهان (۱۲) تاریخ صولت افغانی (۱۳) شجرهٔ پیران مردان (۱۴) تذکرهٔ مشایخ چشت (۱۵) مقاله عبد الحی حبیبی (۱۶) فوائد الفواد (۱۷) سفینة الاولیاء (۱۸) آئینه تصوف (۱۹) آئین اکبری (۲۰) ثمرات القدس (۲۱) کشف الظنون (۲۲) قاموس الاعلام (۲۳) خزینة الاصفیاء (۲۴) نفحات الانس دَ مولانا عبد الرحمان جامي (۲۵) اخبار الاصفیاء (۲۶) تاریخ مخزن پنجاب (۲۷) نزهة الخواطر (۲۸) مأثر الکرام (۲۹) مقاله د مولانا محمد شفیع لاهوري مرحوم

(۳۰) حدائق الحنفیة (۳۱) معارج الولایت (۳۲) دائرة المعارف اسلامی مقاله دَ هدایت حسین جلد ۲ (۳۳) فهرست دَ موسیو دیو ع ۳۳ (۳۴) تذکرهٔ علماء هند (۳۵) سبک شناسی دَ ملک الشعراء بهار ایرانی (۳۶) تاریخ دَ تصوف اسلام (۳۷) اسماء المصنفین (۳۸) بزم صوفیه (۳۹) آب کوثر دَ شیخ محمد اکرام (۴۰) کتیبه دَ مزار د حضرت دا تا گنج بخش (۴۱) دیباچه دَ کشف المحجوب تالیف د نکلسن (۴۲) کشف المحجوب (الف) طبع لاهور (ب) طبع سمرقندی (ج) طبع لینن گراد. (د) قلمی نسخه ملکیت دَ مولانا محمد شفیع لاهوری مرحوم (۴۳) اسرار التوحید (۴۴) تاریخ الاسلام دَ امام ذهبی (۴۵) وفیات الاعیان تالیف دَ ابن خلکان (۴۶) طبقات الصوفیه تالیف د خواجه انصاری هروی (۴۷) کتاب المنتظم تالیف دَ ابن جوزی (۴۸) مرآة الجنان تالیف دَ امام یافعی (۴۹) تحقیقات چشتی تالیف دَ نور احمد چشتی لاهوری (۵۰) طبقات ناصری (۵۱) تاریخ لاهور تالیف دَ کنهیا لال.
(۵۲) مقاله دَ بزمی انصاری دَ کراچی اشاعت سروش کراچی (۵۳) سیر العارفین دَ شیخ جمالی طبع دهلی (۵۴) "دا تا گنج بخش" تالیف دَ محمد الدین فوق (۵۵) کشف الاسرار (۵۶) تاریخ مخزن افغانی تالیف دَ نعمت الله خان هروی (۵۷) مجمع الانساب تالیف دَ نور محمد کوهاټی (قلمی) (۵۸) تاریخ مرصع تالیف دَ محمد افضل خان ختک (قلمی) (۵۹) منتخب التواریخ دَ بدایونی. (۶۰) سِرّ الاسرار فیما یحتاج الیه الابرار تالیف د حضرت میران محی الدین شیخ عبد القادر جیلانی طبع بمبئی (۶۱) دَ تاریخ نوے مطالعه (قلمی) (۶۲) مقدمه دَ سِرّ الاسرار (۶۳) تاریخ وزیرستان مطبوعه ۱۸۷۲ء (۶۴) اولیائے مشرقی پاکستان (۶۵) خواجه غریب نوازهٔ تالیف ادارهٔ تعلیمی (۶۶) مقاله دَ حافظ محمد اسلام (۶۷) مقاله دَ حضرت آغا عنایت علی شاه ضیاء جعفری قادری (۶۸) تاریخ ابن حوقل بغدادی (۶۹) تاریخ اصطخری.

(۷۰) تاریخ دَ بشارتی مقدسی (۷۱) اخبار الصالحین (۷۲) تذکرهٔ اولیاء افغان (۷۳) دَ پښتنواد بیا تو تاریخ (۷۴) آئینه حقیقت نما تالیف دَ اکبر شاه خان سلار زایئ نجیب آبادی (۷۵) تاریخ حیات افغانی تالیف د نواب محمد حیات خان توانه (۷۶) تذکرهٔ اولیاء ملتان (۷۷) اخبار الاخیار تالیف د شیخ عبد الحق دهلوی (۷۸) انوار اصفیاء تالیف دَ ادارهٔ علمیه (۷۹) شجرهٔ دَ سادات بخاری دَ پیښور (قلمی) (۸۰) تحفة السادات (۸۱) مکتوب دَ سید غلام حسن کاظمی دَ آزاد کشمیر (۸۲) شجرهٔ د سادات بخاری دَ کوجر گرهی (۸۳) شجرهٔ سادات پیر ابراهیم خیل بخاری دَ باجوړ (۸۴) مخدوم جهانیان جهان گشت تالیف دَ محمد ایوب قادری (۸۵) بهار گزټ (صوبه بهار انډیا) بابت سن ۱۹۶۰ء (۸۶) مناقب الاصفیاء (۸۷) بزم مملوکیه (۸۸) نام حق (فارسی) (۸۹) سفر نامه ابن بطوطه (۹۰) مسلم بنگله ساهیة (۹۱) گلزار ابرار (۹۲) ریاض السلاطین (۹۳) مرآة الاسرار (۹۴) لطائف اشرفی تالیف د حضرت شاه اشرف جهانگیر (۹۵) مکتوب د شاه شرف الدین منیری (۹۶) مناقب الولایت (۹۷) سبع سنابل (قلمی) (۹۸) دیوان دَ پیر مطیع الله گیلانی کوهاټي (قلمی) (۹۹) شجرهٔ دَ سادات مشوانی د شرارود (۱۰۰) شجرهٔ اکملیه (۱۰۱) بیاض دَ ابو القاسم نصیر الدین (قلمی) (۱۰۲) سیر محمدی (۱۰۳) معراج العاشقین (۱۰۴) تاریخ الافغان تالیف دَ سید جمال الدین افغانی (۱۰۵) تاریخ افاغنه (۱۰۶) بیاض دَ سادات بلوسئ دَ پیښور (۱۰۷) المعالی شرح آمالی تالیف دَ میان محمد عمر چمکنی (قلمی) (۱۰۸) حالات مشوانی تالیف دَ میان محمد یوسف مشوانی دَ هزارے (۱۰۹) گزیټیر آف دی هزاره ډسترکټ بابت سن ۱۹۰۷ء تالیف دَ ایچ - ډی - والټن (۱۱۰) نارته ویسټ فرنټیر پراونس ډسترکټ بابت گزیټیر پشاور او هزاره (۱۱۱) بلوچستان ډسترکټ گزیټیر کویټه پشین

د سمه کتب. تالیف د آر. هیوز. بتهلرا او دیوان جمعیت رایئے۔ (۱۱۲) پرومو شن آف لرننگ ان محمدن پیریډ (۱۱۳) لوکل گورنمنټ بحواله دفعه ۱۵ ایکټ ۳۳ سال ۱۸۷۳ء شجره نسب مشوانی (۱۱۴) گزیټیر دی بلجوره رایئے بس تالیف د هنتر (۱۱۵) بیاض د سادات مشوانی د باجوړ (۱۱۶) مقاله د مسیرې کوټ مین (۱۱۷) کلیات دادین (۱۱۸) بیاض د سید نصرالله جان مشوانی (قلمی) (۱۱۹) پخوانی لیکوال (قلمی) (۱۲۰) شجره سادات مهمند (قلمی) (۱۲۱) مناقب د میاں عمر تالیف د مسعود گل پاسنی (۱۲۲) تاریخ جهان ډیر (قلمی) (۱۲۳) فرمان د شهنشاه جلالدین اکبر بابت ۱۰۰۲هـ (۱۲۴) تاریخ باجوړ تالیف د غلام محمد خان ابراهیم خیل خان د اسمار (قلمی) (۱۲۵) مکتوب سادات چنار کوټ باجوړ (۱۲۶) "کتاب الغزویه" تالیف د اخونه سالاک (قلمی) (۱۲۷) مناقب د شیخ عبد الوهاب المعروف په اخون پنجو تالیف د شیخ عبد الغفور عباسی (قلمی) (۱۲۸) مناقب اخوند پنجو تالیف د میاں علی چشتی (قلمی) (۱۲۹) کتاب الانوار تالیف د ملا خاکی (قلمی) (۱۳۰) مناقب منظوم تالیف د میاں بادشاه (قلمی) (۱۳۱) بیاض د میاں غلام صدیق (قلمی) (۱۳۲) بیاض د حکیم ابوحامد امجد (قلمی) (۱۳۳) پښتانه شاعران (۱۳۴) تذکره د شیخ رحمکار (۱۳۵) تحفة الاولیاء تالیف د رضوانی (۱۳۶) تاریخ یوسفزایئے (۱۳۷) مشائخ د علماء سرحد (۱۳۸) تحفه صالح تالیف د الله یار الکوزی (قلمی) (۱۳۹) سلوک الغزاة تالیف د ملا مست شینواری (قلمی) (۱۴۰) سالنامه مجله اولس کوټه (۱۴۱) قاموس اعلام جغرافیائی افغانستان (۱۴۲) تاریخ پښاور طبع ۱۸۷۴ء (۱۴۳) الروح علی اهل الهواء والبدع تالیف د عبد الرحیم مانکراوی (۱۴۴) اکبرنامه (۱۴۵) تزوک جهانگیری (۱۴۶) اقبال نامه (۱۴۷) منتخب اللباب (۱۴۸) تمهید ابی شکور سالمی (۱۴۹) کتاب العوارف تالیف د شیخ شهاب الدین سهروردی

(۱۵۰) آئین اکبری (۱۵۱) پښتانه مؤرخان (قلمی) (۱۵۲) خزینة الاسرار تالیف دَ میاں محمد عمر چمکنی (قلمی) (۱۵۳) تبیان الحایق (قلمی) (۱۵۴) بحر الفراست (قلمی) (۱۵۵) دیوان د حافظ الپوری (۱۵۶) رشد نامه تالیف دَ مولانا رکن الدین (۱۵۷) شرح جام جهان نما تالیف د میاں کریم داد ابن اخوند رویزه (قلمی) (۱۵۸) دَ پښتو ادب درے کورنیې تالیف دَ عبدالحی حبیبی (۱۵۹) ارشاد المریدین تالیف د اخوند رویزه (قلمی او مطبوعه نسخې) (۱۶۰) ارشاد الطالبین تالیف دَ اخوند رویزه (۱۶۱) مخزن الاسلام تالیف دَ اخوند رویزه (۱۶۲) فوائد الشریعت دَ اخوند قاسم پاپین خیل (قلمی) (۱۶۳) دیوان دَ میاں کریمداد (قلمی) (۱۶۴) بیاض دَ ملا صالح اعوان (قلمی) (۱۶۵) طبقات ناصری (۱۶۶) پټه خزانه تالیف دَ محمد هوتک (۱۶۷) حالنامه تالیف دَ بایزید روښان (قلمی) (۱۶۸) دیوان دَ دولت لوانړی (قلمی) (۱۶۹) دیوان دَ علی محمد مخلص (قلمی) (۱۷۰) دیوان دَ ملا علی ارزانی (قلمی) (۱۷۱) دیوان دَ مرزا خان بیضاوی انصاری (۱۷۲) مقصود المؤمنین تالیف دَ بایزید روښان (۱۷۳) خیر البیان تالیف دَ بایزید روښان (۱۷۴) شرح قصیده آمالی تالیف د اخوند رویزه (۱۷۵) تحفة الخانیه تالیف دَ میاں کریم داد ابن اخوند رویزه (۱۷۶) حقیقة الایمان (۱۷۷) مقامات قطبیه تالیف دَ حلیم گل (۱۷۸) شجرهٔ سادات پښین (۱۷۹) تیسیر القرآت (قلمی) (۱۸۰) بیاض دَ میاں حمیم گل (قلمی) (۱۸۱) بیاض دَ میاں محمد وسیم (قلمی) (۱۸۲) توضیح المعانی تالیف دَ میاں محمد عمر چمکنی (قلمی) (۱۸۳) مکتوبات امام ربانی مجدد الف ثانی (۱۸۴) دَ پښتو هارا و بهار تالیف دَ ډارمسټټر (۱۸۵) دیوان دَ مصری خان گگیانړی (۱۸۶) تذکرهٔ دَ اخون الیاس (۱۸۷) مناقب الحضرات تالیف دَ محمد امین بدخشی مکی (قلمی) (۱۸۸) نکات الاسرار تالیف دَ سید نا آدم بنوری (قلمی) (۱۸۹) خلاصة المعارف تالیف دَ سیدنا آدم بنوری (قلمی) (۱۹۰)

تیرهیر شاعران تالیف د اثر افغانی (۱۹۱) نورالهدیٰ (۱۹۲) سعدیه شرح خلاصه کیدانی (قلمی) (۱۹۳) دیوان دجان محمد کاکړ (۱۹۴) شجره سادات عبدالرزاق (قلمی) (۱۹۵) مصباح الیقین تالیف دَ اخوند اسماعیل ابن مهرجان عمرزائے هشنغر (قلمی) (۱۹۶) تذکره جمیل (قلمی) (۱۹۷) گلزار محبت دَ بهاؤالدین نقشبندی (قلمی) (۱۹۸) ملح الابرار تالیف دَ سید احمد (۱۹۹) مخزن الاسرار تالیف د صفی الله (قلمی) (۲۰۰) بدرمنیر تالیف د صفی الله (قلمی) (۲۰۱) گنج سعادت تالیف دَ فیض الله اخند زاده (قلمی) (۲۰۲) تحفة الناظمین تالیف دَ میان وسیم (قلمی) (۲۰۳) کنزالدقائق منظوم فارسی تالیف د محمد جمال بن نصرالله لودهی (قلمی) (۲۰۴) بیاض د شیخ عبدالخالق قصوری پشاوری (قلمی) (۲۰۵) لطائف المعارف دَ ثعالبی (۲۰۶) کتاب المسالک والممالک دَ امام جوینی (۲۰۷) کتاب ترکستان د موسیو بارتهولد (۲۰۸) بیاض دَ محمد مسعود قصوری (قلمی) (۲۰۹) بیاض دَ نور محمد پشاوری (قلمی) (۲۱۰) قائد الانام (قلمی) (۲۱۱) حاشیه لاجبوکئ تالیف د ملا بازمیر اخندزاده (قلمی) (۲۱۲) شجره شیخ محمد گل کاکاخیل (قلمی) (۲۱۳) شجره صدیقیه وغفوریه (قلمی) (۲۱۴) بیاض دَ سید محمد شاه تارن سدوی (قلمی) (۲۱۵) نافع المسلمین تالیف دَ اخوند گدا (۲۱۶) الشرائع والاحکام (قلمی) (۲۱۷) قصیده دَ محمد خان عمرزائے (قلمی) (۲۱۸) تذکره غوثیه تالیف دَ شاه محمد غوث قادری (۲۱۹) تاریخ کشمیر (قلمی) تالیف دَ مفتی محمد شاه سعادت (۲۲۰) نغمات لطیف (۲۲۱) شجره خلفاء حاجی بهادر (قلمی) (۲۲۲) ذخیرة القرآ (قلمی) (۲۲۳) مفید المفتی تالیف د علامه عبدالعلی آسی مدراسی (۲۲۴) تحفة المرشد (۲۲۵) تکمله د تحفة المرشد تالیف دَ محمد حسن (۲۲۶) خوارق عادت تالیف د شاه غلام قادری (قلمی) (۲۲۷) یاد رفتهگان تالیف د محمد الدین فوق (۲۲۸) تاریخ سلطانی

(۲۲۹) مقدمة دحصن الایمان (۲۳۰) تذکرة الاولیاء الافغان (قلمی)
(۲۳۱) صقال الضمائر و مسامرة السرائر تالیف دَ خواجه محمد سعید
نقشبندی سندهی طبع بمبئی سنه ۱۲۹۸ (۲۳۲) شجره سلسله غفوریه
(۲۳۳) مکتوبات دَ میاں فقیراللہ جلال آبادی شکارپوری (۲۳۴) شرح
قصیده برده (قلمی) تالیف د نور محمد قریشی (۲۳۵) ریاحین الصلوٰة (قلمی)
تالیف د محمد سعید بازگل (۲۳۶) شمائل نبوی (قلمی) تالیف دَ میاں محمد عمر
چمکنی (۲۳۷) تاریخی دستاویز مملوکه ډاکټر سید انوارالحق گیلانی (قلمی)
(۲۳۸) دیوان د حافظ الپوری (۲۳۹) مقاصد الفقهه (قلمی) تالیف د محمدی
صاحبزاده (۲۴۰) درود محمدی (قلمی) تالیف د محمدی صاحبزاده (۲۴۱) شجره
نسب حضرات طوطکان (قلمی) (۲۴۲) تجوید القرآن طبع دهلی (۲۴۳) حاشیه
د کتاب "المباحث العلمیه" (قلمی) تالیف دَ میاں وسیم (۲۴۴) تضمین دَ پند نامه
عطارد (قلمی) (۲۴۵) شجره طریقت منظوم (قلمی) تالیف دَ عبیدالله میاں گل
(۲۴۶) تذکره سعیدیه (قلمی) (۲۴۷) رساله سیچل سائیں (۲۴۸) اولیائے کرام
(۲۴۹) ملفوظات شیخ (۲۵۰) تذکره د میاں مستجاب (قلمی) (۲۵۱) حاشیه دَ
هدایة المخلصین (قلمی) (۲۵۲) دیوان عبد العظیم رانی زایے (۲۵۳) دیوان
د احمد د کلاچی (۲۵۴) اکبرنامه د عبد الحمید سواتی (قلمی) (۲۵۵)
مکتوبات دَ صاحبزاده مراد احمد (قلمی) سنه ۱۲۴۱ھ (۲۵۶) مناقب غوث
تالیف دَ میاں ولی محمد چمچی (قلمی) (۲۵۷) واقعات جهاد ملاکنډ تالیف دَ
عبدالکریم (قلمی) (۲۵۸) هدایة السالکین تالیف دَ محمد حسن چغرزایے
(۲۵۹) شجره نسب دَ حاجی صاحب ترنګزایے تالیف د میر عبدالله (قلمی)
(۲۶۰) ماهوار مجله هاتف بابت اپریل سنه ۱۹۲۵ء (۲۶۱) کتاب تحریک ریشمی
رومال (۲۶۲) کتاب حاجی صاحب د ترنګزایی د نصرالله خان نصر (۲۶۳)
کتاب "سلسله قادریه" تالیف دَ حاجی محمد آمین ماشوخیل

مرحوم (۲۶۴) بحر الانوار تالیف دَ عبد الرؤف (۲۶۵) مکتوب دَ محمد امین خوګیانی (قلمی) (۲۶۶) مناقب غوثیه تالیف دَ استاذ مرحوم مولانا محمد اسماعیل ګیلانی دَ طورو (قلمی) (۲۶۷) تاریخ سنده طبع اعظم ګډه (۲۶۸) د بستان مذاهب (۲۶۹) "تحفه سعادت" تالیف د سید عبد الستار شاه بینوا نیازی، نظامی، چشتی، قادری (قلمی) (۲۷۰) "روضة السلام" د مولانا شرف الدین کشمیری (قلمی) (۲۷۱) مکتوبات دَ سید ابو المعالی کشمیری (قلمی) (۲۷۲) شرح د صحیح بخاری تالیف د شاه محمد غوث قادری (قلمی) (۲۷۳) مجمع البرکات (قلمی) (۲۷۴) "جامع العلوم" تالیف د شاه محمد غوث ګیلانی قادری (قلمی) (۲۷۵) "مرآة الاولیاء" تالیف دَ حافظ اخوند محمد شعیب دَ توردهیری (قلمی) (۲۷۶) "صفت نامه" (قلمی)

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ط

# تړون

داکتاب "روحانی تړون" د اولیاء الله او دین اسلام د بزرګانو او عالمانو دَ ژوند په حالاتو او دَ هغوي په مبارکو تعلیماتو باندے مشتمل دے۔ اوکوم پاکیزه تعلیمات چه څُونږ دے بزرګانو علماً او عملاً مونږ ته راکړي دي۔ اوکوم پیغام چه دوی مونږ ته رارسولے دے د دے ټولو سرچشمه یوه ده۔ چه هغه دَ رسول مقبول محمّد مصطفی صلی الله علیه وسلم مبارک تعلیمات دي او پاکیزه پیغام دے۔ نو په دے وجه څما دا آرزو وه چه زه د دے خپل تالیف تړون (انتساب) دَ خاندان نبوت او رسالت دَ یو ممتاز فرد دَ نام نامی او اسم ګرامی سره اوکړم۔ چنانچه هم په دے بناما دَ دے خپل کتاب تړون

دَ عزتمند جناب سیّد اجلال حیدر زیدی غزنوی
پولیټیکل ایجنټ دَ ملاکنډ ایجنسی

دَ مبارک نوم سره اوکړلو۔ امید دے چه د دوی له برکته دے کتاب ته مقبولیت حاصل شي۔

دا کتاب دَ دارالاشاعت باجوړ قبایلی علاقے ملاکنډ ایجنسی نه شائع کوولے شي۔ او زه پخپله هم دَ باجوړ دَ ترکلانی قوم د سلارزی قبیلے دَ فتح خانخیل کورنۍ یو فرد یم۔ په دے اعتبار سره د موصوف په نوم د دے کتاب دَ منسوب کولو چه بله کومه تاریخي

وجه دا۔ په دے موقع هغے ته اشاره کول هم ضروری گڼم۔

هغه تاریخي وجه داده۔ چه عزتمند جناب سید اجلال حیدر زیدی غزنوی صاحب دَ حضرت سید مبارک الغزنوی علیه الرحمة نمسے دے۔ هغه سید مبارک الغزنوی چه دَ حضرت شیخ الاسلام والمسلمین شیخ شهاب الدین عمر سهروردی علیه الرحمة خوریئے وو۔ او هغه سید مبارک الغزنوی چه دَ سلطان شهاب محمد ابن سام غوری په درخواست باندے دَ هغوی دَ روحانی رهنمائي دَ پاره په سنه ۵۸۶ھ کښې هندوستان له غزاله راغلے وو۔ او دَ دوی د روحانی رهنمائي او نیکو دعاگانو په برکت په سنه ۵۹۰ھ (مطابق سنه ۱۱۹۳ء) کښې دهلے فتح کړے شوے وو۔

بیا چه هرکله دهلے فتح کړے شو۔ او په سنه ۵۹۲ھ کښې را واپس شول نو په دے غزا کښې چه دَ مختلفو پښتنو قبائیلو کوم غازیان ور سره وو۔ هغه ئې په کوهستان رُوه۔ کوه سلیمان او کوه قیسی کښې۔ او په وادي پیښور۔ هشتنغر۔ سوات۔ دیر او باجوړ کښې آباد کړی وو۔ په دے اعتبار مونږه د دے پورته یادکړو شوُو علاقو موجوده پښتانه دَ هغه غازیانو اولاد یو چه دَ حضرت سید مبارکه الغزنوی په روحانی رهنمائي کښې ئې دَ هندوستان په زمکه جهاد ونه کړی دی۔ دَ اسلام بلوغ ئې پورته کړے دے۔ او بیا هم دَ هغوی په دعا سره دلته آباد شوی یو۔ او داحسن اتفاق دے۔ چه دَ ملاکنډ ایجنسی پولیټکل ایجنټ جناب سید اجلال حیدر زیدی هم دَ دغه حضرت سید مبارک غزنوی سهروردی په اولاد کښې یو ممتاز فرد دے۔

هرکله چه دَ ساداتو د دے بختور خاندان سره حَمُونږ د دیر۔ سوات۔ باجوړ د پښتنو دغه زوړ تاریخي تعلق دے۔ او په مونږ

باندے يَے دغه پښتوانی تاریخی حقداری او احسان هم دے ۔ او په دے شان سره دَ جناب سید اجلال حیدر زیدی دَ خاندان سره څهوېزه دَ سنه ۵۹۲ هـ راسے د اوه سوه یونوی (۷۹۱) کالو پښتوانے "روحانی تړون" موجود دے۔ نو په دے وجه هم زهٔ دا خبره خپله نیک بختی ګڼړم چه د دے کتاب انتساب د دوی مبارک نوم ته او کړم اُمید دے چه قبولیت عامه ورته حاصل شی والحمد لله رب العالمین۔

عبدالحلیم اثر افغانی

سلارزائے فتح خانخیل د باجوړ

۲۷ رمضان المبارک سنه ۱۳۸۳ هـ

# دیباچه

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ط

اسلام چه د نیا ته کوم نظام پیش کړے دے ـ هغه د توحید مذهب دے د دے معنیٰ داده. چه په یو خدای. یو رسول. یو قرآن باندے د ایمان راوړلو ـ او یوے کعبے ته د مخ کولو نه بس چه ټول په دے یو ه کلمه د توحید
لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوۡلُ اللّٰهِ
باندے راغونډ شي. نو د دوی ترمنځه یو روحانی رابطه او تړون پیدا شي په قرآن مجید کښ د دغے تعبیر په اِنَّمَا الۡمُؤۡمِنُوۡنَ اِخۡوَةٌ سره شوید ه او په حدیث شریف کښ د دے په حقله داسے هدایت شوید ے. اَلۡمُؤۡمِنُوۡنَ کَجَسَدٍ وَاحِدٍ اِذَا اشۡتَکٰی عُضۡوٌ مِنۡهُ اشۡتَکٰی کُلُّهٗ ـ معنیٰ دا چه ټول مسلمانان دَ یو وجود په مثال دی." هرکله چه دَ بدن یو اندام په درد شي. نو نور ټول وجود ورسره خوګیږی." د غه مثال د مسلمانانو دے. دَ هر یو مسلمان انفرادی تکلیف به ټول مسلمانان په اجتماعی شکل سره محسوس کوی ـ سنکاره خبره ده ـ چه د مشرق د یو مسلمان په درد چه د مغرب یو مسلمان دردیږی. نو د دغے وجه هم فقط دَ اسلام روحانی تړون (رابطه او تعلق) کیدلے شی ـ او اسلام همدغه" پاکیزه روح" او "روحانی تړون" په بنی نوع انسان کښ پیدا کړے دے او پیدا کول یۓ غواړی اهونړه مسلمانانو ته یۓ دا هدایات کړے دے. چه دا روحانی تړون، دے مضبوط او ساتی ـ او که فکر او کړو نو د آیت شریف وَاعۡتَصِمُوۡا بِحَبۡلِ اللّٰهِ جَمِیۡعًا وَّلَا تَفَرَّقُوۡا هم دا مطلب دے.

ځمونږ بزرګان اولیاء الله او روحانی پیشوایان چه هر ځو مره تیر شوی دی ـ او هغوی پخپله خپله زمانه کوم تعلیم او درس خلقو ته

ورکړے دے. او خپل ژوند ئے په کوم کارکښې صرف کړے دے. مونږ ته چه په هغې غور او کړو. نو د هغوی ټول عمر په دے کښې تیر شوے دے او دا ئے مشغل او کارو و. چه دَ مسلمانانو په زړونو کښې روحانی صفائي راشي. دَ مسلمانانو دَ زړونو نه خیرے لرے شي. او مسلمانان په رښتیا سره دا سے صحیح مسلمانان شي. لکه چه په قرآن مجید کښې په اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ ط سره ستائیلی شوی دی. دَ مسلمانانو په منځ کښې دَ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ دَ تعریف او توصیف پیدا کولو دَ پاره څمونږه بزرګانو او روحانی پیشوایانو کوشش کړے دے. چه دَ مسلمانانو زړونه دَ یو بل سره نزدے کړی. او دَ مسلمانانو ترمنځه دغه" روحانی ترون" مضبوط کړی. او دا ښکاره خبره ده. چه مسلمانان صحیح مسلمانان شي. دَ اسلام صحیح روح او پیژنی. نو بغیر له هغه به یا دَ خدای پاک دَ رضا نه بله نه شي کولے. او د خدای رضا هم دغه ده. چه مسلمانان دے نور ټول امتیازات ختم کړی. ځان دے یو" اُمَّةً مُّسْلِمَةً" او" خَيْرَ اُمَّةٍ" اوګنړی. او ټول دے یوتن او وجود شي.

په برصغیر پاک او هند کښې دَ" اسلام رنړا" څمونږه روحانی پیشوایانو او بزرګانو خوره کړے ده. ځکه چه دَ اسلام تعلق دَ زړه او روح سره دے. مسلمان هغه دے. چه ایمان ئي راوړے وی. ایمان څه شي دے "اِقْرَارٌ بِاللِّسَانِ وَتَصْدِيْقٌ بِالْقَلْبِ" دے. د زړه تصدیق او یقین هله راتلے شي. چه دَ اسلام رنړا زړه ته او رسیږی. او دَ خدای دَ مخلوق زړونو ته که دَ اسلام مینه او د خدای او رسول سره دَ تعلق سا تلو محبت ننوتلے دے. نو هغه هم څمونږه دَ دے روحانی رهنمایانو په همت سره هر څه شوی دی.

بیشکه څمونږه پخوانو مسلمانانو بادشاهو غزاګانے او جهادونه کړی دی. او د کفارو او مشرکانو په ملکونو ئے د اسلام بیرغونه اودرولی

دی. لیکن دجنګ نه روستو د غیر مسلم خلقو زړونه په ښو نیکو اخلاقو او پاکیزه وُو تعلیماتو او روحانی تصرفاتو سره هم دے بزرګانو په قبضه کښې راوستلی دی. او څوک چه دَ اسلام دښمنان وو هغه ئے دَ اسلام جان نثار سپاهیان کړی دی.

که فکر اوکړو یو تبلیغی مذهب دے. دَ نیکئ او پاکیزګئ مذهب دے. دَ نیکو اخلاقو خویونو او عادتونو مذهب دے. او دروحانی صفائی مذهب دے. په دے وجه دا یوه منلے شوے خبره ده چه دَ اسلام ټول فتوحات، اخلاقی فتوحات دی. او دا اخلاقی فتوحات او په ځلور کنجه دنیا کښې دَ اسلام دَ رڼا خورولو کارنامه څمونږه روحانی پیشوایانو او بزرګانو انجام ته رسولے ده.

حقیقت دا دے. چه دَ اسلام دعوت او هدایت دَ ټول بنی نوع انسان دپاره عام دے. او هر هغه انسان چه دَ اسلام په دائره کښې داخل شوے دے. که هغه د هر ملک او هر قوم چه دے. هره ژبه چه وائی. په رنګ تور دے. که سپین. که سور دے که زیړ. که بادشاه دے که غریب. ټول یو شان مسلمانان دی. او ټول یو زړونړه دی. او دے عملی ثبوت څمونږه دَ روحانی بزرګانو په مبارک ژوند کښې موندلے شی.

څمونږ دبزرګانو او روحانی پیشوایانو لوئ تعریف دا دے چه دَ کمال او بزرګی حاصلولو نه پس د دُنیا هر هغه حصے ته ئے ځان رسولے دے. چرته چه دَ اسلام دَ تبلیغ به زیات ضرورت وو. په دے اعتبار دوئ دیو ملک هم نه وو. او بیا سره دَ دغے نه دَ هر یو ملک هم وو. د دے په حقله حضرت شیخ عبدالحلیم بن عبدالله ابن اخوند رویزه علیه الرحمة څومره ښکلے خبره کړے ده. فرمائی: ؎

په هر یو وطن کښې ګرځی، غریب نه وی بے پروائے وی

هر یو ملک لره چه ورشی هغه ملک ده لاده خدای دی
ځموږ دَ بزرګانو دا عقیده وه. چه ټول ملکونه دَ خدای دي. ټول
مخلوق دَ خدای مخلوق دے - او دَ دوی کار دَ خدای مخلوق ته دَ خدای
پیغام رسول دی. او ښکاره خبره ده. چه دَ خدای او رسول دَ پیغام
روح داده چه دَ دنیا ټول مسلمانان یو رونړه دی.

ما په دے کتاب "روحانی ترون" کښې دَ پاکستان دَ دواړو حصو
مشرقی او مغربی دَ کښې و مشهورو بزرګانو حالات را جمع کړی دی. دَ دوی
ژوند. د دوی تعلیمات. او روحانی درس ځموږ ته دَ وړاندے دے - د دوی
د حالاتو دَ مطالعه کولو نه به معلومه شی - چه ځموږ دا بزرګان که د ملک
په یوه حصه کښې پیدا شوے وي. او کمال یے حاصل کړے دے. نو بیا یے
په کور. کلی. ملک او وطن پورے زړه نه دے تړلے. بلکه دَ یو او چت مقصد
دَ حاصلولو دَ پاره چه هغه دَ خدای او رسول رضا ده. او دَ دین اسـلام
اشاعت او تبلیغ دَے. دَ ملک بلے حصے ته تلی دی. او هغه لوړ مقصد
یے حاصل کړے دے.

زه به د دے خپلے خبرے وضاحت په یو مثال پیش کولو سره
او کړم. او هغه داد ے. چه حضرت سید عبد الله گیلانی علیه الرحمة
چه دَ بغداد شریف نقیب الاشراف و - روحانی رهنما و - د بغداد شریف
نه دَ مملکت شام "حما" نومے علاقے ته څی. بیا دَ هغه ځای نه دَ "بحیرهٔ
عرب" په لاره دَ "وادی سنده" مشهور بندرګاه دیول ته څی. بیا مشهور
تاریخی ښهر "ټهټه" کښې استوګن کیږی. د لته کښې وفات کیږی. مزار
مبارک یے دَ ټهټه په تاریخی قبرستان مکلی کښې جوړ یږی. او د
"سید عبد الله صحابی رسول" په معزز لقب یادیږی. لیکن د ده ځوی
پیر سید حسن القادری گیلانی په ټهټه ښهر پورے زړه نه تړی.

دَوادی سندھ نہ راروانیږی. دَگجرات کاٹھیاواړ. دھلی. لاھور په لاره پېښور ښار ته راځی. د لته کښې آبادیږی. جماعت جوړیږی. درس ورکوی. امر بالمعروف کوی. دَخدای مخلوق تر پنه بیعت کوی. روحانی فیوضات تر پنه حاصل کوی. لنګرونه ورکوی. مګر خپل سکه رور شاه محمد فاضل کشمیر ته لیږی. چه زیارت یې هلته په سری نګر کښې جوړیږی. بیا دَحضرت پیر سید حسن القادریؒ نه روستو دوه ځامن پاتے کیږی. یو حضرت سید زین العابدینؒ چه هغه هم دَ پېښور ښهر نه هزارے ته ځی. مزار مبارک یې دَ هزارے دَحویلیان نومے ښهر سره دَ ے. اودویم ځوئ ئے حضرت شاه محمد غوث قادری ګیلانی لاهور (پنجاب) ته ځی. چه مزار یې په لاهور ښهر کښې جوړیږی. وروستے دَ دے خاندان یوه کورنئ کابل ته ځی. بله جهلم ته ځی. اوس دَ ساداتو د دے نقیب الاشراف خاندان بزرګان په بغداد. حیدرآباد سندھ. پېښور. کشمیر. لاهور. کابل اوجهلم کښې یعنے ټولوا همو اسلامی ملکونو اومرکزونو کښې پراته دی. نو که فکر اوکړو دا یو مثال دے. چه د دے بزرګانو په هیڅ یو ملک پورے زړه نه تړلو بلکه دَ دوئ په وړاند ے دَ اسلام دَخدمت یو عظیم مقصد پروت وو. یو نصب العین وو. او هغ ته دَ رسیدلو دَ پاره به یې کوشش کولو. دیته ئے نه کتل چه زه چرته پید اشوے یم. او ځما کوم کور. کلے اووطن دے. که بالفرض هغوئ دے خبرو ته کتلے. اودَپلار په سجاده ګدئ او مال هال پورے یې زړه تړلے. نو بیا ځمونږ دَدغه پورتنی مثال په طور دَحضرت پیر سید حسن القادریؒ والد ماجد حضرت سید عبد الله ګیلانی په بهته ښهر کښې ډیر لوئ روحانی پیشوا وُو. ډیر قدر عزت او حرمت یې وُو. دَ "اصحابئ رسول"

په معزز لقب یادیدلو۔ بیا خود حضرت پیر سید حسن القادری گیلانی علیه الرحمة دَ پاره دا خبره ډیره آسانه وه۔ چه هم هلته په ټهټه ښهر کښ پاتے شوے وے۔ سجاده نشین شوے وے۔ او دَ آرام ژوند یۓ تیره ولے۔ دغه شان حضرت پیر سید حسن القادریؒ چه کله پیښور ښهر ته تشریف راوړلو۔ نو دلته دَ دوی هم ډیر لوئ قدر او عزت وَو۔ د دے ملک مشهور خانان۔ نوابان ټول مریدان وو۔ دَ پیښور مشهور نواب۔ نواب محسن خان مهمند رچه نن ورځ دَ پیښور مشهور کلے کوټله محسن خان هم د ده په نوم آباد دے)

ورله خپله لور بی بی په نکاح ورکړے وه۔ دَ کابل گورنر نواب امیر خان یۓ مرید وو۔ لیکن سره د دے نه چه کله حضرت پیر سید حسن قادری گیلانیؒ وفات شو۔ نو ده مشر ځوی چه د لور د طرف نه دَ نواب محسن خان نمسے وو۔ هغه هزارے ته ځی۔ او کشر ځوئ یۓ حضرت شاه محمد غوثؒ لاهور ته ځی۔ او په دواړو ریڼو کښ یو هم د پیښور کښ نۀ دیۓ۔ مال هال۔ عزت دولت۔ شهرت ته اَسۀ نه کوی۔

د دے وجه څه وه۔؟ د دے وجه دا ده چه ځمونږ دا مشران بزرګان په د دے حقیقت باندے پوهه وو۔ چه اسلام یو تبلیغی مذهب دے۔ یو مشن دے۔ او ټول ژوند د غے ته وقف کول دی۔ او هم دا هغه څیز دے۔ چه ځمونږ ټول مشران او روحانی رهنمایان دَ جهاد دَ پاره او د اسلام دَ تبلیغ دَ پاره دَ دُنیا دَ یو سر نه بل سر ته رسیدلی دی۔ چه دَ غزنی نه به را روان شول او په سومنات به یۓ په غزا کښ ځان شهید کولو۔ دَ بخارا او تبریز نه به راروان شول او په بنګال او اسام کښ یۓ دَ دین تبلیغ کولو۔ د دے وجه هم دغه وه۔ چه دَ هغوی ژوند دَ اسلام دَ پاره وقف وَو۔ او دَ موجوده دور مسلمانانو په شان په کور پـه پټی۔

په مال په هال - په کلی په چم - په کندی. په رور په عزیز پورے یے
زړه نه وو تړلے - اونن هم ددوی په برکت دَ دُنیا ټول مسلمانان یو رونړه
شوی دی. دَ دنیا کوټ کوټ ته دَ اسلامی رورولئ دا پیغام دوی
رسولے دے -

که فکر اوکړو دا یو مثال دے. او ځمونږ ددے مشاهیر و بزرګانو
په رهنمائی سره چه دَ مسلمانانو ترمنځه کوم "اسلامی روحانی ورور ون"
عملی شکل موندلے دے - یوخو ته دهغے انداز ه لګول به ترینه آسان
شی او بل خو ته ځما دا آرزو ده. چه ددے بزرګانو دَ مطالعے نه مونږ
دا سبق واخلو چه ځمونږ هر یو مسلمان دَ خپل زړه نه دا خیال او باسی -
چه دے چرته پیدا شوے دے - او دده کور کلے او وطن کوم یو دے - ؟
بلکه دا خیال په زړه کښی پیدا کړی چه دَ دے خپل لوی اسلامی ملک
او مملکت هرهغه ځائے چه چرته دَ دین اسلام او مسلمانانو ښیګړه
په ده کید لے شی. هغے ته دَ ځان رسولو کوشش او کړی.

په دے کتاب کښی دَ سنه ۴۱۰ نه دروستو زمانے دَ بزرګانو حالات
لیکلی شوی دی - چونکه دځنے بزرګانو دَ ولادت تاریخونه معلوم نه دی
په دے وجه دَ تاریخ وفات دَ زمانے په لحاظ چه سلسله وار په وړاندے
روستو زمانه کښی دا هرخومره بزرګان تیر شوی دی په هغه مناسبت
ئے حالات دلته درج کړے شول.

تر دے وخته پورے چه دَ هرخومره بزرګانو دحالاتو تذکرے
ځما د نظر نه تیرے شوے دی. په هغے کښی زیات بحث د هر یو بزرګ دَ
کشف او کرامت په واقعاتو باندے وی - لیکن حقیقت دا دے چه کشف
او کرامت دَ یو بزرګ دَ پاره وقتی خیز دے - او د بزرګئ اصلی مقصد نه
دے. بلکه چه روستو د حضرت پیر بابا علیه الرحمة په تذکره کښی به په

تفصیل سره پرے بحث راشی - هر یو مسلمان له چه خدایٔ پاک دبزرګیٔ
مرتبه ورکړی - او په خپلو اولیاؤ کښې یٔے شمار کړی. نو فوری طور هغه
له دوه نعمتونه ورکړی. یو دا چه خلق پرے راماتشی - شهرت یٔے
اوشی - په ظاهره کښې خود اسے ښکاریږی - چه دا شهرت د دغه
بزرګ د پاره د عزت خبره ده - لیکن په حقیقت کښې دا په هغه باندے
د خدایٔ د طرف نه یو امتحان وی. او دا هغه ته یو کار حواله شوے
وی . چه د خدای مخلوق ته به د دین اسلام تبلیغ کوے - هدایت به
ورته کوے - د دوی د اخلاقو اصلاح به کوے - نو بیا که یو بزرګ په دے
امتحان کښې ثابت قدم پاتے شی - او دغه شهرت د خپل ذاتی عزت، و
جاهت او مرتبے او مال راټولو ذریعه اونه ګرځوی - نو هغه له د کشف او
کرامت مرتبه ورکړی - او بیا دا مرتبه هم فقط د دے د پاره ورکوی . .
چه د خلقو عقیدت ورسره پیدا شی - او دے چه د دین اسلام کوم تبلیغ
هغوی ته کوی - د ناکاره رسمونو او رواجونو نه یٔے منع کوی - د هغوی اخلاقی
، معاشی، معاشرتی اصلاح کوی - نو چه خلق د ده په نصیحت او هدایت باندے
عمل ته تیار شی -

چنانچه په دے وجه مونږه دا او ویل چه کشف او کرامت
مقصود نه دے - بلکه د مقصد د حصول د پاره اسباب دی - او هغه
آسانتیا کانے دی - چه د دین اسلام په کار کښې د کامیابیدو د پاره
خدایٔ پاک یٔ خپل یو نیک بنده له ورکړی - په دے بناء دا یو وقتی
څیز دے - او اصلی څیز هغه پیغام دے - هغه تعلیمات دی - چه یو
بزرګ قوم ته پلیش کړی وی -

د دے پورته وجوهاتو له مخه ما په دے خپل کتاب «روحانی
ترون» کښې د ټولو بزرګانو یه تذکرو کښې د هغوی د کشف او کرامت یه

حقله بحث نه دے کړے. بلکه دَ بحث بنیادی نقطه م راکرځولے
ده - چه څو نړه هغه روحانی رهنمایان او پیشوایان چه دَ چا دَ تبلیغ،
رشد، او هدایت په برکت چه نن په برصغیر پاک او هند کښې دَ اسلام
رڼرا خوره ده - دَ چا په برکت چه په دے زمکه دو مره مسلمانان پیدا
شول - چه هغوی په دے برصغیر کښې دَ (لا اله الا الله محمد رسول الله)
بیرغ او دروله - او دَ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دَ دین دَ سرلوړئ دَ
پاره یئے دَ "پاکستان" په نوم یو اسلامی مملکت جوړ کړلو - او دَ چا دَ
برکته چه نن مونږه ټول په "یو روحانی تړون" یو رونړه یو نو چه دا
معلومه کړو چه څو نړه دغه روحانی مشران څوک وو - کله پیدا شول؟
روحانی رڼا یې دَ چا نه حاصله کړے وه -؟ دَ دوی صحیح تاریخی حالات او تاریخی
مقام څه دے؟ او نن څو نړه په دے مملکت کښې په کومه کومه خاوره
پراته دی -؟

په دے اعتبار سره ځما دا تالیف "روحانی تړون" یو قسم تاریخی او
تحقیقی تذکره ده - او ډیر داسے بزرګان چه دَ هغوی تاریخی حالات معلوم
نه وو - یا په هغے کښې اختلاف وو - په هغے باندے ورسره ورسره علمی او
تاریخی بحثونه هم شوی دی - او په خصوصیت سره دَ مغربی پاکستان
دَ شمالمغربی علاقو دَ ډیرو داسے بزرګانو حالات پکښې راغونه شوی دی -
چه تر اوسه پورے یئے ذکر نه وُو شوے. توفیق ورکوونکے الله تعالی
دے او هم دَ الله تعالی جل وعلی شانه دَ پاک ذات نه امید لرم چه دے
کتاب ته مقبولیت حاصل شی. والحمد لله رب العالمین ۵

عبدالحلیم آثر افغانی ولد سید کریم ولد سید احمد ولد خواص خان
ترکلانے. سلارزائے. فتح خانخیل دَ باجوړ. ملاکنډ ایجنسی

(رمضان المبارک سنه ۱۳۸۳ھ)

# تقریظ (رائې)

(له قلمه د عزتمند جناب مولانا حافظ محمد ادریس، صدر شعبۀ عربی پشاور یونیورسټي پشاور)

خلق چه د مور او پلار قبر له څو ورځے لا رشي - نو د شوق جذبه یې کم شي - او چه څه موده تیره شي. نو د میراث د دنیا په لانجو کښې داسے اخته شي - چه په اختر، شبقدر کښې هم ورته تر ګران ښکاري خو سره لا د دے څنګ قبر ونه داسے دي - چه خلق د هغې په زیارت نه ستړي کیږي. او چه هر ځل مزار ته یې دعا کوي نو نوے خوند بیا مومي - که وخت پکار وي - که یې د ملتونو ر پکار وي. او که پیسے پکار وي - په هیڅ څیز دریغ نه کوي - او د مزار د سر نه هر څه زار کوي. داولې؟

دا ځکه چه د دغه مزارونو خاوندان په خپل ژوندکښې د برغ خاوندان وو - او د هغوی د زړه رڼا د خلقو په زړونو کښې رڼاګانے پیدا کولے - د هغوی مثال د روښانه مشعل وو - چه ټول ځاي پرے روښانه وو - هغوي د اسلام بیرغ اوچت کړے وو - او بے خبره خلق یې د خداي او رسول د لارے نه خبره ول - د خداي په مینه مست وو - او د هغه د دین عاشقان وو - نو داسے ژوند یې بیاموندلو - چه نن د قبر د تورو تیرو نه د لکهونو خلقو په زړونو حکومت کوي - او کوم سرونه چه هیچا ته نه ټیټیږي - د هغوي د سلي چوے ته زورپه ډیرا ته وي - دغے تر "روحاني ترون" وسیلے شي - او مونږ مسلمانان هغوي د ځان

سره په دے "ترون" کلک ترلی یو۔

دے وینا ته حاجت نشته۔ چه نن چه په "پښتونخواه" کښی دَ اسلام کومه رنړا خوره ده۔ دا دَ دغه یوځو مزارونو دَ پاکو اروا حو برکت دے۔ چه ټول وطن ئے دَ اسلام په پړی ترلے دے۔ او هر سړے ئے دَ خدائے دَ مینے لیواله کړے دے۔

عجیبه خبره دا ده۔ چه په پښتو ژبه کښی تر اوسه هیڅ یو عالم یا دَ مُصلی خاوند دا کار نه دے کړے۔ چه دَ دغه بزرګانو دَ ژوند پاکیزه حالات دے دَ قام نرو، ښځو ته واوره وی۔ او هغوی ته دَ سبق اخیستلو موقع په لاس ورکړی۔

ځمونږ عزتمند اشنا او خصوصاً ځما دَ سبق ملګرے قاضی عبدالحلیم اثر افغانی په دے حقله دَ مبارکئ ور دے۔ چه هغه په دے پاکه موضوع قلم اوچت که۔ او نۀ دَ پښتونخواه نه بلکه دَ قبلیز او نمرختیز پاکستان دَ ډیرو بزرګانو حالات ئے په ډیر محنت سره راغونډ کړل۔ او یوه ښائسته مجموعه ئے مونږ ته را وړاندے کړله۔

قاضی صاحب د دنیا ډیرے تود سړے لیدلے دی۔ خو شکر دے چه تود سوړ شوے نه دے۔ دَ هغه قلم چه دَ پښتو په ژمکه کښی روان شی۔ نو بے اختیاره لعلونه او ملغلرے رابرڅیره کړی۔ او په کوم موضوع چه لیکل شروع کړی۔ نو دَ خوږے۔ پسته۔ روانے۔ او آوارے ژبے سره الله پاک ورته دَ تحقیق او تالاش داسے طاقت ورکړے دے۔ چه په هغے موضوع باندے غرا و میدان دواړه آوار کړی۔ شپه او ورځ په ځان یوه کړی۔ او داسے عجیبه عجیبه نکتے راوباسی۔ چه عاقلان ورته حیران پاتے شی۔ او د زړه دا خلاصه دَ ده دَ ژور علمی او تاریخی تحقیق قدر او تعریف او کړی۔ لیکل به هر څوک او کړی۔۔

خود تحقیق دَ میدان شاه ځلمی ځنے ځنے وی۔ او د کتابونو نه راغونډ به هرڅوک اوکړی۔ خو په هغے کښې دَ عقل نیلے زغلول، او د منطق او فلسفے په تله سنجول دیو نیم کار دے۔ او قاضی عبدالحلیم آثر افغانی له رب العالمین دا توفیق ورکړے وو چه هغه پښتو ژبه باندے ډیر زیات کار کړے دے۔ زهٔ کله وایم چه قاضی صاحب د مصنفانو د باغ یو دا سے مالیار دے. چه شاړے زمکے تہ اِرم شی۔ نوشاهی باغ او وزیر باغ ترینه جوړ کړی۔ او د ښکلی تحقیق په سبا پښتو ګلونو دَ خپل تالیف رونق زیات کړی۔ په دے کتاب "روحانی تړون" کښې په خصوصیت سره دَ حضرت داتا ګنج بخش علیه الرحمة۔ حضرت جو اخه معین الدین حسن چشتی اجمیری علیه الرحمة او حضرت حاجی عبدالله بهادر کوهاټی علیه الرحمة په حقله چه کومه تاریخی او تحقیقی څیړنه یئے کړے ده۔ هغه دَ یو تاریخی شاهکار حیثیت لری۔ او زهٔ یئے دَ خپلے خبرے په ثبوت کښې پیش کولے شم۔

"پښتو ادب"، "تذکرهٔ سیّد افغانی" "تیرهیر شاعران"، "اتالیق پښتو"، "پښتو قواعد" او "سیرت د پاک رسول" ډیر مشهور دی۔ او س چه ما دَ هغوئ نوے کتاب "روحانی تړون" ولید۔ چه د بزرګانو تیرهیر حالات یئے پکښې راغونډ کړی دی. نو بے اختیاره م یئے لاس ښکل کړل۔ او مرحبا م ورته او وے۔ ځکه چه دَ بزرګانو حالات یئے په دا سے طرز کښې راغونډ کړی دی۔ چه هغه د کراماتو جونګ نه دے۔ بلکه سم تاریخ حالات یئے رایو ځائے کړی دی. او د هغوئ تعلیمات یئے راڅرګند کړی دی. کرامت وقتی خیز دے۔ او تعلیم تر تل تله دائم او قائم خیز دے۔ ځما په خیال په دے موضوع باندے تر اوسه په اردو کښې هم دا سے کتاب لیکلے شوے نه دے۔ چه په

هغې کښې سوچه تاریخي حالات او تعلیمات راغونډ شوي وي. په دې
موضوع چه کوم کتابونه بازار کښې خور خپاره دي هغه د تاریخ او عقل
دواړو نه لرې وي. او د عقیدت په ځای شک او شبه پیدا
کوي.

الله پاک دې د قاضي صاحب دا کوشش په خپل
دربار کښې قبول کړي او د "روحاني تړون" په لړونو کښې
دې تول پاکستان مسلمانان را اوتړي: امین ثم امین:-

دستخط
حافظ محمد ادریس
(صدر شعبه عربي پشاور یونیورسټي)
۲۹ ستمبر ۱۹۶۳ء

# تقریظ

(راي)

(له قلمه دَ غرتمند جناب محمد یونس سیٹهی، ډپټي ډائرکټر دَ محکمهٔ نشرو اشاعت قبائیل پشاور)

پهٔ پښتو، اردو، فارسي کښې او نورو ژبو کښې دَ مسلمانانو روحاني پیشوایانو، اسلامي مبلغانو او دَ دین عالمانو تذکرے داسے خو ډیرے لیکلے شوے دي - ولے یوه تذکره هم تر اوسه څما دَ نظره داسے نه ده تیره شوے. چه پهٔ هغے کښې صرف دَ هغو ولیانو او مرشدانو دَ ژوند حالات او تعلیمات راغونډ کړي شوي وي - کوموچه مغربي او مشرقي پاکستان کښې استوګنه کړے وي - او دهغوي مبارک مزارونه هم په پاکستان کښې موجود وي - څما په خیال دَ داسے یو کتاب ضرورت دَ موجوده وقت دَ ټولو نه لویه تقاضا وه. په دے وجه هم چه دَ پاکستان دَ اسلامي مملکت نوي کهول ته دَ هغو پاکو هستو پیژاند ګلوي ضروري ګڼړلے شي. کوموچه دَ ټولو نه اول په دے علاقو کښې دَ علم او عرفان رڼړا خوره کړے ده. او دلته یے دَ اسلام جهنډے دَ تورے او توپک په زور نه بلکه دَ هدایت او ارشاد په ذریعه اوچتے کړے دي - او په موږ ډیره بانده یے لوئي احسان کړے دے - او بیا په دے وجه هم د داسے یو کتاب ضرورت ډیر محسوس کیدو - چه پاکستان موږ دَ اسلام په نوم جوړ کړے دے - او په موجوده وخت کښې دَ پاکستان دَ حکومت او عوامو دا کوشش دے - چه داسے لارے چارے اولټوي چه په هغے دَ عمل کولو په ذریعه دَ پاکستان مسلمان دَ اسلامي تعلیماتو

او روایاتو مطابق خپل انفرادي او اولسي ژوند تیر کړي۔ او د مادي ترقئ سره سره خپل روحاني او اسلامي قدرونه هم ژوندي اوساتي۔ او هم دغه د وخت تقاضا ده۔

"روحاني تړون" چه د بناغلي "اثر" یو قیمتي، تاریخي او تحقیقي اثر دے۔ ډیر په ښه ډول سره د وخت دا اهمه تقاضا پوره کوي۔ ترکومه چه ځما معلومات دي پښتو ژبه کښې بل داسے کتاب نشته۔ چه په هغے کښې ځمونږ د مشرقي او مغربي پاکستان د روحاني پیشوایانو او د اسلام رهنمایانو د ژوند حالات دومره په تحقیق سره لیکلي شوي وي۔ لوستونکو ته به پخپله دا خبره ښکاره شي۔ چه هم دا پاکے هستئ وے۔ چه د هغوئ په ذریعه د پاک پیغمبر صلی الله علیه وسلم صحیح تعلیمات مونږ ته رارسیدلے دے۔ نو د دوي په تابعداري او پیروي کښې مونږ د پاره د دیني او دنیاوي فلاح او نجات راز پروت دے۔ دوئ په خپل عمل او په خپل تعلیم سره مونږ ته دا خبره ښودلے ده۔ چه ټول مسلمانان د یو بل سره په داسے مضبوط "روحاني" او مذهبي رشتو تړلي دي۔ چه هیڅ طاقت دوي د یو بل نه نهٔ شي جدا کولے۔

دا "اسلامي او روحاني تړون" د جغرافیائي، نسلي او لساني حدودو نه ډیر اوچت دے۔ مسلمانان که هغوي مشرق کښې دي۔ او که مغرب کښې د یو بل سره د مذهب اسلام په حقیقي او "روحاني تړون" سره تړلي دي۔ د دے پیشوایانو او مبارکو هستو دا پاک او سپیځلے تعلیم او س ځمونږ د ژوند د لارے د پاره د مثال کار ورکولے شي۔ حقیقت دا دے۔ چه هم د دے پاکو هستو په روحاني طاقت، په مرسته ځمونږ اسلامي ملک پاکستان جوړ شو۔ او انشاءالله هم د دوئ په روحاني رهنمائے او هدایت به د پاکستان مسلمانان په یو نه شلیدونکے روحاني رشته کښې سره تل

ترتله ترلې وي. او د اسلامي رور ولئ په یو همیل کښې به تر ابده پېټلې وي.

د دے ټولو مرشدانو د ژوند یو مقصد وو. او هغه نصب العین په ډیرو مختصرو الفاظو کښې اعلاي کلمة الله وو.

د کتاب مؤلف ښاغلی عبد الحلیم اثر د دے کتاب په تالیف کښې چه کومه خواري کړے ده. او د خپل تحقیق او څیړنې په ذریعه کوم حقائق یئے برڅیره کړي دي. هغه یو اځے هم د دوئ برخه ده. هم داسے اهل قلم د یو ملت شاندار تاریخي پس منظر د خپل قلم په سوکه نمایانه او روښانه کوي. په یو ملت کښې د د غسے اهل قلمو فقدان د ملت د ګمنامۍ باعث ګرځیږي. د فارسي ژبے یو شاعر په دے حقله ښه ویلي دي:

درد فتر زمانه فتد نامش از قلم
هر ملتے که مردم صاحب قلم نداشت

ښاغلی عبد الحلیم اثر د پاکستاني ملت د روحاني پیشوایانو د ژوند حالات او د هغوئ تعلیمات په ډیر تحقیق سره لیکلي دي. چه د ملت موجوده او آئنده نسلونه خپل دیني او قومي مشران هیر نه کړي. او د دے مشرانو د لوړ نصب العین په لاره کښې د ځان. د مال عملي قربانئ ورکولو ته هر وخت تیار وي. پکار دي چه دا کتاب د هر پاکستاني مسلمان په کور کښې موجود وي. او هر څوک د دے رهنمایانو د ژوند حالات او ارشادات د ے او لولي او خپل ایمان د ے پرتازه کړي. د غه کار د دے هستود احسان ادا کولو د ټولو نه بهتره طریقه ده.

زه په آخر کښې یو ځل بیا فاضل مؤلف ته د داسے مفید جامع او تحقیقي کتاب په پیش کولو مبارکباد وایم. او امید کوم چه دا به د پاکستاني ملت د روښن فکره او منوره طبقے د پاره ډیر ګټه ور ثابت شي. او د وئ به د خوږ وطن د مادي

ترقئ دَ کوششونو سره سره دَ خپل "روحانی تړون" دَ
مضبوطه دَ پاره زیات نه زیات ټکل اوکړي۔
خدايې دې فاضل مؤلف ته نورهم برکت
ورکړي اودا کتاب دې دَ عامو مسلمانانو دَ فائدې
دَ پاره مقبول اوګرځوی۔

محمد یونس سیټهی
(ډپټي ډائرکټر ټرائیبل پبلسټي آرګنائزیشن،
پشاور)
(مؤرخه ۱۰ ر اکتوبر سنه ۱۹۶۳ء)

# تقریظ (راي)

(لقلمه دَعالی قدر عزتمند جناب سید نصر من الله مشوانی بی، اے، میرانشاه شمالی وزیرستان)

ماددے کتاب "روحانی تړون" زیاتے حصے اولوستلے. په دے کښې دَ پاکستان دَمشرقی اومغربی دواړو حصو دَ هغه مشاهیر واولیاء الله بزرګانو عالمانو اوقومی مشرانو دَ ژوند حالات په پوره تحقیق سره راجمع کړی شوی دی. چه هغوئ پخپل ژوند کښې دَخپلے نیکئ پاکیزګی تقوی اوپرهیزګارئ په وجه کامیاب اودَعزت اوافتخار ژوند تیر کړے دے. اودَخپلے روحانی صفائ په ذریعه ئے دَعامو مسلمانانو دَروحانی رهنمائیے اوپیشوائیے اوچته درجه موندلے ده.

اسلام مونږ ته دَ زړه. دماغ اودروح دَصفائیٔ تعلیم راکوی. اسلام مونږ له ته دنیکو اخلاقو اوپاکیزه ژوند تیره ولو درس راکوی. اسلام مونږ ته داښائي چه ټول مسلمانان یوړ ورونړه دی. اتحاد او اتفاق داسلام هغه پاکیزه تعلیم دے. چه نن دد مے په برکت ټول مسلمانان قوم یو وحدت دے. اویوملت دے. اوحمونږه دغه بزرګان اوروحانی رهنمایان چه نن دَهغوئ نوموونه دَاسلامی تاریخ په پاڼو پاتے دی. اوحمونږ عوام او خواص ټول دهغوي نوموونه ډیر په قدر او عزت سره اخلی. دهغے باعث هم دغه دے. چه دوي پخپله هم دَاسلام په اصولو محکم پاتے شوی دی. اوقوم ته ئے هم دَنیکئ. نیکو کارئ اوچتو اخلاقو. انسانیت. دوستئ .انصاف. مساوات. روادارئ. اتحاد. اتفاق اودَاسلام اودَمسلمانانو

د سرلوړي د پارکاد قربانۍ - ایثار او خلوص نه کار آخیستلو تعلیم ورکړے دے - او دا هم د هغوی د نیکو کوششونو نتیجه ده - چه نن په برصغیر پاک او هند کښې دین اسلام - او مسلمان قوم یو عظیم الشان قوت او طاقت دے - د دے کتاب نوم "روحانی تړون" ډیر موزون نوم دے - مونږه د ټولے دنیا مسلمانان د یو "روحانی تړون" په بناء د یو بل سره رونړه یو - دا سے رونړه چه د نسل - ملک، وطن او قوم هیڅ یو امتیاز د دغے په منځ کښې نه شي حائل کید لے - او مونږه د پاکستان لس کروړه مسلمانان هم د دے "اسلامی روحانی تړون" په بناء چه هر کله یو لاس یو موټی او یو طاقت شولو - نو د دنیا په نقشه باندے د پاکستان په نوم یو عظیم الشان اسلامی حکومت او مملکت په وجود کښې راغلے دے - او نن هم د دغه "روحانی تړون" برکت دے، چه مونږه د مشرقی او مغربی پاکستان ټول مسلمانان یے یو تن او وجود کړی یو - او مونږ نه یې د دنیا یو عظیم قوم او ملت جوړ کړے دے - او هم دغه د اسلام روحانی تړون دے - چه نن د پاکستان اسلامی حکومت د دنیاد ټولو اسلامی حکومتونو غم درد او خوشحالی دوا ړه د اسے ګڼړی لکه خپل - او په هره نازکه موقع باندے د دنیلے اسلام د هر یو ملک او هر یو قوم سره چه پاکستان کومه همدردی کړے ده - او هر وخت یے کوی - او کوم د رورولۍ لاس او امداد چه یے ورسره کړے دے او اوس یے هم کوی - نو د دے ټولے همدردۍ باعث هم دغه "اسلامی روحانی تړون" دے -

نن که اسلام او مسلمان قوم د دنیا یو لوئ عظیم الشان قوت او طاقت دے - نو د دے راز هم دغه دے - چه په یو خدای - یو رسول او یو قرآن باندے ایمان لرلو - یو قبلے ته مخ کولو - او یو کلمے وئیلو په وجه د ټولو مسلمانانو په زړونو او روح کښې یو والے موجود دے -

یولوئ روحانی وحدت موجود دے - او دا یو داسے عظیم الشان قوت او طاقت دے. چه دَ دنیا ټول مادی طاقتونه دَ دے په مخکښ نه شی او دریدلے... د دے کتاب "روحانی تړون" افادی پهلو دا دہ. چه په دے کښ مونږ ته دَ خپلو هغه مشرانو پاکیزه کارنامے را وړاندے شوے دی. چه هغوئ خپل ژوندون خالصاً دَ خدائ د رضا دَ پاره د مسلمان قوم دَ دینی او دنیاوی بهترئ دپاره وقف کړے وو - او دَ مسلمان قوم دَ معاشی معاشرتی، تهذیبی او تمدنی ترقئ دَ پاره - او په قوم کښ دَ وحدت او اتفاق راوستلو دَ پاره یے کوششونه کړی وو - ښکاره خبره دہ - چه دَ خپلو داسے مشاهیر و دَ حالاتو نه خبردار کیدل په عام پاکستانی ملت او خصوصاً ځمونږ په نوئ کهول کښ دَ خلوص او ایثار جذبه پیدا کولے شی - او نن ورځے چه ځمونږ کوم موجوده نسل دے دوئ ته او ورپسے راتلونکی نسل ته هم دَ دے څیز ضرورت دَ ہے -

د دے کتاب یو بله پهلو چه هغه دَ ستائینے حق لری - دا دہ. چه دا کتاب په علمی، تاریخی او تحقیقی طرز سره لیکلے شوے دے. پدے سلسله کښ دَ مثال په طور دَ حضرت خواجه یحیٰ کبیر، حضرت سید شیخ رحمکار کاکا صاحبؒ - حضرت شیخ عبد الله المعروف حاجی بهادر دَ کوهاټ او دَ حضرت پیر سید علی پیر بابا - او حضرت شاه محمد غوث قادری حالات چه م لوستلی دی - نو هغے دمخه دا وئیلے شم. چه فاضل مؤلف عبد الحلیم اثر افغانی په دے کتاب کښ صرف تاریخی واقعات او حالات نه دی راجمع کړی - اونه یے دَ بزرګانو دَ عامو تذکرو او سوانحعمرو په شان فقط دَ کرامتونو په واقعاتو راټولولو اکتفاء کړے دہ - بلکه دَ هر یو بزرګ دَ ژوند دَ تاریخی حالاتو بیانولو په سلسله کښ یے په خالص علمی تحقیقی او تاریخی رنګ کښ تفصیلی بحثونه کړی دی - د مخه تاریخی

زمانه یې متعینه کړې ده. او هم په دغه طرز سره یې د دغه د ژوند واقعاتو او د دغه پیغام او تعلیماتو له ترتیب ورکړې دې. چه په دغو باندې دا کتاب د نورو عامو تذکرونه ممتاز شوې دې. اُمید دې چه د دې کتاب د مؤلف دا کوشش به د خدای پاک په بارګاه کښې مقبول شي.

او عامو مسلمانانو ته به ترینه فائده او رسیږي.

دستخط

د سیّد نصر من الله مشواني. پولیټیکل ایجنټ د میرانشاه

شمالي وزیرستان

(۱۶/ اکتوبر سنه ۱۹۶۳ء)

# تقریظ (راي)

(له قلمه دَ عزتمند جناب عبدالودود خان ریسرچ آفیسر دَ وزارت تعلیم
او اطلاعات دَ مرکزي حکومت پاکستان راولپنډی)

په سر دَ مزکے هر قدم په احتیاط سره ږده
دَ مزکے لاندے عجب ښکلی نازنین پراته دی

(حاجی محمّد امین مرحوم)

دَ آدم نه واخله تر دے دَمه دَ مرګ اوژوند سلسله روانه ده. او تر قیامته به جاری وي - ډیر ښکلي کسان دَ دے تور وخاور ولاندے شول. مونږ وینو چه دد ے مړو په بعضو قبرو نوجنډے لګے ښکاري. دجمع په شپه پرے ډیوے بلیږي. او خلق دلرے لرے نه ددوئ سلام ته راځي. دا ځکه چه دے کسانو په خپل ژوند کښې همیشه دَ الله رضا کړے وه. د ژوند واګے ئے دَ نفس) نه تر و رلے وے. هم دا وجه ده - چه دوی په اولیاء الله نومیږي. عام پښتانه اولیاء الله ته دَ "خداي پاک نیازبین" او "دَ برخے خاوندان" وائي. دَ هر پښتون په مازغو کښې دا خبره ناسته ده. چه دے کسانو له خدائے پاک په ژوند کښې خه برخه ورکړے وه - او دَ هغې برخے په وجه دوی ته دا لوړه درجه حاصله شوے ده.

مونږ خپل ژوند کښې دَ باباګانو دَ مقام نه سترګے نه شو پټولے. مونږ دے باباګانو، دَ خدائ نیازبینو، او د برخے خاوندانو له څو. او ددوي په طفیل دَ خدائ پاک نه خپل مرادونه غواړو - ولے مونږ له دا هم پکار دی. چه دے بزرګانو دَ حال نه ځان خبر کړو - او دهوئ

دَ نیک سیرت په قالب کښې خپل ژوند هم واچوَو. دَ دے دَپاره ضرورت وُو چه دے بزرګانو په ژوند په کومه طریقه تیره وُلو. چه دوی دا دومره لویه مرتبه حاصله کړے ده. که کید ے شی. چه مونږ هم دَ دوی دَ ماضی په رڼا کښې دَ خپل حال سره دا سے اوکړو. چه مستقبل مو روښانه شی. دا کار دَ قاضی عبد الحلیم په شان دَ یو پوهے او خواری کښ لیکوال نه په غیر بل چا نه شو کوُلے. آفرین شه په هغه چه را پاخیده. او د ټول پاکستان دَ " برخ خاوندان " یے " روحانی ترون " په شپول کښې دا سے رنګ پیش کړل. چه نه یواځے دا ضرورت پوره شه. بلکه دَ پښتو ادب یوه زبردسته خلاء هم ډکه شوه. زه هغه له په دے دا سے ښه کارمبارکی ورکوم. او امید کوم چه پښتانه رونړه به دَ دے نه فائده واخلي.

دے کتاب ته ترتیب دَ تاریخ په لحاظ ورکړے شوے دے. دَ ستهٔ ۲۰۰ هـ نه شروع کیږی او په سنهٔ ۱۳۲۱ هـ باندِ ختم کیږی. یعنے که څوک څه کم دَ " زر و کالو " تاریخ او دَ " روحانی مشرانو " دَ ژوند حالات په یو ځای مطالعه کول غواړی. هغوی دے د " ګران اثر صاحب " دا " اثر " اولولی.

دا خبره به مونږ دمشرانو نه آوریده. چه پښتانه په ایره مسلمانان شوی دی دَ دوی او دَ اسلام رشته ډیره مضبوطه ده. دَ قاضی صاحب دا کتاب تاسو ته اوښائي چه دَ روحانی مشن اکثر چلوونکی پښتانه وُو. که هغه په ډهاکه کښې وُو. که په پنجاب کښې وُو. او یا که په سند ه کښې وُو.

دستخط

عبد الودود خان ریسرچ آفیسر دَ مرکزی وزارت تعلیمات او اطلاعات دَ حکومت پاکستان، راولپنډی ؞

(۱۴ / نومبر سنهٔ ۱۹۶۳ ء)

# تقريظ (راي)

(له قلمه د عزتمند جناب شيخ محمد حسين صاحب پوليټکل ايجنټ د کرم ايجنسي)

په قرآن مجيد کښ او د رسول پاک صلی الله عليه وسلم په احاديثو کښ ځاي په ځاي د خداي سره د تعلق قايم کولو. خداي ته ځان رسولو. په خداي توکل کولو - د نفس او شيطان د مخالفت کولو هدايت شوے دے. او د هغه منزلونه او مقامات دي - چه هغه د اسلام د تعليم اصلی او صحيح تقاضا ده - او په دے باندے د اسلام د روحانيت او معرفت بنياد قايم دے. مونږ له د اسلامي روحانيت او معرفت په معنی ځان پوهه کول پکار دي. خبره دا ده. چه د شريعت، طريقت، حقيقت، او معرفت مجموعے ته روحانی صفائي وئيلے شي - او د معرفت خاوند هغه دے چه د دے څلورو وارو بنيادي څيزونو د حاصليدلو په ذريعه د هغه په زړه او روح کښې صفائي راغلے وي - او ايمان ئے پرے قوي شوے وي - د دے خبرے وضاحت داسے دے. چه شريعت يو دستور العمل. ضابطه او قانون دے. او په هم دے دستور العمل باندے عمل کولو ته طريقت وائي. بيا د دغه عمل کولو په ذريعه چه يو بنده د خداي پاک په کومو رازونو باندے آگاه شي دے ته حقيقت وائي بيا د دغه آگاهئ ته يعنے د علم د عملي اړخ نه چه د يو مسلمان په زړه کښ کومه رڼا حاصله شي. هغے ته معرفت وائي. او چه دا معرفت چا ته حاصل شوے وي - يعنے زړه ئے روښانه شوے وي. هغے ته عارف او بزرګ وئيلے شي :-

څو مونږ د مسلمانانو تاريخ په دے ګواه دے. چه د کومے ورځے نه دُنيا ته د امقدس دين اسلام راغلے دے. د هغے نه واخله ترننه

ورځې پورې دا دنیا دَ دغه شان عارفانو نه خالي شوې نه دَه. او د مسلمانانو تیرشوې دخوارلس سوه کالو تاریخ موږ ته دا ښائي چه عامو مسلمانانو په هر یو دور کښې د دې خپلو روحاني مشرانو. عارفانو او بزرګانو په ژوند کښې هم قدر کړې دې. او د هغوي دَ وفات نه روستو هم ورسره عقیدت ساتلې دې. او ثبوت يې هغه بې شمیره مزارات دي. چه دَ ملک په ګوټ ګوټ کښې ځمونږه دَ بخوانو بزرګانو او روحاني رهنمايانو دَ یادګارونو په شکل تراوسه باقي پاتې دي. او د عامو خاصو مسلمانانو دَ عقیدت مرکزونه دي.

مونږه پاکستان دَ اسلام په نوم حاصل کړې دې. او دا مونږه اراده دَه چه دَ مادي ترقي سره سره دَ خپل اسلامي تهذیب، تاریخ او ثقافت هغه روایات او اقدار هم راژوندي کړو چه دَ اغیارو دَ غلامۍ په ورځو کښې یا ځمونږ نه هیر شوي دي. یا تر ینه غافله شوي یو. د دې نیک مقصد د حاصلولو د پاره چه کومې ګڼې طریقې کیدلې شي. په هغې کښې یوه لویه طریقه دا دَه. چه مونږه خپل ځان دَ خپلو روحاني رهنمايانو د ژوند د حالاتو نه او د هغوئ دَ تعلیماتو نه خبر کړو. او په هغې باندې دَ عمل کولو کوشش اوکړو. او دَ دنیا په دې بوخو ورځې ژوند کښې دَ ځان دَ پاره دَ آخرت توښه اولټوو.

دَ پاکستان په مشرقي او مغربي حصو دواړو کښې بې شمیره اولیاءالله تیر شوي دي. او په اردو. فارسي ژبو کښې دَ هغوي دَ حالاتو ګڼ کتابونه موجود دي. لیکن دا کتابونه په عام طور د بیلې بیلې علاقې دَ بزرګانو په حقله دي. لکه دَ سنده د بزرګانو د حالاتو ځان له کتابونه دي. دَ پنجاب دَ بزرګانو ځان له او دَ بنګال دَ بزرګانو ځان له. یو خو تر نن ورځې پورې دَ سرحد او قبائیلي بزرګانو په حالاتو باندې کوم کتاب نه وُو. او بله دا چه تراوسه پورې په اردو، فارسي. پښتو، سندهي یو ژبه

کښې .. اسې کتاب نه وو چاپ شوې چه په هغې کښې د پاکستان دد واړو حصو دَ بزرګانو دَ حالاتو سره سره په خصوصیت باندې دَ پاکستان دَ قبائیلی علاقو دَ بزرګانو حالات هم بیان شوي دي.

زه دَ بناغلی رور عبد الحلیم اثر افغانی د دې قابل قدر تالیف ،،روحانی تړون،، په لیدلو زیات په دې خوشحاله شوم. چه دې ځنځیله هم دَ پاکستان دَ قبائلی علاقې ملاکنډ ایجنسي یو قبائلی دې. او څرنګه چه دَ ده دَ پاکستان په ادبی تاریخ کښې په اول ځل د اسلامي ادب او تاریخ یو د اسې شاهکار پیش کړو چه په هغې کښې دَ پاکستان دَ مشرقی او مغربی دواړو سا نګو دَ بزرګانو حالات په تحقیقی رنګ کښې په یو ،،روحانی تړون،، کښې راغونډ کړې شوي دي. نو هم د غه شان په اول ځل ئې د اشاندار کارنامه هم انجام ته اورسوله. چه دَ پاکستان دَ قبائلی علاقو دَ بزرګانو د حالاتو نه ئې دَ باقي پاتې پاکستان عام مسلمانان خبردار کړل. چه سو ونه کاله پخوا د دې قبائلی علاقو نه روان شوي وو. دَ روحانیت او معرفت رونړ مثال ئې په لاس کښې آخیستې وو. او د برصغیر پاک او هند تر آخر سر پورې ئې رسولې وو.

ما چه د بناغلی اثر افغانی په دې کتاب کښې د پیښو را او ډیره ډیر نو دَ قبائلی علاقو په بزرګانو کښې دَ حضرت اخون صاحب دَ سوات. حضرت اخون الیاس صاحب دَ دیر. اخون فیض الله خان صاحب دَ اورکزی تیراه. حضرت شیخ ابراهیم دانشمند ارمړ دَ وزیرستان. شیخ صدر جهان دَ درابن ډیره اسماعیل خان. او حضرت میاں عبد الحکیم کاکړ دَ کوئټه ډویژن حالات اولوستل. چه دَ نن ورځې نه سو ونو کاله پخوا ئې دَ هند نه واخله تر بنګال پورې دَ اسلام رنړا خوره کړې ده. او جهاد ونه ئې کړي

دی۔ نو دا م محسوسه کړله چه دَ پاکستانی قبائلو ایمانی جذبه به دَدے خپلو مشاهیر و دَ حالاتو په لوستلو نوره هم مضبوطه شی۔ او د دغه پخوانو مشاهیر و بزرګانو دَ تعلیم په اثر به دوئ هم هغه شان دَ دین اسلام خدمتونه انجام ته اورسو وے شی. لکه چه دَ دغه بزرګانو په ژوند کښې دَ هغه زمانے پخوانو قبائلو چه سرته رسولی وُو۔

حَما په نظر کښې دا کتاب "روحانی تړون" په هر لحاظ سره ډیر غوره او بهترین کتاب دے. زهٔ د دے په تالیف سناغلی عبد الحلیم اثر له مبارکی ورکوم. او دعا کوم چه کوم نیک مقصد دَ پاره دا کتاب لیکلے شوے دے۔ عامو مسلمانانو ته ترینه دغه نیکه فائده اورسیږی. او دَ خدائے پاک درګاه کښې ورته مقبولیت حاصل شی۔

شیخ محمد حسین

(سی۔ ایس۔ پی) پولیٹکل ایجنٹ کرم ایجنسی۔

پاړه چنار ۔

۲۵ ر نومبر سنهٔ ۱۹۶۳ء

# حضرت اصحاب بابا رضی اللہ عنہ

حضرت اصحاب بابا رضی اللہ عنه د رسول اکرم صلی اللہ علیه وسلم یو جلیل القدر اصحابی دے د دوی نوم مبارک حضرت سنان ابن سلمه ابن محبق هذلی دے۔ په سنه ۴۵ھ کښې د مغربی پاکستان د وادئ پیښور په علاقه داؤدزائي کښې د کفارو په خلاف په جهاد کښې شهید شوے دے او مزار مبارک یې د علاقه داودزائی د موضع متې خوا سره دے۔

هرکله چه د سابق صوبه سرحد په علاقه کښې د حضرت اصحاب بابا د مزار مبارک سره د عام او خاص مسلمانانو ډیر زیات عقیدت دے. او د دے علاقے د ټولو بزرګانو په زیارتونو کښې یو ممتاز درجه لري. او بل خوا ته سره د دے نه عام خلق د دے نه ناخبره دي چه دا د رسول پاک صلی اللہ علیه وسلم د کوم یو صحابی مزار دے - په دے وجه دا مناسب معلومیږي چه وادی پیښور ته د دوی د راتللو - او شهادت موندلو د بیان نه مخکښې برصغیر پاک او هند ته د مسلمانانو د راتللو او د غزاګانو ابتدائی حالات په اختصار سره بیان کړو -

په دے سلسله کښې دا یاد لرل پکار دي. چه کومے علاقے نن ورځ په جغرافیائي طبعي او سیاسی طور سره د ایران. افغانستان. سرحد پنجاب. سنده. او بلوچستان په نومونو یادیږي. د مسلمانانو د راتللو په وخت کښې د دے پورتنو علاقو او ملکونو نومونه دا وو - ایران. کرمان. مکران. سیستان. طخاوستان. کابل. زابل. خراسان. زرنج. قفص. زوله. توران. سنده. په دے کښې د وادی پیښور رچوانے د سنه ۱۲۰۰ ق م نه ورو نوم روه وو - او بیا چه د سنه ۲۵۶ ق م نه روستو په دے علاقه

بدھ مذھب ته عروج حاصل وو۔ نوبیاد اعلاقه دځه نورو علاقو په شمولیت سره دَ بُدھیه په نوم یادید له۔ دَ تاریخ فرشته (جلد ۱ ص ۱۸) دَ بیان مطابق دَ بدھیه علاقه په اوبن دوالی دَ باجوړنه دَ قلات ډویژن دَ پخوانی مقام قند ابیل پورے وه۔ اوپلنوالے ئے دَ کوئټه ډویژن دَ سبی نومے مقام نه دَ دریاے سندھ پورے وو۔

دَ تاریخ کامل ابن اثیر (جلد ۳ ص ۳۵) دَ روایت مطابق ایران۔کرمان۔ سیستان درے واړه ملکونه تر سنه ۲۴ھ پورے دَ حضرت عمر رضی اﷲ عنه دَ خلافت په زمانه کښ فتح شوی وو۔ په سنه ۲۲ھ کښے چه ایران په مکمل طور سره فتح کړے شو۔ نو دَ حضرت عبد اﷲ ابن عامر ابن ربیع رضی اﷲ عنه په مشری کښ پرله پسے دَ کرمان۔ سیستان او مکران علاقے هم فتح شوے۔

څه ورځے پس ددے علاقے خلقو چه بغاوت اوکړ۔ نو په سنه ۲۳ھ کښے دَ حضرت سهل ابن عدی او حضرت عبد اﷲ ابن عبد اﷲ ابن عتبان رضی اﷲ عنهم په مشرئ کښ دوباره مکران فتح کړے شو۔ دَ حضرت عاصم ابن عمر او حضرت عبد اﷲ ابن عمیر رضی اﷲ عنهم په مشرئ کښ سیستان فتح کړے شو۔ او دَ حضرت حکم ابن عمر تغلبی په مشرئ کښ دَ مکران علاقه فتح کړے شوه۔ او ددے فتوحاتو حاصلولو نه پس دَ حضرت عمر رضی اﷲ عنه دَ یو حکم مطابق نوره پیش قدمی کول بند کړے شوه۔

په سنه ۲۴ھ کښ چه حضرت عثمان رضی اﷲ عنه خلیفه شو۔ نو په سنه ۲۵ھ کښ دَ حضرت عبد اﷲ ابن عامر ابن کریز رضی اﷲ عنه په مشرئ کښ کابل فتح کړے شو۔ لیکن چه دَ مسلمانانو لښکر واپس شو نو دے خلقو بغاوت اوکړو۔ په سنه ۲۸ھ کښ دَ حضرت عبد الرحمان ابن سمره ابن حبیب قریشی رضی اﷲ عنه په مشرئ کښ چه دوباره کابل فتح کړے شو۔ نو دَ کتاب "افغانستان ویک نگاه اجمالی به تاریخ آن" دَ روایت

مطابق د کابل په علاقه کښې خلقو ته دَ اسلام دَ تعليم ورکولو دَ پاره حضرت عبد الرحمان ابن تميم رضی الله عنه او حضرت جبير رضی الله عنه مقرر کړے شول ـ څه موده پس دَ کابل بادشاه او لښکر په بے خبرئ کښې ئے دغه دواړه صحابه کرام شهيدان کړل ـ د دوئ دواړو زيارتونه دَ کابل په ښهر کې واقع دی. او په شهدائے صالحين يادېږی. په دغه پسے په سنه ۲۹ هـ کښې چه دَ حضرت عبد الله ابن عامر رضی الله عنه په ځائ حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه دَ ټولو مشرقی ملکونو حاکم اعلیٰ مقرر کړے شو ـ نو حضرت عبد الله ابن عمير ليثی رضی الله عنه ئے دَ سيستان حاکم مقرر کړلو او دغوئ په مشرئ کښې کابل په دريم ځل فتح کړے شو ( کامل ابن اثير جلد ۳ صفحه ۷۷ )

دغه شان هم په دے سنه ۲۹ هـ کښې دَ مکران علاقه يو ځل بيا دَ حضرت عبيد الله ابن معمر رضی الله عنه په لاس ـ او دکرمان علاقه دَ حضرت عبد الرحمان بن عبيس رضی الله عنه په لاس سر دوباره فتح شولو ـ دَ سيستان حکومت حضرت ربيع ابن زياد حرثی رضی الله عنه ته او دَ کرمان حکومت حضرت مجاشع ابن مسعود رضی الله عنه ته حواله شو ـ او حضرت ابن معمر پخپله د خراسان په لور جهاد ته روان شو.

حضرت مجاشع ابن مسعود رضی الله عنه دَ کرمان دَ علاقے نه دَ افغانی سيستان په لوری غزا له راروان شو ـ او دَ موجوده قلات غلزائي او دومنډي په دَ علاقو فتح کولو نه روسته دَ موجوده خوست علاقه ئے هم فتح کړله. او دلته ئے دَ عربو غازيانو څه خاندانونه هم آباد کړل. (ابن اثير جلد ۳ صفحه ۸۰)

د دغے نه روستو دَ حضرت ربيع ابن زياد رضی الله عنه په مشرئ کښې دَ افغانی سيستان ـ موجوده جنوبی افغانستان، دَ مغربی پاکستان دَ پېره ږويږن قبائلی علاقے او دَ بلوچستان شمالی او شمال مغربی

حصے فتح شولے۔ خو موده پس چه حضرت ربیع ابن زیاد رضی الله عنه
خراسان ته د حاکم اعلیٰ حضرت عبدالله ابن عامر رضی الله عنه لیدلو
له لاړ. نو مقامی خلقو بغاوت اوکړلو۔ او مقامی مسلمانان حاکمان یې دخپلو
علاقو نه اوکښنل. هرکله چه حضرت عبدالله ابن عامر رضی الله عنه
د د غې نه خبر شو۔ نو حضرت عبدالله ابن سمره ابن حبیب قریشي رضی
الله عنه یې د دے علاقو والی مقرر کړلو. چونکه حضرت ابن سمره رضی
الله عنه لوتجربه کار آفسر وو۔ د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم
صحبت یافته صحابی وو۔ او د دے نه مخکښ یې په سنه ۲۸ھ کښ کابل فتح
کړے وو۔ هغه چه راغلو نو زرنج ښهر یې فتح کړلو۔ بیا د زرمل او برمل
او کوه کسیٰ په منځ کښ چه کومه علاقه ده. (یعنی د افغانستان سمت جنوبی
او د مغربی پاکستان ډیره ډ ویژن د شمالی او جنوبی وزیرستان او د کوټه
ډ ویژن د فورټ سنډیمین علاقے) دا یې فتح کړلے ورپسے میدانی علاقو ته
راکښته شو۔ د بنوں، ډیره اسماعیل خان، کوهاټ علاقے یې فتح کړلے. د دے
نه چه فارغ شو نو د وادیٔ کرم په لاره واپس شو۔ او د کابل، غزنی او قندهار
په علاقو کښ چه کوم خلق باغیان شوی وو۔ د هغوئ علاقے یې دوباره فتح
کړلے. او خپل دارالحکومت زرنج ته واپس اوګرځیدو۔ په دے اعتبار سره د سابق
صوبه سرحد جنوبی اضلاع او ملحقه قبائلی علاقے۔ او د بلوچستان د کوټه
ډ ویژن علاقه او د افغانستان د سمت جنوبی علاقے په اول ځل او په مکمل
طور سره د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د د غه جلیل القدر صحابی
حضرت عبدالله ابن سمره ابن حبیب قریشي رضی الله عنه په لاس سنه ۲۹ھ
کښ فتح شوی دی چه دا د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت زمانه وه.
په سنه ۳۵ھ کښ چه حضرت علی رضی الله عنه خلیفه شو۔ نو د دوئ د
خلافت په زمانه کښ د حضرت ربعی ابن کاس عنبری رضی الله عنهما په لاس

دَ سیستان ټوله علاقه سر دوباره فتح شوله - او د حضرت ثابت ابن دعور رضی الله عنه په مشرۍ کښې دَ جنوبی افغانستان او دَ قلات ډویژن ټولے علاقے فتح شولے -

په سنه ۴۰ھ کښې دَ حضرت علی رضی الله عنه د شهادت نه پس چه حضرت امیر معاویه رضی الله عنه امیر شو - نو په سنه ۴۲ھ کښې حضرت حارث ابن مُرّه عبدی رضی الله عنه دَ بلوچستان دَ قلات (قیقانان) په علاقه باندے یوه سخته حمله اوکړله - او په هغے کښې د دے سره نور اکثره غازیان شهید شول - د دوئ دَ شهادت نه پس حضرت عبد الله ابن سوار عبدی رضی الله عنه د دے علاقے دَ فتح کولو دَ پاره مقرر شو - هغه د څلور زره غازیانو سره راغے - مکران ئے فتح کړو - څو میاشتے ئے دلته تیرے کړے - بیا ئے دَ قلات ډویژن باقی پاتے علاقه فتح کړله - او بیا واپس دمشق (شام) ته لاړه - څه نیتهِ روستو بیا قلات ډویژن ته راغے او دَ تاریخ یعقوبی جلد ۱ صفحه ۲۷۸ او تاریخ کامل ابن اثیر جلد ۳ صفحه ۲۶۶ مطابق دَ مقامی ترک قوم دَ لاس نه سره دَ خپلو غازیانو ملګرو شهیدان شول - چه د دے ټولو اصحاب کرامو رضی الله عنهم مبارک مزارونه په قلات کښې دی -

دیخوا ته دا واقعات پیښ شول او بل خوا حضرت عبد الرحمان ابن سمره رضی الله عنه چه دَ کابل دَ فتح نه او زګار شو - نو دَ خپل لښکر یو بهادر غازی او دَ رسول پاک جلیل القدر اصحابی حضرت مُهَلَّبْ ابن ابی صفره رضی الله عنه له ئے د مجاهدین اسلام یو لوئ لښکر ورکړو - هغه دَ کابل - ننګرهار په لاره راغے درهٔ خیبر ئے فتح کړه - وادئ پیښور ته راغے - دا علاقه ئے فتح کړے - دَ اټک نه پورے و وت دَ ملتان پورے دَ پنجاب شمالی او جنوبی علاقے ئے فتح کړے - ورپسے دَ وادی سنده شمالی علاقے او دَ بلوچستان دَ کوئټه ډویژن علاقے ئے فتح کړے - دَ قلات په مقام ئے دَ ترک قوم دَ کفارو سره

سخته غزا اوکړله. او دلته ئے هم برے بیا موندلے. په تاریخي اعتبار سره حضرت مهلب ابن ابی صفره د رسول پاک صلی الله علیه وسلم اولنی اصحابی دے. چه دَ دوئ په مشرئ کښې په سنه ۴۴ھ کښې دَ درهٔ خیبر په لاره دَ وادي پیښور علاقه مسلمانانو فتح کړے ده. او دلته د کلمهٔ توحید لا اله الا الله محمد رسول الله نعره پورے شوے ده. ظاهره خبره ده. چه دوئ په دے غزا کښې دَ وادئ پیښور او پنجاب علاقے فتح کوڼے. نو په دے اسلامی لښکر کښې چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم کوم اصحاب شامل وُو. په هغوئ کښې بے شمیره اصحاب کرام په دے علاقو کښې شهیدان شوی دی. اونن چه په خصوصیت سره دَ پښاور د ویژن په علاقو کښې دَ پخوانو کفارو دَ آبادو دَ ډهیرکو په خوا پورے دَ شهیدانو کوم مزارات دی. په هغے کښې به دَ دغه سنه ۴۴ھ دَ اولني جهاد په موقع دَ شهیدان شوُو اصحاب کرامو رضی الله عنهم مبارک مزارونه هم موجود وی.

مخکښې دا بحث تیر شوے دے. چه حضرت عبدالله ابن سوار عبدی رضی الله عنه په سنه ۴۲ھ کښې دَ قلات په مقام سره دَ خپلو ملګرو غازیانو شهیدان شوی وو. چنانچه دَ دغے واقعے نه دوه کاله روستو په سنه ۴۴ھ کښې دَ خراسان حاکم اعلیٰ حضرت زیاد رضی الله عنه اولګیده دَ حضرت ابن سوار عبدیؓ شهید دَ نیمګړی پاتے مهم د سرته رسولو دَ پاره ئے حضرت سنان ابن سلمه ابن محبّق هذلی رضی الله عنه مقرر کړلو. دَ تاریخ بلاذری ص۴۳۲ دَ بیان مطابق حضرت سنان رضی الله عنه ډیرلوئ عالم. فاضل او دَ خدائ نه ویره لرونکے انسان وو. څه وخت چه دے دَ هندوستان پولے ته راورسیده نو دَ مکران خلق باغیان شوی وُو. حالانکه د دے نه مخکښې حضرت حکم ابن جبله عبدی رضی الله عنه دا علاقه فتح کړے وه. حضرت سنان رضی الله عنه چه راورسیده نو په

ډیره بهادرۍ سره یې دا علاقه یوځل بیا فتح کړله - او د دے علاقې د ابادۍ د پاره یې اقدامات اوکړل. څه ورسته پس د خراسان حاکم اعلیٰ زیاد رضی الله عنه اولګیده. د حضرت سنان ابن سلمه رضی الله عنه په ځائے حضرت راشد ابن عمر جدیدی رضی الله عنه د دے علاقو حکمران کړو. لیکن لږ ورسته پس د قلات د غرانه د واپسۍ په موقع د مند او بهروچ قبیلو په منځنو غرونو کښې د مید نومے قوم د پنځوس زره لښکر سره یې مقابله راغله. او په هغے کښې حضرت راشد رضی الله عنه شهید شو. او د هغه په ځائے حضرت سنان رضی الله عنه د اسلامی لښکر واګے په لاس کښې واخستلے او یوځل بیا حضرت سنان رضی الله عنه د دے علاقو حکمران شو. حضرت سنان رضی الله عنه راوګرځیده. د قلات او کوئټه ډیرزن تولے علاقے یې فتح کړلے. دوه کاله یې دلته تیر کړل. د ملک د امن امان قائم کولو پاخه انتظامات یې اوکړل. او بیا یې د جنوبی وزیرستان او ډیره اسماعیل خان په طرف مخه اوکړله. دا علاقے یې فتح کړلے. د بنوں او کوهاټ د علاقو فتح کولو نه روستو وادۍ پیښور ته راورسیده. د مرکزی مقام د پیښور د فتح نه روستو د به هیڅه په دے علاقو کښې شمال طرف ته د متي او میچني په مزکه یې د وادۍ پیښور او قبائلی علاقو مهمند باجوړ، سوات وغیره د بدمذهب د پیر وکارانو د یو لوئ لښکر سره سخت جنګ اوشو. او هم په د غه جهاد کښې سره د ځپلو غازیانو ملګرو په ۴۵ هـ کښې شهید شو.

(د حوالے د پاره ملاحظه کړئ تاریخ بلاذری صفحه ۴۳۳ او چچ نامه صفحه ۳۷)

په تاریخی اعتبار سره حضرت سنان ابن سلمه ابن محبق هذلی رضی الله عنه د حضرت رسول پاک صلی الله علیه وسلم هغه جلیل القدر اصحابی دے. چه د مجاهدین اسلام د امیر په حیثیت د مغربی پاکستان شمالمغربی علاقے وادۍ پیښور ته د اسلام رڼړا راوړے ده. او په صحیح تاریخی استناد سره

دَ دوئ مزار مبارک معلوم دے. او هم دغه شان په تاریخي اعتبار سره دَ دوئ مزار مبارک په دے زمکه باندے اولنے "گنج شهیدان" دَے. چه دَ دوئ په ډیر اوږاد مزار کښې دَ دوئ نه علاوه نورے بے شمیره غازیان او اصحاب کرام هم ورسره یوځای دفن کړے شوی دی. رضوان الله علیهم اجمعین. دغه شان هر کله چه دَ دوئ په شهادت (۱۳۲۹) دیارلس سوه او یوکم څلویښت کاله زمانه تیره شوے ده. او بل خواته دَ سابق صوبه جنوبي اضلاع یعنے دَ ډیره دوېژن علاقو ته دَ اسلام رنړا په سنه ۳۰ هـ کښې او شمالي اضلاع یعنے دَ پېښور ډویژن میداني علاقو ته په سنه ۴۴ هـ او بیا په سنه ۴۵ هـ کښې را رسیدلے ده.

په روستو راتلونکو پاڼو کښې موږ دَ سنه ۳۸۶ هـ نه دَ روستنې زمانے دَ مسلمانانو مشاهیرو بزرګانو حالات به درج کوو د سنه ۴۵ هـ نه تر سنه ۳۸۶ هـ پورے دغه منځنۍ ۳۴۱ کاله زمانے چه کوم اسلامي تاریخ دے. هغه ځان له دَ یو جدا تحقیقي بحث حقدار دے چه یو تفصیلي کتاب پرے اولیکلے شي.

---

# حضرت سید جلال بخاری گنج علم شہید علیہ الرحمۃ

سنہ ۳۸۶ھ

حضرت سید السادات شیخ المشائخ محمد جلال الدین جعفر بخاری گنج علم شهید رح په دیارلسمه پیړۍ کښې د حضرت سید الشهداء امام حسین رض نمسے دے بشجره د نسب ئے داسے ده.

سید جلال الدین جعفر بخاری گنج علم. ځوی د سید امیر علی. ځوئ د سید محمود مکی. ځوی د سید محمد مهدي. ځوی د سید حسن عسکری ځوی د سید امام علی نقی ځوی د سید امام محمد تقی ځوی د سید امام علی رضا ځوی د سید امام موسیٰ کاظم ځوی د سید امام جعفر صادق ځوی د سید امام محمد باقر ځوی د سید امام علی زین العابدین ځوی د حضرت سید الشهداء امام حسین علیهم السلام رضی الله عنهم اجمعین.

د حضرت سید جلال بخاری گنج علم شهید مزار مبارک د ملاکنډ ایجنسئ په ریاست دیر کښې په تالاش نومے علاقه کښې دے. او په کوم کلی کښې چه د دوئ مزار مبارک واقع دے. هغې ته هم د دوئ د مزار مبارک په مناسبت سره "زیارت کلے" وائی. د ملاکنډ نه چه چترال ته کوم پوخ سړک تلے دے. دا کلے د دغه پوخ سړک په غاړه باندے دے. او د ملاکنډ نه د دوه ویشت ۲۲ او چکدره نه د دیارلس ۱۳ میلونو په فاصله باندې شمال طرف ته واقع دے.

دابو ریحان البیرونی او نورو مؤرخینو د بیان مطابق په سنه ۳۸۶ھ کښې چه د حضرت امیر سبکتگین رح او راجه جی پال ترمنځه په وادئ لمغان کښې خونړے جنگ اوشه (امیر سبکتگین غزنوی رح د راجه جی پال دا وړی په موسم په دارالحکومت لمغان باندے حمله اوکړه.) او د جی پال فوځونو په ماتے

سرشول نو بیا ورپسې چه دغه غازیان په هېڅ باندې روان شول او د کفارو
دغه مات شوي لښکرې ئې را په مخه کړو. نو غازیانو د راجه جې پال د ژمي د
موسم دارالحکومة هنډ (تحصیل صوابی) ته د ننګرهار، کنړ، باجوړ او سوات
په زمکو د پرله پسې غزاګانو کولو نه روستو ځانونه را اوښکلي وو - او په دغه
زمانه چه په دې بوره یاد شوو علاقو او ملکونو کښې د کفارو کوم حکومتونه
قلعه ګانې وې - او کومې ښخې او مضبوطې آبادئ د مضبوطو مورچو په شکل کښې
موجودې وې نو هغه د غازیانو په لاس هسې په آسانه باندې فتح شوې نه وې.
بلکه په قدم په قدم او بوره په بوره زمکه باندې د کفارو او مشرکانو د فوځونو
او اولسي خلقو او د مسلمانانو غازیانو ترمېنځه بې شمېره خونړي جنګونه شوي وو.
په دې غزاګانو کښې چه د کنړ، باجوړ، سوات، بونیر، مردان، پېښور په غرنیزو
او میداني علاقو کښې کوم مسلمانان شهیدان شوي دي - هغه ځان له جلا اوږد
بحث غواړي - په دې ټولو علاقو کښې چرته چه د کفارو پخوانۍ آبادۍ دي - او
د هغې د کنډرانو او آثار قدیمه ډېر چاپېره د بې شمېره شهیدانو زیارتونه چه
موجود دي. دا هم د دغه دور شهیدان دي چه اکثر په دوئ کښې ډېر لوئ
لوئ عالمان، سیدان او بزرګان دي - د لوې لوې هیوادونو نه د اسلامي لښکر
سره دلته راغلي دي او د اسلام د سرلوړئ او اشاعت د پاره ئې په دې زمکو
د شهادت جام څښلي دے - چنانچه په دغه شهیدانو کښې یو نامور شهید
حضرت سید السادات محمد جلال الدین جعفر بخاری گنج علم دے چه د تالاش په
علاقه کښې په جهاد کښې شهید شوې وو - اوس هم د دغه "زیارت کلي" په خوا وشا
کښې د کفارو پخوانۍ او زړې مګر ښخې آبادۍ او د هغې کنډرونه او اثار قدیمه موجود
دي. په دې سلسله کښې د حضرت اخون درویزه بابا روایت داسې دے. چه
حضرت سید جلال بخاری گنج علم په دغه غزاګانو کښې د سوات په زمکه باندې
شهید شوې وو - او زیارت ئې د وادئ سوات په "ابوها" نومې کلي کښې

جوړشوے وُو۔ دا زیارت سنہ ۳۸۶ ھ نه تر سنه ۸۲۷ ھ پورے هم په دے ځائے باندے وو۔ هرکله چه په سنه ۸۲۷ ھ کښ دَ یوسفزو قبیلے خلق د سوات ځمکے ته راشریک شول۔ او بیا وروستو دَ یوسفزی قام دَ ملی زی نومے قبیلے خلق د سوات ځنے اوچت شول۔ او د موجوده ریاست دیر په تالاش نومے علاقے باندِ آباد شول۔ نو دے ملی زی قبیلے یو خو کسانو دَ شپے په پټه دَ حضرت سید جلال بخاریؒ تابوت دَ ابوها نومے کلی دَ دغه ځوانی قبرنه اوکښلو۔ او دَ تالاش په موجوده زیارت نومے کلی کښ ئے خښ کړلو۔ او په دغه وجه په زیارت او ابوها دواړو کلی کښ دَ سید جلال بخاریؒ په نوم دَ دوئ زیارتونه موجود دی.

لیکن ځرنګه چه مونږه روستو دَ حضرت سید حسین جلال بخاری مخدوم جهانیان جهان ګشت (متوفی سنه ۷۸۵ ھ) په تذکره کښ واضحه کړے ده۔ په موضع ابوها کښ چه دَ سید جلال بخاری په نوم کوم مزار دے۔ دغه په حقیقت کښ دَ دے مخدوم جهانیان جهان ګشت دَ کدیٔ ځائ او خلوتخانه وه چه وروستو تر ینه خلقو مزار جوړ کړے دے۔ او دَ تالاش په علاقه کښ چه کوم مزار دے هغه دَ دے سید محمد جلال الدین بخاری ګنج علم شهید مزار دے۔ دَ حضرت سید جلال بخاری ګنج علم شهید تذکره په دوه وجهو سره دَ ذکر ‌‌‌‌‌‌‌کتاب په اول سر کښ راوړله.

الف) یوه وجه داده چه دَ مغربی پاکستان په دے شمال مغربی حصه کښ چه دَ حضرت رسول مقبول محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم په اولاد کښ کومو نامورو سیدانو دَ اسلام دَ سرلوړئ دَ پاره جهادونه او غزاګانے کړے دی۔ دهغوئ په مبارکو قدمونو ځمونږ دا ملک بختور شوے دے۔ او په آخره ئے د شهادت جام څښلے دے۔ او د دوئ دَ پاکو وینو په قربانئ ځمونږ په دے ملک کښے د اسلام باغ بنیرازه شوے دے۔ په دغه سیدانو کښ دَ زمانے په لحاظ چه دَ کوم یو ه د هولو نه ځوانی آل رسولؐ حالات په صحیح تاریخی ډول سره مونږ ته معلوم

دی۔ هغه حضرت جلال الدین بخاریؒ گنج علم شهید علیه الرحمة و الرضوان دے۔

ب بله وجه دا ده چه دَ دوئ په اولاد کښ دَ دے نوره اسے کسان تیر شوی دی. چه هغوئ دَ گنج علم شهید خصوصی تعریفونه ژوندی ساتلی دی۔ او ځمونږه دَ مغربی پاکستان خاوره ئے په هغ بختوره کړے۔ حضرت سیّد جلال بخاریؒ عالم وو۔ او دعالم کار خلقو ته رشد او هدایت کول وی۔ حضرتؒ گنج علم شهید مجاهد وو۔ او دمجاهد او غازی کار بچپلو پاکو وینو دَ اسلام دَ نهالگی او باغ آبیاری کول وی۔ او دا دواړه فرائض دوئ دغه درے واړه نمسو په ښه شان سره سرته رسولی دی۔ پدے وجه په مونږه ټولو دَ دوئ ډیر لوئ حق او احسان دے۔ چه الله پاک دے دَ هغ په بدله کښ دَ دوئ په گور باندِ دَ انوارو باران اوکړی۔

---

# حضرت شیخ مولانا علی ابن یوسف دلازاک رح

دَ زینة التواریخ او نورو کتبو تاریخونو مطابق هرکله چه دَ لمغان په مقام دَ
راجه جے پال دری نکهه فوځ له حضرت امیر سبکتګین غزنوی علیه الرحمة دَ
غازیانو په شپیته زره فوځ باندے شکست ورکړلو - او بیا دَ کنړ، باجوړ، سوات او
سمے په لاره دَ اباسین ترغاړے پورے ئے دَ کفارو لښکر په ماتے او زغلا وړه
او دَ هند په مقام دَ آخری شکست ورکولو نه روستو راجه جے پال ئے سره دَ باقی
باتے لښکر دَ هند وانو دَ اباسین نه پورے ایستلو - نو دَ وادی پیښور دَ حفاظت دَ
پاره ئے خپل یو سردار دَ لس زره مسلمانانو غازیانو سره پریښودلو - او بخپله غزنی
ته واپس شو - دا ټول دَ سنه ۳۸۶ هـ واقعات دی - په دے موقع چه دغه لس زره
غازیان په وادی پیښور کښې اباد شوی وُو - په دوی کښې دَ پښتنو دَ مختلفو
قبیلو خلق شامل وُو - چه په هغوی کښې ګدانه او دلازاک په خاص طور سره
دَ یاد ولو دی - دَ غازیانو په دے لښکر کښې دوه لوئ مشهور عالمان او روحانی
پیشوایان وُو - چه دَ هغوی نوم وُو حضرت شیخ مولانا یوسف دلازاک او دَ بل نوم
وُو حضرت شیخ مولانا علی ابن یوسف دلازاک علیهم الرحمة دواړه پلار او ځوی
وُو - او دَ امیر سبکتګین دَ طرف نه دَ غازیانو دَ دے لښکر سره په دے علاقه
باندے دَ محکمه قضا په عهده مقرر شوی وُو - روستو په سنه ۳۸۷ هـ کښې دَ امیر
سبکتګین غزنوی وفات وشو - او دَ هغه په ځائ دَ هغه ځوئ سلطان محمود
غزنوی بادشاه شو - نو دے سلطان محمود غزنوی په زمانه کښې په محرم
سنه ۳۹۱ هـ کښې دَ وادی پیښور مسلمان نائب الحکومة سلطان محمود غزنوی
ته سوال جواب ولیږلو چه راجه جے پال سره دَ لوئ لښکر نه په وادی پیښور
باندے دَ حملے کولو په نیت دَ لاهور نه رارَوان شوے دے - ورپسے پوره دَ

لښکر میاشتې تیارۍ نه پس دَ راجه جے پال فوځونه په میاشت دَ شوال ۳۹۱ھ کښې اټک نه پورې وتل. او دَ بلې غاړې نه دَ سلطان محمود غزنوي اسلامي لښکرې هم وادۍ پیښور کښې دَ مسلمانانو او مشرکانو دَ فوځونو ترمینځه پورې درې میاشتې (شوال. ذی قعده. ذالحجه) جنګ اوشو. او آخر په شپږم ۶ تاریخ دَ محرم الحرام ۳۹۲ھ مطابق ۵ اګست ۱۰۰۱ء دَ مسلمانانو لښکر له خدائ فتح ورکړه. او راجه جے پال دَ سلطان محمود غزنوي په بند کښې غزني ته بندیوان بوتلے شو. د دے جهاد په موقع حضرت شیخ مولانا یوسف دلازاک علیه الرحمة دَ ضلع مردان دَ مرکزي ښار مردان سره نزدے دَ بغداده نومے کلي په مقام شهید شو. چه مزار مبارک ئے د دے کلي نه قبلے غاړے ته هدیره کښې دے او دده نامور فرزند حضرت شیخ مولانا علي دلازاک علیه الرحمة دَ ضلع پیښور دَ مشهور کلي چارسده په مقام شهید شوے وو. چه مزار مبارک ئے دَ چارسده په هدیره کښې دے. په بابا صاحب علیه الرحمة مشهور دے او زیارتګاه دَ خاص او عام دے. حضرت شیخ مولانا علي دَ سلسلهٔ عالیه جنیدیه بغدادیه په مشاهیر و اولیاؤ کښې دے. او وائي چه روستو په ذکر راشي حضرت خواجه معین الدین حسن چشتي اجمیري چه په هندوستان ته تشریف وړلو نو په دغه سفر کښې ئے دَ چارسدے په مقام د دے حضرت شیخ مولانا علي دلازاک په مزار مبارک چیله اوکښلے وه. دَ نن ورځے نه ترڅه مخکښې مودے پورے دَ دوئ دَ مزار مبارک سره یوه کتبه موجود وه. چه په هغې کښې دَ دوئ نوم "علي" لیکلے شوے وو. دَ دے نوم په وجه په عوامو کښې دا روایت مشهور شوے وو. چه دا د حضرت سیدنا علي ابن ابي طالب کرم الله وجهه مزار دے حالانکه دا روایت یقیني غلط دے. وئیلے شي چه دَ وادۍ پیښور دوه مشهور علمي او روحاني خاندانونه یعنے دَ بڼ هني دَ قاضیانو خاندان او دَ مانکي شریف دَ پیرانو صاحبانو خاندان دواړه په نسب بانداِ دَ دوئ اولاد دے. په تاریخي اعتبار سره حضرت بابا صاحب دَ چارسدے دَ وادۍ

پېښنو ۱۵مشاهیر و اولیاء کښې دَ اولنۍ پېړۍ اولیاء الله کښې ولی الله، او عالم شهید دے- مزار مبارک ئې دَ روحانی انوارو مرکز دے -او چار چاپېره ټوله علاقه پرے روښانه ده ؛ قدس سره العزیز ؛

# حضرت شیخ الشیوخ سید ابوالحسن علی الهجویری دا تا گنج بخش

سنه ۴۸۵ء

---

له دَ "هجویر" موجوده نوم "شیلکر" دے او نن ورځ د دے ځائے دغه پخوانے نوم "هجویر" ډیرو کمو خلقو ته معلوم دے ؛

(آشر)

# حضرت شیخ الشیوخ سیّد ابوالحسن علی، الهجویری، داتا گنج بخش، سنه ۴۸۵ھ،

که نظر کا څوک په کار د دَ درویشانو
خود به وویني وقار دَ درویشانو

عبدالرحمان بابا په دے پوره شعر کښ بالکل ریښتیا خبره کړے ده۔ د درویشي او فقیري دا سے سپرلے دے۔ چه بیخي خزان نه لري۔ دَ دنیا مادي زور او قوت که هر څو مره زیات شي۔ خو لوئ عیب ئے دا دے۔ چه پائښت نه لري۔ د باد یوه چپه وه تیره شي۔ مګر د روح او معنی او زړونو سلطنت تر ډیره ډیره پائیږي۔ او پاتے کیږي. زرګونه، زرګونه کلونه پرے تیر شي۔ بیا هم یادونه ئے باقي وي۔ ژوندي وي. او روښانه وي۔

زرکاله مخکښ دَ غزنی له لویه ښهره دوه فاتحان راوتلل۔ یوه مزکے او ښهرئے واخیستلے۔ او را لاندے ئے کړل۔ او دویم فاتح زړونه اونیول۔ او دَ زړونو ښهرئے فتح کړو۔ ملکونه او هیوادونه پاتے نه شول۔ خو هغه چا چه زړونه فتح کړي وو۔ او په زړونو ئے سلطنت کولو۔ دَ هغوئ بے تاجه بادشاهي تراوسه پورے چلیږي. او آثارئے دا سے ښائي۔ چه دَ فقر او درویشئ دغه بادشاهي به تر عمره باقي وي۔

د غزني لومړے فاتح سلطان محمود وُو۔ چه په مزکو ئے سلطنت کاوه۔ مګر دویم فاتح علی هجویري دے۔ چه سلطنت ئے تراوسه قائم دے۔۔

د دے لوئ روحاني فاتح دَ حالاتو نه ځان خبرول ځکه ضرور دي۔ دَ پاره یقیناً چه دَ نیک بختئ خبره ده۔ چه دَ غزنی نه رار وان شوے دے۔ او په لاهور ئے دیره نیولے ده۔

حضرت شیخ سیّد علی هجویري المعروف داتا ګنج بخش هغه بزرګه

او مقدسه هستي ده۔ چه د هغوئ ژوند مبارک د هر يو مسلمان د پاره د تقليد او پيروئ کولو نمونه ده۔ په پخوانه صدئ هجرئ کښې چه کومو روحاني پيشوايانو او مشهورو بزرګانو پاکستان ته تشريف راوړې دے په هغوئ کښې دوئ ته ممتاز مقام حاصل دے۔ دوئ په خپل اخلاقي او روحاني قوت سره د خلقو زړونه اسلام ته راکښل۔ او د اسلام د صداقت او حقانيت سره ئے اشنا کړل۔

د حضرت "داتا ګنج بخش" نوم علي دے کنيت ئے ابوالحسن دے۔ او د بابا جي نوم ئے عثمان دے۔ حسني سيد دے۔ او په نهم پښت کښې د نسب سلسله ئے حضرت امام حسن رضي الله عنه ته رسيږي.

دوئ د خپل کتاب "کشف المحجوب" او نورو تاريخي کتابونو او تذکرو نه چه د دوئ کوم حالات معلوم شوي دي. هغه دلته درج کوے شي۔

د غزني ښهر په پخواني زمانه کښې په يوه لوړه ډهيرئ باندې آباد يو قلعه بند ښهر وو۔ په هغه زمانه د دے ښهر نه چار چاپيره کښې کلي وو چه هغه هم يو قسم له د دے ښهر بهرني محلے وے په د غه "محلو" کښې د يوے نوم "هجوير" وو۔ او د بلے محلے نوم "جلاب" وو۔ او دا دواړه محلے يا کلي د يو بل سره پيوست وو۔ په دے وجه د حضرت "داتا ګنج بخش" عليه الرحمة د نوم مبارک سره "هجويري" او جلابي د وه نسبتي نومونه ليکلے شي۔

د دوئ د پيدائش صحيح تاريخ نه دے معلوم۔ تر ننه ورځې پورے چه عام مورخانو په دے باب چه څه ليکلي دي۔ د هغې خلاصه دا ده چه هر کله د دوئ عمر اويا کاله وو۔ او په ۴۶۵ھ کښې وفات شوے دے۔ نو د غه نه په قياس سره دا اندازه لګوے شي۔ چه د دوئ د پيدائش کال په ۳۹۵ھ وو۔ ليکن په دے سلسله کښې چه څما کوم خپل تحقيق دے۔ او په دغه باندې به روستو تاريخي او تحقيقي بحث په تفصيل سره راشي د هغې له

مخه دَعامو مؤرخانو دا دریواړه خبرے غلطے وی۔ بلکه :-

(الف) حضرت داتا گنج بخش په سنه ۴۰۰ھ کښں پیدا شوے وو۔

(ب) دَدوئ عمر مبارک اووه اتیا کاله وُو۔

(ج) او په سنه ۴۸۵ھ کښں وفات شوے وُو۔

(د) دغه شان دعامو مؤرخانو هغه روایت هم صحیح نه دے۔

چه حضرت داتا گنج بخشؒ په سنه ۴۲۱ھ یا سنه ۴۳۱ھ کښں لاهور ته تشریف راوړے وُو۔ بلکه حماد اوګډ تحقیقی بحث په رنړا کښں چه روستو به راشی۔ حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة په سنه ۴۲۸ھ کښں دَعلی ابن ربیع ابن مسعود ابن محمود غزنوی دَحکومت په زمانه کښں لاهور ته راغلے وُو۔

دغه زمانه چه په کومه کښں حضرت داتا گنج بخش علی الهجویریؒ پیدا شوے وو۔ دَ غزنی په تاریخ کښں دَ "زرین عهد" او "تاریخی زمانے" په نوم نو سره یادیږی۔ دَامیر سبکتگین او وروستو دهغه دَ نامور فرزند سلطان محمود غزنوی په برکت په زرګونو عالمان فاضلان او پوهے او عقل خاوندان په غزنی کښں راجمع کیدل۔ او روستو دا ښهر دَعلم او فن په اعتبار سره دومره آباد شه۔ چه هره کوڅه او هره محله کښں ئے دینی او علمی مدرسے وی۔ او دعلم ادب او حکمت دور دوره وه۔

حضرت داتا گنج بخش چه غزنی کښں دَهغه وخت دَ نامور وعالمانو نه ابتدائی دینی علمونه حاصل کړل۔ په دے سلسله کښں چه دوئ دَ غزنی دکومو عالمانو څخه فیض حاصل کړے دے دهغوئ نومونه دا دی۔

(۱) شیخ ابوالفضل ابن الاسعدی (۲) شیخ غلتق اسماعیل

(۳) شیخ ابوعبدالله محمد ابن الحکم المعروف (۴) شیخ سعید ابن ابی السعید

په غزنی کښں دَابتدائی دینی علمونو حاصلولو نه روستو دنورعلمی فضیلت او روحانی ترتیب دَپاره دهغه وخت دا اسلامی ملکونو په سفر

روان شول۔ او د هغه زمانے د نورو عالمانو او بزرګانو د عامے قاعدے
مطابق د علم او معرفت په طلب کښې یې د ټولو اسلامي ملکونو د ګڼړو
بزرګانو۔ مشائخو او عالمانو نه استفاده اوکړله۔

د حضرت داتا ګنج بخش علیه الرحمة په زمانه کښې چه په چارچاپیره
اسلامي ملکونو کښې کوم مشاهیر علماء او مشائخ موجود وو۔ او د وئ ورسره
ملاقات شوے دے۔ او د هغوئ نه یې فیض حاصل کړے دے۔ د دغو اکثرو
بزرګانو او عالمانو حالات د وئ پخپل کتاب "کشف المحجوب" کښې بیان
کړی دی۔ چه د هغوی تعداد سوؤنو نه هم زیات دی۔ د اختصار په وجه
د دوئ د یو څو نامورو استاذانو او مشائخو نومونه د لته لیکلے شی۔

(الف) د شام او عراق په عالمانو او بزرګانو کښې:- (۱) شیخ ذکی العلاء
(۲) شیخ ابوالقاسم سدی (۳) شیخ ابوالحسن سالبه

(ب) په اهل فارس ایران کښې:- (۴) شیخ ابو اسحاق ابن شرمار
(۵) ابوالحسن علی ابن مکرون (۶) شیخ ابومسلم بردی (۷) شیخ ابوالفتح
(۸) شیخ ابوطالب (۹) شیخ الشیوخ ابواسحاق

(ج) په اهل کرمان کښې:-
(۱۰) خواجه ابوعلی الحسین البرکاتی (۱۱) شیخ محمد ابن مسلمه

(د) د خراسان په عالمانو کښې:-
(۱۲) شیخ مجتهد ابوالعباس داستانی (۱۳) خواجه ابوجعفر محمد ابن علی
(۱۴) خواجه محمود نیشاپوری (۱۵) خواجه احمد خاوی، سرخی (؟)
(۱۶) شیخ احمد سمرقندی (۱۷) خواجه عبدالله انصاری هروی

(ه) د آذربائیجان په عالمانو کښې:- (۱۸) شیخ شفیع فرخ
(۱۹) شیخ ابوعبدالله (۲۰) شیخ ابوطاهر کشوف
(۲۱) خواجه حسین سمرقندی (۲۲) شیخ سهاکی

(۲۳) شیخ احمد حموئی د شیخ خرقان (۲۴) شیخ ادیب کنوییٔ

(و) د ماوراء النهر په عالمانو کښې:- (۲۵) خواجه امام خواص

(۲۶) ابوجعفر ابن محمد الحسین (۲۷) خواجه فقیه ابومحمد باتغرایی

(۲۸) احمد ایلاقی (۲۹) خواجه عارف علی ابن اسحاق (۳۰) شیخ ابوالفضل ابن الحسن الختلی

لکه چه مخکښې ذکر اوشو. حضرت داتا گنج بخش د علم حاصلولو دپاره لرے لرے ملکونو سفرے کړے دي. مثلاً د آذربائیجان. قهستان. خوزستان. فرغانه. ماوراء النهر. عراق (بغداد) شام (بیت المقدس) و (دمشق). طبرستان. طوس. ترکستان. خراسان. هرات. کابل وغیره ملکونه شول. او په دے ملکونو کښې داپورته چه یاد شول. دغه عالمان اونور بے شمیره عالمان ئے لیدلی دی. د هغوی په صحبت او درس کښې پاتے شوی دی. او د هغوئی نه ئے دینی علمونه مثلاً فقه. حدیث. تفسیر او نور د منقول او معقول علمونه حاصل کړي دی. او په خصوصیت سره د حنفی مذهب د فقهې او اصول لوئی عالم او د حنفی مذهب پیرو کار وو. او د حضرت امام اعظم ابوحنیفة نعمان کوفی رضی الله عنه سره ئے زیاته مینه وه.

د علم حاصلولو په دے سفر و نو کښې چه د طریقت او معرفت د کومو مشهورو بزرګانو سره ئے لیدل کتل شوی دی. په هغوئی کښې دیو مشهور بزرګ نوم دے.

حضرت شیخ ابوالفضل ابن الحسن الختلی الجنیدی

چه هغه د حضرت شیخ ابوالحسن حضرمی مرید وو. او د هغوئی د طریقت سلسله حضرت سید الطائفه جنید بغدادی علیه الرحمة ته رسیږی. او هم د هغوئی په نسبت دا سلسله په جنید یه سره مشهوره ده.

چنانچه حضرت داتا گنج بخش په خصوصیت سره د دے حضرت ابوالفضل الختلی مرید وو. د دغه نه علاوه د طریقت او معرفت د نورو کومو مشاهیرو

بزرگانو سره چه دَ دوئ ملاقات شوے دے۔ دَ هغوی په صحبت کښې پاتے شوے دے۔ او دهغوی نه ئے فیض حاصل کړے دے۔ په هغوی کښې دیوځو بزرگانو نومونه دا دی:-

(۱) حضرت شیخ ابو السعید ابو الخیر علیه الرحمة

(۲) حضرت شیخ ابو العباس احمد الاشکانی علیه الرحمة

(۳) حضرت شیخ ابو القاسم گرگانی علیه الرحمة

(۴) حضرت شیخ ابو جعفر ابن المصباح الصیدانی علیه الرحمة

## دَ حضرت داتا گنج بخشؒ لاهور ته راتلل

لاهور ښهر ته دَ حضرت داتا گنج بخشؒ د راتللو په حقله یوه قیصه بیانولے شی۔ چه هرکله حضرت داتا گنج بخش دَ شریعت او معرفت په ټولو ظاهری او باطنی علمونو کښې کمال حاصل کړلو۔ نو دَ خپل پیر شیخ ابو الفضل ابن الحسن الختلیؒ دَ طرف نه ورته حکم اوشو چه لاهور ته لاړشه۔ د دې په جواب کښې دوئ خپل پیر ته عرض اوکړو۔ چه په لاهور کښې خو ځما پیر بهائی شیخ حسینؒ زنجانی موجود دے۔ او د اسلام د اشاعت او تبلیغ خدمت لګیا دے کوی۔ نو په اسے حال کښې لاهور ته ځما د تللو څه حاجت دے؟ لیکن د دے په جواب کښې خپل پیر صاحب ورته اوفرمائیل۔ چه بحث مکوه فوراً ځان لاهور ته اورسوه۔

چنانچه د خپل پیر د طرف نه د دے حکم په اوریدلو حضرت داتا گنج بخش را روان شو او لاهور ته راورسیدلو۔ او د لاهور ښهر نه بهر ئے په یو سرائے کښې شپه تیره کړله۔ او سبا له ښهر ته ننوتلو۔ نو که څه گوری چه خلقو یوه جنازه راخیستے وه۔ دوئ تپوس اوکړو۔ چه دا جنازه دَ چا ده؟ خلقو ورله جواب ورکړو۔ چه دا دَ فخر الدین حسین زنجانیؒ جنازه ده۔ نو د خپل پیر

بهائی حسین زنجانیؒ د نوم او ریدلو سره سمدستی ورته د خپل پیر طریقت هغه حکم وریاد شو۔ چه فوراً لاهور ته ځان اورسوه۔ چنانچه د دغه حکم په اسرارؤ او د الله تعالیٰ په حکمت باندې حیران پاتې شو۔ بیا د خلقو سره روان شو۔ او د خپل پیر بهائی په جنازه او تکفین کښې شامل شو۔

دا قیصه هم یو جو رباندې د حضرت شیخ المشائخ نظام الدین اولیاءؒ په کتاب ,,فوائد الفوأد کښې بیان شوې ده۔ بیا دهغې نه نورو مختلفو تذکره لیکونکو لکه مفتی غلام سرور لاهوری وغیره خپلو کتابونو کښې رانقل کړې ده. لیکن په تاریخی اعتبار سره دا قیصه ډیره زیاته عجیبه ده۔ چه روستو به دې باندې تفصیل سره بحث راشی۔ بیا هم د دې قیصې نه د حضرت داتا گنج بخشؒ لاهور ته د راتللو چه کوم غرض او مقصد دې۔ هغه واضحه کیدلې شی۔ او هغه دا دې. چه دوئ د خپل پیر په هدایت او حکم سره لاهور ښهر ته تشریف راوړې وو۔ او دا د هغه خبرې ثبوت دې۔ چه کومه په دیباچه کښې موږ لیکلې ده۔ چه څوموږه هر څومره بزرګان چه د بیا دیو سره به روانیدل او بل سره ته اولرې لرې ملکونه له به تلل۔ هلته به آبادیدل۔ نو دا د خپلو پیرانو او استاذانو په حکم سره به کول۔ او بیا د خپلو پیرانو او استاذانو په حکم سره په خاص طور باندې هغه علاقو ته به لیږلې شول۔ چه هلته به د اسلام د تبلیغ زیات ضرورت وُو۔ په دې بناء خپل پیر روشن ضمیر چه دې لاهور ته رالیږلو۔ نو په دې غرضؒ رالیږلې وُو۔ چه د دغې زمکې د خدائ مخلوق به تر ینه فائده اورسیږی۔ او دا د حضرت داتا گنج بخشؒ د کامل پیر لوئ کرامت دې۔ چه هغوی دا خپل مرید چه په سن ۴۳۰ھ کښې لاهور ته د دین اسلام د فیوضاتو او تعلیماتو خوره ولو د پاره رالیږلې وو۔ هغه سلسله تراوسه پورې چه نن د سن ۱۳۸۳ھ کال دې۔ ۹۴۳ کاله تیر شول او هغه شان جاری ده۔ شهزاده دارا شکوه خپل

کتاب "سفینة الاولیاء" کښې لیکلی دی چه:-

"هر کله چه حضرت داتا گنج بخش" لاهور ته تشریف راوړو. نو هغوی نه مخکښې د خپلې دیرے خواته د یو جماعت بنیاد ئے کیښودو. دا هم هغه جماعت دے. چه د هغې په صحن کښې مخ خواته طرف ته نن ورځ د دوی مزار مبارک واقع دے.

د داتا گنج بخش" د دے جماعت په حقله په تاریخونو او تذکرو کښې یو روایت لیکلے شوے دے. او هغه دا دے چه کله دا جماعت جوړیدلو نو دا سے معلومیده چه د دے جماعت مخه (قبله) لږ ه شان سُهیل (جنوب) طرف ته مائیله ده. په دغې باندے د لاهور ښهر ټولو عالمانو اعتراض او کړ. مگر حضرت داتا گنج بخش" بخپله د مانځه امامتی کولو ته وړاندے شو. د جمع مونځ ئے اوکړو. د مانځه نه روستو ئے خلقو ته اوفرمائیل چه اوگورئ کعبة الله کوم خواته ده؟ د حضرت داتا صاحب په کرامت د هغوی د دے خبرے کولو سره سم د خلقو د سترگو نه پرد ے پورته شوے. چه د جماعت محراب ته ئے اوکتل. نو مخامخ ئے کعبه شریف (بیت الله) په نظر راغے. او بخپلو سترگو ئے اولیدل چه د جماعت قبله کعبے شریفے ته بالکل برابره ده. په دے ټولو عالمان په خپلو اعتراضونو باندے ستومانه شول. معافی ئے اوغوښتله او د دې واقع په وجه د حضرت داتا صاحب د کرامت او ولایت آوازه او شهره تر لرے لرے خوره شوه. او د خدائ مخلوق پرے رامات شو.

حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة چه په لاهور کښې استوگنه اختیار کړه نو د حق دین اسلام د تبلیغ د پاره ئے سلسله شروع کړه. پنجاب او لاهور خلقو ته د دوی د اخلاقی او روحانی فیوضاتو لویه برخه او حصه نصیب شوه او بے شمیره د خدائ مخلوق د دوی د اخلاق حسنه او تاثیر نه ډک وعظ او نصیحت نه فیض یاب شول. او په دینِ اسلام مشرّف شول. حضرت داتا گنج

بخشؒ په حقیقت کښې د علم او عرفان یو داسې عظیم الشان دریاب وُو. چه هر خوا ته دوی دَ فیض ولې او نهرونه خوارۀ شول. او د کفرستان هند هغه دَ کفر او شرک په اُور بانډې اوچ شوې او سوزیدلې هیوادئې د اسلام په اوبو سیراب کړ -

کوم جماعت چه حضرت داتا گنج بخشؒ جوړ کړې دې. هغه ترنن ورځې پورې د دین اسلام د تعلیم. تبلیغ او تربیت درسګاه دې. او په دې کښې د رُشد او هدایت سلسله هم هغه شان جاری ده. او اُمید دے چه ترقیامته به جاری وی.

د هغې زمانې په کفار و او مشرکانو کښې چه کوم اولنئ پیر مسلم د دوئ په مبارکو لاسونو اسلام قبول کړے وو - دَ هغه نوم "رائ راجو" وو - داسړے دَ غزنوی سلطان دَ طرف نه د پنجاب نائب الحکومة وو - او د هندو مذهب پیرو کار وُو - د اسلام قبلولو نه روستو هر کله چه حضرت داتا گنج بخشؒ دَ خپلو فیوضاتو نه مستفیض کړ - او هغه له ئې دَ "شیخ هندی" خطاب ورکړ - نو بیا دغه شیخ هندی خپل ټول ژوند دَ اسلام خدمت ته وقف کړ - دُ نیا او دنیاداری ته ئې شا کړله - د ده زیارت هم دَ داتا گنج بخشؒ دَ درګاه په احاطه کښې دے - علیه الرّحمة والغفران -

## تاریخی بحث

لکه چه مخکښې ورته اشاره شوې ده - دَ حضرت داتا گنج بخشؒ د تاریخ ولادت او وفات دواړو په تاریخونو کښې اختلاف دے - او د دغې په وجه د دے صحیح اندازه لګول ګران دی. چه دوئ لاهور ته په کوم وخت کښې راغلی وو. او دوئ ټول ژوند څو کلونه وو -؟ په دے سلسله کښې ځمونږ ډیرو خپلو عامو مُورخانو او غیر ملکی مستشرقینو او تذکره لیکونکو چه څه لیکلی دی. مختصراً هغه دا یو څو خبرے دی -

(۱) یوه خبره دا چه د داتا گنج بخشؒ د ولادت صحیح تاریخ نه دے معلوم.

(۲) البته په دے خبره د ټولو اتفاق دے چه د دوئ عمر اویا کاله وو.

(۳) دا دویمه خبره یعنے چه د حضرت داتا گنج بخش عمر اویا کاله وو. په دے باندے د اتفاق نه روستو اکثرو مؤرخینو او تذکره لیکونکو د دوئ وفات سنه ۴۶۵ھ بیان کړے دے. فقط یو غیر ملکی مستشرق اختلاف کړے دے. او هغه د دوئ وفات د سنه ۴۷۰ھ خوا وشا زمانه بیان کړے ده.

(۴) هرکله چه عامو مؤرخینو یو خوا ته د دوئ عمر اویا کاله ښودلے دے. او بل خوا د دوئ وفات ئے په سنه ۴۶۵ھ کښے بیان کړے دے. نو د دغے په اعتبار په قیاس سره د دوئ د ولادت کال ئے سنه ۳۹۵ھ اندازه کړے دے.

(۵) په آئینه تصوف نومے کتاب کښے د دوئ ولادت ئے سنه ۴۰۰ھ ښودلے دے لیکن ورسره د وفات کال ئے سنه ۴۶۵ھ ښودلے دے.

(۶) ځنے مؤرخین لیکی چه داتا گنج بخشؒ په سنه ۴۲۳ھ کښے لاهور ته راغلے وو. او ځنے نورو د دوئ لاهور ته د راتللو کال سنه ۴۳۱ھ بیان کړے دے. دا یو ته چه کومے خبرے بیان شولے په دے کښے چه کوم اختلاف دے هغه ښکاره دے. په دے وجه دا سوال حل کول غواړی چه په دے کښے صحیح خبره کومه یوه ده؟ په دے وجه مونږ دا ضروری وګڼله چه د ټولو اول د ټولو تاریخونو او تذکرو هغه ټول تاریخی روایتونه او بیانونه را نقل کړو. چه کوم تر دے وخته پورے مونږ ته په لاس راغلی دی. او په کومو کښے چه په خصوصیت سره د "داتا گنج بخش" "تاریخ وفات" بیان شوے دے. او بیا په هغے باندے یو تحقیقی او تنقیدی نظر واچوو. د دے پاره د دے چه د دے خوندور "تاریخی بحث" په ذریعه د عامو خلقو معلومات زیات شی. د حضرت داتا گنج بخشؒ د ولادت او وفات صحیح تاریخونه تر ینه معلوم شی. او ورسره د

دعامو مؤرخینو په نظر کښې چه کوم تضاد دے او غلطي دي۔ هغه هم ترینه واضحه شي۔ او دا هم واضحه شي۔ چه دعامو مؤرخینو د بیانونو کومه خلاصه چه موبزه پورته درج کړله او روستو به ئے په تفصیل سره بیان راشي۔ په دغه ټولو ضرو کښې یوه هم صحیح نه ده۔ او دغه به دا اندازه لګول آسان شي چه څو بزه عامو مؤرخینو څومره دغفلت نه کار آخیستے دے۔

# تاریخ وفات

(۱) دحضرت داتا ګنج بخش په حقله په "آئین اکبري" کښې څه ذکر نشته دے۔

(۲) دمیر زالعلي بیګ لعلي ولد شاه قلي سلطان بدخشي (چه دشهزاده مراد بخش بخشي وو) په تالیف "ثمرات القُدس" کښې (چه دا کتاب دغه فاضل مؤلف دشهنشاه دهلي جلال الدین اکبر په زمانه کښې لیکلے دے)۔ لیکي: چه حضرت داتا ګنج بخش په سنه ۴۶۵ھ کښې وفات شوے دے۔

(۳) دارا شکوه په خپل تالیف "سفینة الاولیاء" طبع لکهنوء سنه ۱۸۷۲ء صفحه ۶۵ کښې لیکي چه حضرت داتا ګنج بخش په سنه ۴۵۶ھ او په بل روایت کښې په سنه ۴۶۴ھ کښې وفات شوے دے۔

(۴) حاجي خلیفه په خپل کتاب "کشف الظنون" کښې لیکي چه داتا ګنج بخش په سنه ۴۶۵ھ کښې وفات شوے دے۔

(۵) مرزا اسامي بیګ په خپل کتاب "قاموس الاعلام" کښې دداتا ګنج بخش تاریخ دوفات کال سنه ۴۶۵ھ لیکلے دے۔

(۶) مفتي غلام سرور لاهوري په خپل کتاب خزینة الاصفیاء کښې (چه دا کتاب ئے په سنه ۱۲۸۴ھ کښې تالیف کړے دے۔) په صفحه ۲۳۳ جلد ۲ کښې لیکي:۔

"وفات دهغ جامع الکمالات په قول د صاحب د "سفینة الاولیاء"

(تالیف دَ شهزاده دارالشکوه) په کال ۱۰۶۴ھ یا ۴۶۶ھ کښې واقع شوې

ده. او صاحب د "نفحات الانس" مولانا عبدالرحمان جامی" او صاحب

د "اخبار الاولیاء" د معتبرو روایتونو په سند سره د دوئ وفات کال

۴۶۵ھ لیکلې دے۔

د دے پورته شپږمے حوالے په سلسله کښے د یوه ضروري خبرې یادول پکار دي

چه مفتي غلام سرور چه د نفحات الانس تالیف دَ مولانا عبدالرحمان

جامي کومه حواله ورکړې ده۔ د دغه څه حقیقت نه لري۔ ځکه چه د نفحات

الانس ټولے چاپ شوے او قلمي زړے نسخے چه تر اوسه پورے څمونږ دَ نظره

تیرے شوي دي۔ د دے کتاب په هیڅ یوه نسخه کښې هم د داتا گنج بخش" د وفات

تاریخ په حقله څه قسم ذکر نشته دے. بیشکه حضرت مولانا عبدالرحمان جامی"

د حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة د ژوند حالات لیکلي دي۔ لیکن د دوئ

د وفات تاریخ ئے نه دے لیکلے. حیرانتیا ده چه مفتي غلام سرور د نفحات

الانس حواله څنګه ورکړې ده۔؟ په دے سلسله کښې مولانا محمد شفیع مرحوم

لائبریرین دَ پبلک لائبریرئ پنجاب (لاهور) چه په خپله یوه مقاله کښې په مفتي

غلام سرور د نیک ګمان اظهار کړے دے۔ چه ممکنه ده د مفتي غلام سرور

سره به دَ نفحات الانس کومه یوه داسے نسخه موجوده وه چه په هغې کښې به د

حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة د وفات تاریخ هم درج وو۔ نو البته دا یوه

داسے وجه ده چه مونږ ته دَ مفتي غلام سرور بیان پرے قبولے شو۔

۴ د مفتي غلام سرور لاهوري د بیان څلورم حصه په فقره ۵ کښې درج

کړے شوه۔ د دغه بیان نه روستو لکه چه د مفتي غلام سرور عامه

قاعده ده چه په خپله ئے دَ داتا گنج بخش" د وفات هم د دغه تاریخ ۴۶۵ھ په نظم

کړے دے۔ او چه دَ تاریخ وفات کومے قطعات ئے په خپله جوړے کړے دي۔ او چه

د هغې نه علاوه نورو خلقو چه د حضرت داتا صاحب" د تاریخ وفات په حقله کوم

قطعات لیکلی دی. هغه ئے هم را نقل کړی دی. دمثال په طور شیخ حامد کشمیری چه د نفحات الانس په شرح کښں کومه د تاریخ وفات قطعه لیکلے ده. په هغے کښں ئے د لفظ "سردار" (۴۶۵ھ) نه د حضرت "شیخ هجویری" د وفات تاریخ ۴۶۵ھ را اوکښلے ده.

۷) مفتی غلام سرور لاهوری پخپل د وئم کتاب "تاریخ مخزن پنجاب" جلد ۵ صفحه ۵۲۲ کښں د حضرت داتا گنج بخش د "تاریخ وفات" دا دوه تاریخی لفظونه درج کړی دی:- سردار (۴۶۵ھ) کاشف دین (۴۶۵ھ)

(۸) په کتاب "ماثر الکرام" کښں ئے د حضرت داتا گنج بخش د وفات کال ۴۶۵ھ لیکلے دے.

(۹) په کتاب "نزهة الخواطر" کښں ئے " " " "

(۱۰) په کتاب "حدائق الحنفیه" کښں ئے " " " "

(۱۱) په کتاب معارج الولایت تالیف د عبد الرزاق خویشګی قصوری کښں د حضرت داتا گنج بخش د وفات تاریخ نه دے لیکلے شوے.

(۱۲) هدایت حسین په خپله مقاله داتا گنج بخش چه په "دائرة المعارف اسلامی" جلد ۲ صفحه ۹۳۴ کښں چاپ شوے ده. د داتا گنج بخش د وفات تاریخ ۴۶۵ھ لیکلے ده.

(۱۳) موسیو دیو د فارسی قلمی نسخو په فهرست جلد ۱ صفحه ۳۴۳ کښں د داتا گنج بخش د وفات تاریخ کال ۴۶۵ھ لیکلے دے.

(۱۴) رحمان علی لاهوری پخپل کتاب "تذکره اولیاء هند" صفحه ۵۹ کښں حضرت داتا گنج بخش د وفات تاریخ ۴۶۵ھ لیکلے دے.

(۱۵) مرحوم ملک الشعراء بهار (ایرانی) پخپل کتاب "سبک شناسی" جلد ۲ صفحه ۱۸۷ کښں د داتا صاحب د وفات تاریخ ۴۶۵ھ لیکلے دے.

(۱۶) مولانا عبد الماجد دریا آبادی پخپل کتاب "تصوف اسلام" جلد ۱ صفحه ۵۳ کښں د داتا صاحب د وفات تاریخ ۴۶۵ھ لیکلے دے.

(۱۷) اسماعیل پاشا بغدادی پخپل کتاب "اسماء المصنفین" جلد ۱

صفحه ۱۶۷ کښې د داتا گنج بخش" د وفات تاریخ ۴۶۵ھ لیکلے دے۔

(۱۸) سید صباح الدین په خپل کتاب "بزم صوفیه" صفحه ۸ کښې د
داتا گنج بخش" د وفات تاریخ ۴۶۵ھ لیکلے دے۔

(۱۹) فقیر محمد حسن رامپوری پخپل کتاب "آئینه تصوف" صفحه ۱۷۱ کښې د
داتا گنج بخش" د وفات تاریخ ۴۶۵ھ لیکلے دے۔

(۲۰) شیخ محمد اکرام پخپل کتاب "آب کوثر" صفحه ۸۶ کښې د داتا گنج بخش صاحب
د وفات تاریخ ۴۶۵ھ لیکلے دے۔

(۲۱) د حضرت داتا گنج بخش" د مزار مبارک سرته په گنبد کښې د ننه چه
کومه کتیبه لگید لے ده. په هغې کښې د وفات تاریخ ۴۶۵ھ لیکلے شوے ده۔

(۲۲) نور بے شمیره ادیبانو او مضمون نګارانو په مختلفو اخبارونو او رسالو کښې
د داتا گنج بخش" په عنوان سره په خپلو مقالو کښې د حضرت داتا صاحب"
د وفات تاریخ ۴۶۵ھ لیکلے دے۔

(۲۳) ډاکټر عبد الغنی پخپل تالیف "تصوف اسلام" صفحه ۵ کښې د حضرت
داتا صاحب" د وفات تاریخ د ۴۷۰ھ سنه حواؤ شا زمانه یاده کړے ده۔
یعنے کوم خاص تاریخ ئے نه دے ښودلے. بلکه خبره ئے شک منه کړے
ده. چه کم از کم د ۴۶۵ھ او ۴۷۰ھ منځنۍ زمانه تر ینه مراد کید لے شي۔

(۲۴) مشهور انګریز مستشرق پروفیسر نکلسن د "کشف المحجوب" د
انګریزي ترجمے په دیباچه کښې په قیاس سره لیکي: چه
"قیاس دا دے چه د داتا گنج بخش" وفات
د کال ۴۶۵ھ او ۴۶۹ھ په منځ کښې واقع شوے دے"۔

## (یاد ګیرنه)

پورته په فقره ۲۱ کښې د داتا گنج بخش" د مزار مبارک د کتبے په
حواله د دوی د وفات تاریخ ۴۶۵ھ درج شوے دے. لیکن د دے

کتبے پہ حقلہ یو خو خبرے دَ تاریخی یادگیرنے پہ طور پہ ذهن کښں یاد

ساتل پکار دی۔

الف | یوہ دا خبرہ دہ چہ د حضرت داتا صاحبؒ دوفات پہ وخت کښے غزنی او لاهور دواړو باندے دَ حضرت ظهیر الدوله سلطان ابراهیم ابن مسعود غزنوی بادشاهی وہ۔ دغه سلطان ابراهیم پہ سنه ۴۴۹ھ مطابق سنه ۱۰۵۸ء کښں بادشاہ شوے وو۔ او پہ سنه ۴۸۹ھ کښں وفات شوے وُو۔ چه څه وخت حضرت داتا گنج بخش وفات شو۔ او دخپل جماعت مخے نه پہ صحن کښں دفن کړے شو۔ نو دغه سلطان ابراهیم پرے مزار جوړ کړے وُو۔ دَ هغے نه څه زمانه روستو دهلی مشهور بادشاہ سلطان جلال الدین اکبر د دے مزار پہ تعمیر کښں حصه آخستے وہ۔ د هغے نه پس پہ سنه ۱۲۴۵ھ کښں دلاهور ښهر یو نیک سړی چه دهغه میان عوض نوم وُو۔ د دے مزار مبارک نه چار دیوارِی چاپیرہ کړہ۔ او بیا د هغے نه روستو دخزینة الاصفیاء جلد ۲ صفحه ۲۳۴ (طبع نولکشور) دبیان مطابق پہ سنه ۱۲۷۸ھ کښں دَ لاهور ښهر د مشهور خاندان فقیران یو مشیر حاجی نور محمد فقیر چه هم د دے لاهور او سیدونکے وُو۔ پہ دے مزار مبارک باندے گنبد جوړ کړہ۔ او بیا مخوانے جماعت ئے د سرنه سازکړہ۔

ب | بله خبرہ دا دہ چه د حضرت داتا گنج بخشؒ د مزار مبارک سرنه چه کومه کتبه لگید لے دہ۔ او پہ هغے کښں د دوئ وفات تاریخ سنه ۴۶۵ھ لیکلے شوے دے۔ د دغے کتبے رسم الخط پہ فنی نقطه نګاہ سرہ دَ سلطان ابراهیم (سنه ۴۴۹ھ تا سنه ۴۸۹ھ) یا دَ شهنشاہ جلال الدین اکبر د زمانے (سنه ۱۰۱۴ھ) هرگز نه معلومیږی

د دے دواړو ناموړو بادشاهانو پہ زمانه کښں چه دَ فارسئ ژبے رسم الخط کوم طرز وُو۔ د دے موجودہ کتبے رسم الخط د هغے نه ډیر روستنئ زمانے دَ رسم الخط پہ نمونه دے۔ بلکه د دے موجودہ کتبے د رسم الخط نه دا صفا معلومیږی چه دا هم هغه د سنه ۱۲۴۵ھ یا سنه ۱۲۷۸ھ د زمانے جوړہ شوے دہ۔ او د دے دوہ

وجوهاتو له مخه په تاریخي اعتبار سره د دے کتبے په طور د سند سره منل شه
خاص اهمیت لري

# یو تحقیقي او تنقیدي نظر

دا ټولے تاریخي حوالے چه کومے پورته درج کړے شوے. په دے چه یو نظر واچولے شي. نو دا نتیجه په لاس راځي. چه د سنه ۱۰۰۰ھ نه را په دیخوا ته چه هر څو مره مؤرخین تیر شوي دي. هغوئ ټولو په شریکه هم دا یوه خبره لیکلے ده. چه حضرت داتا ګنج بخش په سنه ۴۶۵ھ کښې په حق رسیدلے دے. البته یو دوه کسانو سنه ۴۶۹ھ او سنه ۴۷۰ھ هم ذکر کړے دے. لیکن د غور، فکر او توجه قابله خبره دا ده. چه دا ټول مؤرخین چه په کومه خبره متفق شوي دي. چه داتا صاحب په سنه ۴۶۵ھ یا سنه ۴۷۰ھ کښې وفات شوي دي. دا ټول د دے قسم نه بیانات دي. چه د دے خبر و سره د داتا ګنج بخش علیه الرحمة خپل کتاب "کشف المحجوب" او د سنه ۱۰۰۰ھ نه د مخکښې زمانے پخوانۍ تاریخي کتابونه او تذکرے قطعًا اتفاق نه کوي.

د دے وضاحت دا سے دے. چه حضرت داتا ګنج بخش پخپل تالیف "کشف المحجوب" کښې د خپلو دوه قسمه استاذانو او پیرانو ذکر کړے دے.

(الف) یو هغه چه د ده په ژوند کښې وفات شوي دي. او د دے د هغوئ د نوم اخیستلو سره سم د دعائیه لفظ "رحمة الله علیه" و رسره لیکي.

(ب) دویم هغه چه د ده د خپل ژوند په زمانه کښې لا ژوندي دي. چنانچه د حضرت داتا ګنج بخش په د غه اولني قسم استاذانو کښې چه کوم د ده د خپل ژوند په زمانه کښې وفات شوے دے. د یو دا سے استاذ ذکر ئے هم کړے دے. چه هغه په سنه ۴۸۱ھ کښې مړ دے. نو د دے لازمي نتیجه دا شوه. چه مونږ له و رسره دا هم منل پکار دي چه په دغه نیټه یعنې سنه ۴۸۱ھ

کښې حضرت داتا گنج بخشؒ ښځیله ژوندے روغ وُو۔ لیکل ئے کوؤلے شول۔ او چه هرکله په دغه سنه ۴۸۱ھ کښې د ده یو استاذ په حق اورسیده نو ده چه دَ هغوئ نه دکومو نیکو خبرو سبق حاصل کړے وو۔ او دوئ هغه خبرے لیکلے نو دَ خپل استاذ دَ نوم سره ئے د رحمة الله علیه جمله هم اولیکله۔

په دے سلسله کښې بنیادی سوال دا دے ۔چه که بالفرض دا اومنلے شی ۔چه حضرت داتا گنج بخش په سنه ۴۶۵ھ کښې وفات شوے دے ۔نو بیا دوئ دخپلو هغه استاذانو ذکر په کوم جوړ اوکړے شو۔ چه هغوئ د سنه ۴۸۱ھ نه هم روستو وفات شوی دی!۔؟

دا دے نه خود اسے معلومیږی، چه هرڅومره دَ پخوانئ زمانے بیا روستنئ زمانے، یا دَ موجوده زمانے مؤرخینو یا تذکره لیکونکو په یوه خوله او یو اتفاق دحضرت داتا گنج بخش تاریخ وفات سنه ۴۶۵ھ لیکلو دا سلسله راشروع کړے ده۔ هغوئ هډو هیڅ دَ حضرت داتا گنج بخش د تالیف "کشف المحجوب" په غور سره او تحقیقی او تنقیدی نقطه نګاه سره د مطالعه کولو تکلیف نه دے کړے۔

په دے اعتبار سره دحضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة دَ تاریخ وفات دا مسئله یقیناً چه یوه ګرانه او مشکله تاریخی مسئله ده۔ تفصیلی بحث پرے کول ضروری دی۔ او دے دپاره پکار ده چه د ټولو نه پخوانی کتاب یعنے "کشف المحجوب" او وروستنئ نور پخوانی تاریخی کتابونه او تذکرے په تحقیقی او تنقیدی نظر سره مطالعه کړے شی۔ او پدے جوړ یوے صحیح نتیجے ته اورسیدلے شو۔ او دا واضحه شی چه دَ بحث په تنقیدی نقطه نګاه سره دحضرت "شیخ هجویری" دژوند زمانه ترکومے نیټے پورے رسیږی؟ او دوئ دوفات تاریخ په کوم کال کښې اندازه کوؤلے شو۔؟

# دَ کشفُ المحجُوب تصریحاتُ

دلته موبز٘ه د "کشف المحجوب" دخپلو تصریحاتو مطابق خبره دسرنه راواخلو چه د دغه نه یوه داخبره معلومه شی . چه حضرت داتا گنج بخش دکتخپل تاریخی کتاب په لیکلو په کومه زمانه کښ شروع کړے وه . چه د دغه نه به ورسره ورسره په لاهور کښ د دوی دموجودګئ زمانه او تاریخ هم معلوم شی - او دا به هم معلومه شی چه داتا گنج بخش ترکومے زمانے پورے د دے کتاب لیکل جاری ساتلی وو -

د آسانتیا د پاره د "کشف المحجوب" د دے نمونے تصریحات ، او ورسره په هغه باندے خپل تحقیقی او تنقیدی بحث د سن او تاریخ په لحاظ سره سلسله وار دلته درج کوُو - چه په معلوماتو حاصلولو کښ او د هغه نه صحیح نتیجے ته په رسید لو کښ آسانی راشی - ( سنه ۴۴۰ھ )

د "کشف المحجوب" دَ څنے اشاراتو نه دا اندازه لګید ے شی - چه دَ دے کتاب په لیکلو ئے د سنه ۴۴۰ھ نه روستو شروع کړے ده - مثلاً " د فقر او غنا " دَ فضیلت په فصل کښ لیکلی :-

" یحیٰ معاذ الرازی . . . او . . . . دمتأخرینو نه شیخ المشائخ ابوسعید فضل الله بن المحمد المهنی رحمهم الله " یول په دے خبره اتفاق لری چه غنی والے او مالداری د فقیر توب ، خواری او نیستګاری نه زیات ښه څیز دے " ( کشف المحجوب صفحه ۲۶ طبع سمرقند )

په دے پورته حواله کښ لفظ د " رحمهم الله " به په خیال کښ اوساتلے شی . او ورسره به دیته هم فکر او کړے شی - چه دغه حضرت شیخ ابوسعید ابوالخیر د قابل اعتماد مؤرخینو په قول په څلورم تاریخ د شعبان المعظم سنه ۴۴۰ھ وفات شوے دے - ( د حوالے د پاره مطالعه کړی کتاب "اسرار التوحید" صفحه ۳۵۶ )

دده نه موبن دے نتیجے ته رسید لے شو۔ چه د " کشف المحجوب " په لیکلو باندے
د سنه ۴۴۲ھ نه روستو شروع شوے ده۔ ځکه چه دا واقعه د کتاب په اول
سر (صفحه ۲۶) کښی لیکلے شوے ده۔ او په دغه نیټه ابوسعید ابوالخیر وفات
شوے وو۔ هر کله چه شیخ هجویریؒ په پوره وضاحت سره د " کشف المحجوب " د
لیکلو په وخت کښی د ابوسعید ابوالخیر د نوم سره " رحمة الله علیه " لیکلے دے
او دعائے ورته کړے ده۔ نو هر هغه څوک چه د عربی او فارسی ادب او انشاء
سره څه نه څه واقفیت لری۔ هغه په دے پوهیږی چه " رحمة الله علیه " یوه
داسے جمله ده چه دا فقط د هغه چا د نوم سره لیکلے شی۔ چه هغه وفات شوے وی.

او هر کله چه حضرت شیخ سید علی الهجویری دا خپل کتاب " کشف المحجوب "
په لاهور کښی لیکلے دے۔ نو په دے وجه دا ویلے شو۔ چه په سنه ۴۴۲ھ کښی حضرت
داتا گنج بخش په لاهور کښی وو۔ او د دغه سنه ۴۴۲ھ نه روستوئے د دے کتاب
په لیکلو شروع کړے ده۔ (سنه ۴۵۰ھ)

بل هغه بزرگ چه د حضرت داتا گنج بخش استاذ دے۔ او د کشف المحجوب
په صفحه ۲۱۱ باندے د هغه ذکرئے کړے دے۔ هغه حضرت ابوالقاسم بن علی
بن عبد الله گرگانی علیه الرحمة دے۔ د ده د نوم سره لیکی:۔ مَتَّعَنَا اللّٰهُ وَ
الْمُسْلِمِیْنَ بِبَقَائِه (ترجمه خدائے دے ژوندے لری او ده په ژوند دے
موږ ټول مسلمانان بهره مند کړی۔) د غه شان هم د دے ابوالقاسم گرگانی
په حقله په صفحه ۲۵۴ باندے لیکی:۔" او شیخ ابوالقاسم گرگانی چه نن ورځ مرتبه
د قطب مدار لری۔ او مدار د عالم په هغه دے۔ خدائ دے ژوندے لری." (د اهل
تصوف په اصطلاح کښی قطب مدار " غوث " ته وائی) د دے پورته دواړو حوالو نه
صفا معلومیږی۔ چه د کشف المحجوب د دے حصے لیکلو په وخت کښی حضرت
ابوالقاسم گرگانی ژوندے وو۔ دا ابوالقاسم هغه بزرگ دے۔ چه د حضرت
داتا گنج بخش او د دوئ ترمنځه په طوس نومی ښهر کښی ملاقات شوے وو۔

او دے د حضرت ابوسعید ابوالخیر په همعصرو بزرګانو کښې شمارے شي. او په تاریخ سنه ۴۵۰ھ کښې وفات شوے دے. د دے حوالے د پاره ملاحظه کړي: تاریخ تصوف اسلام، صفحه ۲۸۰ او خزینة الاصفیاء جلد ۲ صفحه ۸۰)

د کشف المحجوب د دے پورته حوالے نه مونږه دا نتیجه اخلو، چه حضرت شیخ هجویري د کال سنه ۴۵۰ھ نه مخکښې په لاهور کښې استوګنه لرله. او د "کشف المحجوب" په لیکلو کښې مصروف وُو.

سنه ۴۶۰ھ

حضرت ابوالفضل محمد ابن الحسن الختلي رحمة الله علیه ډیر لوئ شیخ روحاني رهنما، او د حضرت داتا ګنج بخش استاذ او مرشد وو. د ده په حقله د کشف المحجوب په صفحه ۱۲۰ کښې لیکي:- "په طریقت کښې زما اقتدا، په شیخ ابوالفضل محمد ابن الحسن ختلي پسے ده".

حضرت شیخ هجویري د دے خپل استاذ او مرشد د وفات واقعه په د دے الفاظو سره بیانوي:-

"کومه ورځ چه هغه وفات کیده. نو په "بیت الجن" کښې اوسیده. دا یو کلے دے. چه د عقبه نه برته د دمشق (شام) په علاقه کښې دے. د وفات په وخت کښې د هغوی سر مبارک زما په غیږ کښې وُو...... ډیر او بد وصیت ئے را ته او کړ. او روح مبارک ئے خدائ ته وسپارلو".

(د دحوالے د پاره ملاحظه کړي "کشف المحجوب" صفحه ۲۰۹ طبع سمرقند)

د حضرت داتا ګنج بخش دا پورتنے بیان په دے خبره باندے پوره دلیل دے چه حضرت هجویري د خپل استاذ د مرګ په بالبنت باندے په د مشق (شام) کښې موجود شنبائي. مونږه د داتا ګنج بخش د دے استاذ او روحاني رهنما نوم د "کشف المحجوب" په ذریعه پیژنو. حضرت مولانا عبدالرحمان جامي نقشبندي په خپل کتاب نفحات الانس صفحه ۲۹۰ کښې د دوئ هم دغه قدر

حالات لیکلی دی۔ کوم چه په کشف المحجوب کښې درج دی۔ د خپل طرف نه څه اضافه ئے پرے نه ده کړے۔ او نه ئے د هغه د وفات تاریخ لیکلے دے۔

د حضرت هجویری د دے استاذ او پیر طریقت حضرت ابوالفضل محمد ابن حسن ختلی د وفات په حقله امام ذهبی په خپل کتاب "تاریخ الاسلام" کښې لیکی:-

"حسن ختلی په سنه ۴۶۰ھ کښې وفات شوے دے۔ څه وخت چه وفات کیدو نو د شام په دمشق نومی ښهر کښې په بیت الجن نومے مقام کښې اوسیده۔ او په دغه موقع د ده مرید حضرت سید علی هجویری موجود وو"۔

(امام ذھبی کی تالیف "تاریخ الاسلام" یہ قلمی نسخہ یہ برٹش میوزیم لندن کے موجودہ دہ)

مفتی غلام سرور لاهوری په خپل تالیف کتاب "خزینة الاصفیاء" جلد ۲ کښې لیکی۔

"ما د نفحات الانس د یوے قلمی نسخے په حاشیه باندے دا عبارت لیکلے لیدلے ده۔ چه حضرت شیخ محمد ابن حسن ختلی په سنه ۴۵۳ھ کښې وفات شوے دے"۔..

لیکن هر کله چه د مفتی غلام سرور د قول په مقابله کښې د امام ذهبی عبارت بالکل واضحه دے۔ په دے وجه د دوئ د وفات تاریخ هم دغه سنه ۴۶۰ھ صحیح دے۔ ځکه چه د مفتی غلام سرور په بیان کښې دا وضاحت نشته دے۔ چه د "نفحات الانس" په حاشیه باندے دغه عبارت چا لیکلے ده۔ او سنه ئے څه ده؟۔

د کشف المحجوب د دے حوالے نه معلومیږی۔ چه حضرت داتا گنج بخش د لاهور په اوسیده لو دوران کښې یو ځل بیا د مملکت شام او عراق سفر کړے دے۔ او د دغه سفر په دوران کښې په سنه ۴۶۰ھ کښې د دمشق (شام) په بیت الجن نومے مقام کښې وو۔ چه د حضرت جامی علیه الرحمة د وضاحت مطابق لکه چه ذکر او شو دغه بیت الجن نومے مقام د مملکت شام د دمشق په علاقه کښې دے۔ په دغه دوران کښې حضرت هجویری د خپل استاذ

حضرت حسن ختلی دوفات واقعه لیدلے دہ۔ او بیاد هغه نه روستو یوځل بیا لاهور ته راغلی دہ. که بالفرض دا او وایو چه دخپل استاذ دوفات دواقع نه فوراً روستو راغلی دے۔ او دغه فوراً لاهور ته راروانیدل ئے دهغه الفاظو نه فهم کړو۔ چه: "ډیر اوږد وصیت ئے راته اوکړ" او دا او وایو چه خپل استاذ حضرت حسن ختلیؒ به ورته په دغه وصیت کښ فوراً لاهور ته د تللو هم فرمائیلی وی۔ نو بیا هم دهغه زمانے ذرائع اوټګ او د سفر تکلیفاتو ته چه خیال اوکړو۔ نو دا وئیلے شو۔ چه حضرت داتا ګنج بخش به په دوئیم ځل بانداے د سنه ۴۶۱ھ په خوا وشا کښ راسیدلے وی۔ او دلته د راسیدلو نه روستو بیا ئے خپل ستاذ او پیر دا واقعه لیکلے دہ۔ او دا خبرہ د دوئ د دغه الفاظو نه معلومیږی۔ چه چرته فرمائی:۔ "دخپل پیر دوفات په وخت کښ زه هلته حاضر وؤم"۔

د پښتو ژبے لفظ "وؤم" او د فارسئ ژبے "بودم" د دے دواړو ژبو د ګرائمر مطابق دماضی قریب او بعید دواړو د پاره استعمالیږی۔ او دا امکان ئی چه دا واقعه دحضرت داتا ګنج بخش د دغه لیکلو نه وړاندے تیره شوے دہ۔

## سنه ۴۶۵ھ

دحضرت داتا ګنج بخش دیو استاذ نوم امام ابوالقاسم عبدالکریم بن هوازن بن عبدالملک بن طلحه قشیری نیشاپوری شافعی دے۔ دا امام ابوالقاسم په سنه ۳۷۶ھ کښ پیدا شوے؛ او په سنه ۴۶۵ھ کښ وفات شوے دے۔ حضرت داتا ګنج بخش په نیشاپور کښ د دہ سره دیره شوے وو۔ او د "کشف المحجوب" اکثر مضامین او عنوانات ئے هم د دے خپل استاذ په تالیف "رساله قشیریه" بانداے بناء کړی دی۔ د کشف المحجوب په صفحه ۳۰، ۲۰۵، ۳۶۸ (طبع سمرقند) کښ کښ ځایونه حضرت هجویری دا ذکر کړی دی چه دا خبرے م:

"دخپل استاذ امام ابوالقاسم قشیری" رحمة الله علیه" نه آوریدلی دی۔ دکشف المحجوب په دے روایت کښ به هم د "رحمة الله علیه" جمله او د

"آورېدلي دي" جمله د واړه په خيال کښې اوساتلې شي. ځکه چه د دواړه جملې دا بنائي چه د کشف المحجوب په صفحاتو ۳۰، ۲۰۵، ۳۶۸ کښې چه کومې خبرې ليکلې شوي دي. دغه د حضرت امام ابوالقاسم قشيري د وفات نه روستو ليکلې شوي دي. او هرکله چه امام قشيري د صحيح روايتونو، او د عامو مؤرخينو د متفقه بيان مطابق په سنه ۴۶۵ھ کښې وفات شوے دے. (د حوالې پاره ملاحظه کړئ کتاب "وفيات الاعيان"، تاليف د علامه ابن خلکان جلد ۲ صفحه ۳۷۵.)

نو دے پوره معلوماتو او شهادتونو په رڼا کښې مونږ دا فيصله کولے شو. چه حضرت شيخ هجويري د داتا گنج بخش د سنه ۴۶۵ھ نه روستو ژوندے وو. په لاهور کښې اوسيده او د کشف المحجوب په ليکلو کښې مشغول وو. او لکه چه عامو مؤرخينو ليکلي دي چه دے په سنه ۴۶۵ھ کښې وفات شوے دے. دغه خبره بيخي غلطه ثابته شوه. او دا ځکه لکه چه مخکښې ورته اشاره او شوله. د امام قشيري د تذکرے په سلسله کښې په ګڼو ځايونو کښې ئے د ده په حق کښې هم هغه شان او په هغو الفاظو (يعنے رحمة الله عليه) سره دعاګو شوے دے. چه دغه الفاظ د مړو شوؤ خلقو د پاره مخصوص دي. مطلب دا چه د حضرت داتا گنج بخش د هريو بيان نه دا ثابتيږي چه د دغه خپل استاذ امام قشيري ئے د وفات شوو بزرګانو په ډلګۍ کښې شمار کړے دے. د مثال په طور د "کشف المحجوب" طبع سمرقند په صفحه ۲۰۹ کښې ليکي چه:-

"استاذ امام زين الاسلام ابوالقاسم عبدالکريم ځوي د هوازن قشيري په خپله زمانه کښې خپل مثال نه لرلو. دلوئي قدر او اوچتې مرتبې خاوند وو." دے تصريح نه دا صفا ښکاريږي. چه د کشف المحجوب دا حصه ئے د امام قشيري د تاريخ وفات سنه ۴۶۵ھ نه روستو ليکلې ده. فرض کړه. چه په سنه ۴۶۶ھ يا په سنه ۴۶۷ھ کښې ئے ليکلې ده. بيا هم د دغے نه دا يوه نتيجه په يقين سره په لاس راځي. چه داتا گنج بخش په سنه ۴۶۵ھ کښې ژوندے وو. چه دے

واقعاتو ته سرے اوکوری. نوحیران شی. چه دغه ټول موّرخین د چا بیانونه چه محققینے درج ښول. آخر هغوئ په کومه بناء اوکوم دلیل باندِ د حضرت هجویریؒ تاریخ وفات سـ۴۶۵ـنه ھ لیکلے دے ؟.

حضرت مولانا عبد الرحمان جامیؒ نقشبندی پخپل کتاب "نفحات الانس" صفحه ۲۸۸ کښں لیکی :-

"استاذ امام قشیری علیه الرحمة په میاشت ربیع الآخر سـ۴۶۵ـنه ھ کښں په حق رسید لے دے . او په قول دَ ابن الجوزی چه په خپل کتاب "المنتظم فی تاریخ الامم" جلد ۸ صفحه ۲۸۰ کښں ئے لیکلے دی. په نیشاپور کښں د خپل استاذ ابو علی دَقاق د قبر په خواکښں دفن کړے شه"

دد دے وارو وایتونو په رنړا کښں هر کله چه امام قشیری په نیشاپور (ایران) کښں وفات شوی وو. نو لازمی خبره ده. چه دهغه د وفات خبر به د دغه سـ۴۶۵ـنه ھ نرخه موده روستو لاهور ته رارسید لے وی. ځکه چه حضرت داتا گنج بخش د کشف المحجوب په صفحه ۲۹ باندے په پورتنئ حواله کښں دَ امام قشیری حالات او اقوال په صیغه دَ ماضی بعید سره لیکی. دَ مثال په طور دا عبارت ئے ښو۔

"او الله تعالیٰ دا امام قشیری حال او ژبه دَ فضول کارونو او خبرونه په خپل حفاظت کښں ساتلی وو"

په دے پورتنئ عبارت کښں په لفظ "ساتلی وو" باندے غور پکار دے. د دے وجوهاتو په بناء دا خبره یقین ته رسیږی. چه حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة د سـ۴۶۵ـنه روستو هم ژوندے وو. په لاهور کښں وو. او دَ کشف المحجوب په لیکلو مصروف وو۔

## سـ۴۷۳ـنه ھ

محققینں مونږ ته د پخوانیو موّرخینو د کتابونو اقتباسات پیش کړی دی چه[25]

هغوئ دَ داتا گنج بخش دَ وفات سنه ۴۶۵ھ، ۴۶۹ھ، سنه ۴۷۰ھ بنودلے ده. لیکن زمونږ د دے لاندے حوالے نه به معلومه شی چه حضرت شیخ هجویریؒ په ۴۷۳ھ کښې هم ژوندے وو. د دے وضاحت داسے دے چه:

"حضرت ابوالحسین سالبه څوئ د ابراهیم علیه الرحمة د مملکت ایران د شیراز نومی ښهر په بزرګانو کښې دَ اوچتے مرتبے بزرګ تیر شوے ده. دے بزرګ یوه لویه درګاه او خانقاه ساز کړے وه. چه د لرے لرے ملکونو نه لوئ لوئ بزرګان او صوفیان به راتلل او په دغه خانقاه کښې به دیره وُو"۔

(دحوالے دپاره ملاحظه کړئ "طبقات الصوفیه" هروی (قلمی نسخه صفحه ۴۲۵)

"حضرت شیخ ابواسحاق شهریار کازرونی هم دَ دے شیخ ابوالحسین سالبه ملاقات له ورغلے وُو۔

(دَحوالے دَپاره ملاحظه کړئ کتاب "فردوس المرشدیه" صفحه ۱۱۰)

"چنانچه هم د دے نامورترین بزرګ شیخ ابوالحسین سالبه علیه الرحمة تذکره حضرت داتا گنج بخش په خپل کتاب "کشف المحجوب" کښې په دے الفاظو سره کوی (دحوالے دپاره ملاحظه کړئ کشف المحجوب صفحه ۱۳۵ و ۲۱۲) فرمائی:۔

"حضرت شیخ الشیوخ ابوالفتح سالبه ډیر ز یات فصیح اللسان بزرګ وو، او شیخ حسین سالبه دخپل پلار ابوالفتح نیک فرزند دے. او د هغه د اوچت مقام امید وارد ے"۔

دَ "کشف المحجوب" په دے پورته حواله کښې دَ پلار او څوئ ذکرنه په واضحه ثابته ده. چه څه وخت د اتا گنج بخش دَ "کشف المحجوب" دغه حصه او دغه پورتنی مضمون لیکلو نو په دغه نیټه پلار یعنے ابوالفتح سالبه وفات شوے وو۔ او څوی یعنے شیخ حسین سالبه ژوندے وو۔ ځکه چه دَ پلار ذکر ئے دَ ماضی په صیغ سره کړے دے. فرمائی (بزرګ) وُو او د څوی

ذکر ئے دَ حال په صیغ سره کړے دے. فرمائی (امیدوار دے)

د دے حقیقتونو په خیال کښې راوستلو نه روستو اوس دیته فکر اوکړو چه دغه شیخ ابو الفتح چه دَ شیخ حسین سالبه پلار دے او په دغه اعتبار سره یو لقب ئے ابو الحسین هم دے چه دے په کوم تاریخ وفات شوے دے؟ په دے سلسله کښې دَ علامه ابن جوزی دَ کتاب "المنتظم" جلد ۸ صفحه ۳۲۸ او دَ مولانا عبد الرحمان جامیؒ دَ کتاب نفحات الانس صفحه ۳۵۹ دواړو تصریحات څو بره دوړاندے دی. چه "حضرت شیخ ابو الفتح ابو الحسین سالبه په سنه ۴۷۳ھ کښې وفات شوے دے" چنانچه دا یوه داسے تاریخی حواله او تاریخی حقیقت دے. چه د دے نه دا صفا ثابتیږی چه حضرت داتا گنج بخش په سنه ۴۷۳ھ کښې ژوندے وو. او د "کشف المحجوب" په لیکلو کښې مشغول وو.

## سنه ۴۷۷ھ

دَ پورته حوالو دَ مخه دا ثابته شوه چه په سنه ۴۷۳ھ کښې حضرت داتا گنج بخش ژوندے وو. اوس دا کتل پکار دی چه وروسته روستو تر کوم تاریخه دَ دوئ دَ ژوند په حقله معلومات په لاس راتللے شی-؟ په دے سلسله کښې دَ "کشف المحجوب" صفحه ۲۱۱ په دے بیان باندے به یو نظر واچوو. په دے بیان کښې ئے دخپل یو معاصر صوفی بزرگ بیان په دے الفاظو سره کړے دے.

" ابو علی فضل ابن محمّد فارمدی اعفا الله عنه "

(ترجمه) ابو علی فضل ځوئ دَ محمد فارمدی خدا ے دے ئے ژوندے او په عافیت لری..... د داتا گنج بخش د دے عبارت او دعا نه معلومیږی چه د دے تحریر په وخت کښې ابو علی فضل ژوندے وو. او بیا روستو په سنه ۴۷۷ھ کښې وفات شوے دے.

د دے ابو علی فارمدی په حقله دَ عبد الغافر ابن اسماعیل چه دَ

دَ ابوالقاسم قشیری نمسے دے (د اعبد الغافر په سنه ۴۵۱ھ کښې پیدا شوے او په سنه ۵۲۹ھ کښې په مقام دَ نیشاپور کښې وفات شوے دے) او د مولانا عبد الرحمان جامي دواړه د ابیان دے. چه د ابو علي فارمدي عمر او یا کاله وو (یعني ولادت ئے سنه ۴۰۷ھ او وفات ئے سنه ۴۷۷ھ کښې وو)

(د حوالے دپاره ملاحظه کړئ (الف) "مرآة الجنان" د امام یافعي جلد ۳ صفحه ۱۲۲

(ب) "نفحات الانس" دَ مولانا جامي صفحه ۳۳۳) (ج) "خزینة الاصفیا" جلد ۲ صفحه ۹)

دا پورته چه بیان شول دا سے حقیقتونه دي. چه د دے له مخه مونږ دا وښیلو شو چه حضرت داتا ګنج بخش علیه الرحمة د سنه ۴۷۷ھ نه روستو هم ژوندے وو. په لاهور کښې اوسیدلو. او دَ کشف المحجوب په لیکلو کښې مصروف وو. سنه ۴۷۹ھ

په پورتنئ حواله کښې دا ثابته شوه چه حضرت داتا ګنج بخش دَ سنه ۴۷۷ھ نه روستو هم ژوندے وو. اوس مونږ له دا کتل پکار دي چه دَ دوئ دَ ژوند نیټه وریسے نوره تر کومے پورے رسیږي. په دے سلسله کښې مونږ له دَ کشف المحجوب دا لاندینی دوه حوالے پکار دي.

(الف) دَ کشف المحجوب (طبع انار کلي لاهور) په صفحه ۱۱۸ کښې دَ حضرت شیخ سهلکي علیه الرحمة ذکر په دے الفاظو سره شوید ے.

"امام دَ هغه وطن وو. او دَ هغه یو نیکو کار څوئ هم وو."

دَ امام ذهبي دَ تالیف "تاریخ الاسلام" دَ بیان مطابق دغه شیخ سهلکي په سنه ۴۷۷ھ کښې وفات شوے دے.

(ب) دَ "کشف المحجوب" په صفحه ۱۲۱ باندے دَ حضرت شیخ امام اشقاني ذکر په دے الفاظو سره شوید ے.

"حضرت شیخ امام اشقاني په بعض علمونو کښې زما استاذ وو" او دغه استاذ امام اشقاني علیه الرحمة دَ تاریخ الاسلام دَ امام ذهبي دَ تصریح مطابق

په سنه ۴۷۹ھ کښې وفات شوید ے.

هر کله چه د د ے دواړو مشا ئخو ذکر هم په صیغه دَ ماضي بعید سره شو ے د ے نو د د ے په نتیجه کښې مونږه دا وایو چه حضرت داتا گنج بخش په سنه ۴۷۴ھ او په سنه ۴۷۹ھ کښې ژوند ے وو. په لاهور کښې اوسیده او د کشف المحجوب روستنۍ حصه ئې لیکلے.

## سنه ۴۸۱ھ

په پورتنو حوالو کښې دا ثابته شوه چه حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة دَ سنه ۴۷۹ھ نه روستو هم ژوند ے وو. پاے سلسله کښې یو بل لوی قوی دلیل او غټ شهادت چه دَ هغې نه دا ثابتیږی چه حضرت شیخ سید علی الهجویری داتا گنج بخش علیه الرحمة دَ سنه ۴۸۱ھ نه روستو هم ژوند ے وو.

دَ فائد ے دَ زیاتوالی په خاطر مونږه لږ شان په تفصیل سره په د ے دلیل باند ے بحث کول غواړو. دلیل دا د ے: چه حضرت داتا گنج بخش په خپل کتاب کشف المحجوب کښې دَ حضرت شیخ الاسلام خواجه عبد الله انصاری تذکره لیکلے ده. دغه شیخ الاسلام دَ شهر هرات لوی مشهور صوفی او عارف بزرګ تیر شو ے د ے. او دَ تمامی مؤرخینو په اتفاق سره په سنه ۴۸۱ھ کښې په شهر هرات کښې وفات شو ے د ے.

دَ مرحوم استاذ میاں محمد شفیع لائبریرین دَ پبلک لائبریری پنجاب په کتب خانه کښې دَ "کشف المحجوب" یوه داسے قلمی نسخه موجوده وه. چه هغه په سنه ۶۶۵ھ کښې لیکلے شو ے وه. او د غ په حقله دا خیال وو چه شاید چرته بل ځائ کښې د د ے نه زیاته پخوانۍ نسخه به موجوده نه وی. دَ د ے قلمی نسخے په صفحه ۶۱ باند ے دا عبارت دَ غور قابل د ے: فرمائی:-

"پیر او وشیل یعنے خواجه عبد الله انصاری رحمة الله علیه....."

چنانچه هم دغه پورتنے عبارت دَ کشف المحجوب په :- :-

(الف) نسخه طبع لاهور کښې په صفحه ع۱۹۳ باندې.

(ب) نسخه طبع سمرقند کښې په صفحه ع۳۱ باندې.

هم لکه دَ پورتنئ قلمي نسخې دَ صفحه ع۱۷ دَ عبارت په شان لفظ په لفظ لیکلې شوې دې:-

"پیر عبد الله انصاری هروی رحمة الله علیه"

(ج) البته دَ کشف المحجوب په نسخه طبع لیننګراډ صفحه ع۲۸ باندې دا عبارت دا سې لیکلې شوې دې:-

"پیر ګفت رضی الله عنه خواجه عبد الله انصاری"

یعنې دَ لیننګراډ په مطبوعه نسخه کښې دَ لاهور او سمرقند دَ مطبوعه نسخو او قلمي نسخې بر عکس دَ "رحمة الله علیه" په ځائې "رضی الله عنه" لیکلې شوې دې. هر کله چه کلمات "رحمة الله علیه" او "رضی الله عنه" دواړه د معنې په اعتبار سره یو شان دې. څه فرق نه لري. او دواړه د وفات شوو خلقو سره مخصوص الفاظ دي. نو دې نه مونږ دا نتیجه اخلو چه په دا سې وخت کښې چه داتا ګنج بخش دَ کشف المحجوب دغه حصې لیکلې. "پیر د هرات" وفات شوې وو. او دا یقیناً هغه زمانه ده. کومه چه د ۴۸۱ ه نه روستو وه. او دغه نه مخکښې په هیڅ صورت نه شي کیدې. او په نتیجه کښې ئې دا هم وئیلې شو. چه دَ دغه ۴۸۱ ه نه روستو حضرت شیخ هجویریؒ په لاهور کښې ژوندې موجود وو. او دَ کشف المحجوب دغه حصې ئې لیکلې.

دَ "پیر هرات" خواجه عبد الله انصاری تالیف "طبقات الصوفیه" او حضرت داتا ګنج بخشؒ تالیف "کشف المحجوب" دواړه چه سره مقابله کړې شي. نو د دواړو په مباحثو کښې ښکاره فرق دې. د دغې نه دا معلومیږي چه داتا ګنج بخش ته دَ "پیر هرات" دغه کتاب نه وو رسیدلې. که رسیدلې وې. نو دغه اختلافات به په کښې نه وې پیدا شوي. او د دې کتاب

حضرت داتا گنج بخش ته د نه رسيدو يوه وجه دا. او هغه دا ده. چه دغه کتاب براه راست پخپله عبدالله انصاري نه دے تاليف کړے، بلکه دَ هغه "امالي" (املاء ديته وائي. چه يو استاذ په يو موضوع باندے تقرير وُکوي. او شاګردان ئے په باقاعدګئ سره روزنامه نقل کوي. او بيا روستو هم دغه شاګردان ورله ترتيب ورکړي.) په دے اعتبار سره دَ "پيرهرات" کتاب "طبقات الصوفيه" هم دَ هغوئ دَ تقرير ونو ټوټه دي. چه دَ تصوف په موضوع ئے وخت په وخت کړي دي. دَ هغوئ په مريدانو کښې يو کس ليکلي او جمع کړي دي. او دَ پير هرات دَ وفات نه روستو ئے ورله ترتيب ورکړے دے. د دے وجوهاتو په رڼړا کښې دَ "طبقات الصوفيه" دَ تاليف زمانه دَ سنه ۴۸۱ھ او سنه ۵۰۰ھ ترمنځه متعين کيدلے شي. او په دے بناء دا وئيلے شو چه دَ "کشف المحجوب" او "طبقات الصوفيه" دواړو دَ تاليف يوه زمانه وه. او هم په دے وجه دا کتاب "يعنے طبقات هروي" دَ حضرت داتا گنج بخش لاس ته نه دے رارسيدلے. چه دَ هغې نه ئے استفاده کړے وے. يا ئے دَ هغې نه اقتباسات اخيستي وے.

دا معلومات چه پورته درج کړے شول. د دے له مخه مونږ دَ "کشف المحجوب" دَ تاليف زمانه دَ سنه ۴۴۲ھ او سنه ۴۸۵ھ پورے اندازه کولے شو. او بله دا چه حضرت شيخ هجويريؒ تر دغه سنه ۴۸۵ھ مطابق سنه ۱۰۹۳ء پورے ژوندے وُو. او په لاهور کښې اوسيده. او هم د دے وجوهاتو له مخه دا ثابته شوه چه کوم خلقو دَ حضرت هجويريؒ وفات سنه ۴۶۵ھ سنبودلے دے. دغه بيخي غلط دے. او دَ دوئ دَ رأي په غلط والي باندے دا يو څو نور دليلونه هم دَ غور قابل دي:-

(۱) يو دليل دا دے. چه په سنه ۴۶۵ھ کښې دَ حضرت داتا گنج بخش وفات کيدل يوه داسے خبره ده چه عقل ئے هم نه مني. دَ مثال په

په طور دیته به فکر اوکړو. چه هرکله د امام ذهبیؒ د کتاب "تاریخ الاسلام" د تصریح مطابق حضرت داتا گنج بخش په سنه ۴۶۰ھ کښې د خپل پیر حضرت شیخ حسن ختلی د وفات په موقع په دمشق (شام) کښې وُو. نو که دا اومنلې شي. چه دے د خپل پیر د وفات نه فوراً روستو هم په دغه کال سنه ۴۶۰ھ کښې لاهور (پنجاب) ته د راتللو د پاره را روان شوے دے. نو بیا هم د دمشق او لاهور تر منځه فاصلې ته د هغې زمانې پیاده مزلونه او د دومره اوږدے لارے د سفر مشکلاتو ته چه اوکتلے شي نو دا به او ویلے شي چه کم از کم د سنه ۴۶۱ھ په آخر کښې به دوئ لاهور ته را رسیدلي وي. نو بیا که ورپسې په سنه ۴۶۵ھ کښې د دوي وفات اومنلے شي. نو آیا دا خبره عقل خلي چه...... فقط په درے څلور کاله مختصره شان زمانه کښې دوي دومره لوئ شهرت حاصل کړے وُو. چه د لاهور او پنجاب او نورو خواؤ شا علاقو بے شمیره د خدائ مخلوق یے ځان ته راکښلو. چه د هغې په حقله شهزاده داراشکوه په خپل کتاب "سفینة الاولیاء" کښې لیکي:-

"د ټول پنجاب خلق د حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة مریدان شول"

(سفینة الاولیاء صفحه ۱۶۵)

ظاهره ده چه دومره لوئ روحاني اثر او رسوخ پیدا کیدل چه ټول پنجاب یے ځان ته راکښلے وُو. دا د لږے مودے کار نه شي کیدلے. ځکه چه د دے سره سره د هغه زمانې د پنجاب او لاهور حالات هم په نظر کښې ساتل غواړي. د مثال په طور د سنه ۴۶۱ھ نه تر سنه ۴۶۵ھ پورے چه په لاهور کښې د داتا گنج بخش د استوګنې زمانه فرض کړے شي. نو دا یوه داسے زمانه ده چه په دے کښې او د دے نه څو کاله مخکښې سلطان محمود غزنوی سلطان مسعود غزنوی. سلطان مودود غزنوی، سلطان علی ابن ربیع ابن مسعود او سلطان ابراهیم غزنوی. پر له پسے په لاهور او پنجاب غزاګانے کړے

۱۰۲

او د دے ملک پخوانو کفارو او مشرکانو له ئے عبرتناک شکستونه ورکړی وو۔
او غالبه دا ده چه اکثر هغه خلق به موجود او ژوندی هم وو۔ چه چا
د مسلمانانو غازیانو او مجاهدینو د لاسه شکستونه خوړلی وو۔ بل خوا ته
حضرت داتا صاحب هم دَ غزنی او سیدونکے وو۔ نو قدرتی طور هغه غیر مسلم
خلق چه دوئ به ورته تبلیغ کول غوښتل. هغوئ به ورسره پټ په زړه
کښ تعصب ساتلو۔ او مونږ ته دا هم هیره ول نه دی پکار چه کوم هندوان
او مشرکان چه دَ حضرت داتا گنج بخش په لاسونو مبارکو باندے مسلمانان
شول۔ هغوئ قدرتی طور هم پخپلو حالاتو کښ انتهائی تنګ نظره او متعصب
خلق وو۔ او پوائے هغه زمانه څه چه نن ئے هم دغه حال دے۔ نو په
داسے حالاتو کښ که حضرت داتا گنج بخشؒ به هغوئ اسلام ته راښلل نو
هغوئ به ورله خوا ته چرته راتلل. بیا دَ داسے نفرت کوونکو او تر هیدونکو
خلقو زړونه چه حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة پخپلو پاکو اخلاقو او
خپلے روحانی صفائی څان ته راماتله کړی دی۔ دے ته مجبور کړی وی۔
او دے رواداره کړی ئے وی۔ چه دَ حضرت داتا گنج بخش دَ وعظ نصیحت او
تبلیغ مجلسونو ته دے حاضر شی۔ دَ حق دین اسلام احکامو اوریدلو ته
دے غوږ کیږدی۔ او دهغے منلو ته دے غاړه کیږدی۔ او مسلمانان دے شی۔
یقیناً چه دے به ډیر اوږد وخت اخیستے وی. داد ومره لوئی کار په لاهور کښے
د سنه ۴۶۱ھ نه تر سنه ۴۶۵ھ پورے په درے څلور کاله مختصره نیټه کښے نه
شی کیدے. او نه دا خبره امکان لری چه په لاهور کښ په دومره مختصره
زمانه قیام کښے دے. دوی پوداسے جماعت هم جوړ کړے وی. چه هغه
دلاهور ښهر کډولونه اولنے جماعت ګنړلے شی۔

# اولنے جماعت

په دے سلسله کښې د حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة د جماعت په حقله چه کوم روایت دے. چه دا د لاهور ښهر د ټولو نه اولنے جماعت دے. په دغے هم یو نظر اچول پکار دی. ځکه چه په دغه روایت کښ یوه خبره دا هم وئیلے شوے ده. "چه کله دوی د جماعت تاده کیښودله. نو د هغه وخت عالمانو پرے اعتراض وکړو. چه قبله ئے لږه شان جنوب طرف ته کړه ده" نو که مونږه فکر اوکړو. د دے عبارت نه دوه خبرے معلومیږی...... (الف) یوه خبره دا ده چه په لاهور کښے په دغه نیټه نور عالمان هم موجود وو.

(ب) بله دا ده چه په لاهور کښے د دغه نه مخوانی جوړ شوی نور جماعتونه هم موجود وو. چه د هغے په مقابله کښ د دے جماعت قبله لږه شان د جنوب طرف ته سنګزنه معلومیده.

او دا دواړه خبرے عقل هم اخلی. ځکه چه د داتا گنج بخش لاهور ته د راتللو زمانه که سنه ۴۲۳ھ او منلے شی. او که سنه ۴۳۱ھ یا سنه ۴۴۰ھ او سنه ۴۶۱ھ بهرحال لاهور د دغے نه مخکښ د سلطان محمود غزنوی په زمانه کښ په سنه ۴۰۲ھ کښے فتح شوے وو. او د هغه سره چه د غازیانو په لښکر وکښے کوم عالمان، صالحان، سیدان او مشائخ راغلی وو. دلته کښ ئے ورځے شپے آرولے وے. او بیا دلته د اسلام د تبلیغ او اشاعت د پاره پاتے شوی وُو. نو دا ناممکنه خبره ده. چه هغوئ به جماعتونه نه وُو جوړ کړی. البته دا به معلومول غواړی. چه اولنے جماعت چه په لاهور کښ جوړ شوے وو. هغه کوم یو وو. په کومه سنه کښ جوړ شوے وُو. او چا جوړ کړے وُو؟ او س به په هغه فیصله بانده یو نظر واچوو. چه لاهور ته د داتا گنج علیه الرحمة

درارسیدنو اوهم په هغه ورځ باندے دَحضرت شیخ حسین زنجانیؒ دَوفات کیدلو په حقله جوړه شوے ده. دپاره د دے چه دا معلومه شی چه یوے تاریخی واقعے له څرنګ افسانوی رنګ ورکړے شوے دے۔

## حضرت داتا ګنج بخشؒ او شیخ حسین زنجانیؒ

مخکښې دا بحث تیر شوے دے. چه دَحضرت داتا ګنج بخش لاهور ته دَ راتللو په موقع پورے چه کومه قیصه په خلقو کښے مشهوره ده. (تقریباً هر یو مؤرخ اړتیا کړه لیکو نکی نقل کړیده۔ چه دَحضرت شیخ هجویری لاهور ښهر ته دَننوتلو په ورځ ده دَ پیر بهائی شیخ حسین زنجانیؒ جنازه دَښهر نه باهر ته راوتله" دا یوه داسے قیصه ده چه په تاریخی اعتبار سره غلطه ده. او حیرانتیا دا ده چه تر اوسه پورے دے خبرے ته هیچا فکر کړے نه دے.

د دے وضاحت داسے دے. چه دا روایت دَحضرت شیخ نظام الدین اولیاء دَکتاب فوائد الفواد دَصفحه ۱۹ دے. لیکی چه: "شیخ هجویری او شیخ حسین زنجانی دواړه همعصر وو. دَیو پیر طریقت مریدان وو. لیکن دا روایت ئے ... نه دے چه:۔

(الف) پیر سید علی هجویری دَ ۴۸۵ھ په خوا و شا کښے وفات شوے دے لکه چه مخکښې په تفصیل سره بحث اوشو۔

(ب) او دَشیخ زنجانی په حقله مفتی غلام سرور دَخپل کتاب خزینة الاصفیاء جلد ۲ صفحه ۲۵ کښے لیکلی دی. چه" دَشیخ حسین زنجانی دَوفات کال دَصحیح اقوالو په بناء سره ۶۰۰ھ دے" یعنے چه دَشیخ هجویری وفات ۴۸۵ھ او منلے شی نو بیا هم دَشیخ زنجانی دَوفات ۶۰۰ھ نه داتا ګنج بخش یو سل یو ویشت کاله وړاندے وفات شوے دے. لیکن په دے سلسله کښے زیاته دَحیرانتیا خبره دا ده چه هر

کله مفتي غلام سرور لاهوري پخپله یو ځوا ته د حضرت داتا ګنج بخش تاریخ
وفات سنه ۴۶۵ھ لیکي. او د دې دواړو تاریخونو په منځ کښې روغ جوړ یو شلویشت
دیاسه سل کاله فرق هم موجود دے. نو د دغې یوې نیمې صدئ د فرق باوجود
بیا داخرنګ لیکي چه شیخ هجویري او شیخ زنجاني دواړه پیر بهائیان وو.؟ او نه
صرف دا چه پیر بهائیان وو. بلکه شیخ حسین زنجاني د خپل صحیح تاریخ وفات
سنه ۶۰۶ھ نه یو سل درے اتیا کاله مخکښ په سنه ۴۲۳ھ کښې یو سل شپږ اویا کاله مخکښ
په سنه ۴۳۱ھ کښې یا یو سل شپږ شپیته کاله په سنه ۴۴۲ھ کښې لاهور ته د حضرت
داتا ګنج بخش د راتللو په نیته باندې وفات شوے هم وو. یو ځل د شیخ هجویري د
راتلو په وخت کښې وفات شوے وو. چه هغه ئے جنازه اوکړه او له. او دویم ځل
په سنه ۶۰۶ھ کښې وفات شو؟ خبره دا ده چه مفتي غلام سرور لاهوري مؤرخ
وو. لیکن محقق عالم نه وو. په ذهن کښې ئے د تحقیقي او تنقیدي نظر اچولو ماده
نه وه. او دا ئے اونه کړے شول. چه د حضرت نظام الدین اولیاء په بیان کښې چه
کوم فرق دے. هغې ته فکر او کړے شي. ځکه چه دا زیاته ممکنه ده. چه حضرت
شیخ نظام الدین اولیاء علیه الرحمة صحیح خبره لیکلې وي. لیکن روستو د
کتابت په غلطئ سره بل شان شوے وي. د حضرت محبوب الٰهي شیخ المشائخ
نظام الدین اولیاء د پورتنې روایت مونږ له دوه توجیه کولے شو.

(الف) یوه دا چه ممکنه ده حضرت نظام الدین اولیاء داسے لیکلي وي. چه شیخ
هجویري او شیخ زنجاني دواړه د یو مسلک یعنی ،،سلسله جنیدیه" مریدان وو.
او دا احتمال ځکه عقل اخلي چه په دغه زمانه باندې د موجوده څلورو سلسلو
قادریه، چشتیه، سهروردیه، او نقشبندیه نه بغیر ئې سلسله جنیدیه به
زیاته مشهوره وه. نو ځکه دا ممکنه کیدے شي. چه روستو کاتبانو په غلطئ
سره د "یوې سلسلې د پیروکارانو" په ځاے "د یو پیر مریدانو" الفاظ لیکلي وي.

(ب) او که دا اولني توجیه او منلے شي. نو بیا دا خبره ممکنه ده چه د "شیخ زنجاني"

۱۰۶

په نوم د وه بزرګان تیر شوی وی. او د واړه د لاهور او سیدونکی وی.

(۱) یو هغه وی چه د حضرت داتا ګنج بخش د راتللو سنه ۴۳۱ھ په وخت کښ وفات شوے وی.

(۲) او دویم هغه شیخ حسین زنجانی وی چه په سنه ۶۰۶ھ کښ وفات شوے وی زیاته ممکنه دا چه داد ویم حسین زنجانی د دغه اولنی حسین زنجانی نمسے وی ځکه چه په پخوانی زمانه کښ په نمسی باندے د نیکه نوم کیښودل عام رواج وو۔ دا دواړه توجیهات مونږه مجبوراً پیش کړل. ځکه چه د سنه ۶۰۰ھ په شاؤ خوا کښ د شیخ زنجانی نومے یو بزرګ ژوند او وفات بالکل یقینی خبره ده. په کتاب طبقات ناصری جلد ۱ صفحه ۴۷۴ کښ لیکی چه څه وخت سلطان معز الدین محمد ابن سام غوری د جهلم په خواؤ شا کښ په "ډیمک" نومے مقام کبن په سنه ۶۰۲ھ کښ شهید کړے شو- نو په دغه وخت کښ حضرت شیخ حسین زنجانی علیه الرحمة ژوندے وو۔ او په لاهور کښ اوسیده. د تاریخ مهولت افغانی د روایت مطابق معز الدین محمد بن سام غوری په دریم تاریخ د ماه شعبان المعظم سنه ۶۰۲ھ مطابق سنه ۱۲۰۶ء کښ شهید کړے شوے دے او د وفات ماده د تاریخ ئے دا جمله ده "صاحب السریر" مخکښ ذکر شوه چه مفتی غلام سرور لاهوری د دے شیخ حسین زنجانی وفات په سنه ۶۰۶ھ کښ صحیح روایت کړے دے. لیکن منشی محمد الدین په حواله:-

(۱) د کتاب "داتا ګنج بخش" صفحات ۱۴ و ۲۳

(۲) د کتاب "تحقیقات چشتی" صفحه ۱۳۶

(۳) د کتاب "تاریخ لاهور" تالیف د کنهیا لال

سره د حضرت شیخ حسین زنجانی علیه الرحمة تاریخ د وفات سنه ۶۰۴ھ لیکلے دے. مګر د منشی محمد الدین فوق د دے بیان په مقابله کښ

دَ مفتي غلام سرور قول زيات صحيح دے. اوَ دَ شيخ زنجاني دَ وفات هم دغه سنه ۶۰۲ هـ كښې پكار دي. ځكه چه د دے قول په تائيد كښے نور بے شماره شهادتونه موجود دي. دلته دا خبره هيره ول نه دي پكار چه هر كله چه موجوده تاريخونو كښې فقط د يو شيخ حسين زنجاني متوفي سنه ۶۰۲ هـ ذكر موجود دے. او د بل شيخ حسين زنجاني متوفي سنه ۴۳۱ هـ څه ذكر نشته دے. نو په دے بنده دا وايو چه دَ حضرت نظام الدين اولياء دَ كتاب "فوائد الفؤاد" دَ روايت په حقله چه پورته مونږه كوم دوه توجيهات پيش كړل. كه په هغې دا دويمه توجيه قبوله نشي. نو بيا په لازمه دا وايو چه مفتي غلام سرور لاهوري چه دَ "فوائد الفؤاد" په حواله دغه كوم روايت او قيصه د حضرت داتا گنج بخش دَ لاهور ته دَ تشريف راوړلو په موقع پورے بيان كړے ده. او دَ هغې نه روستو ترنن ورځے پورے بيانولے شي او يو افسانوي شكل ئے اختيار كړے دے. دغه صحيح نه ده. ځكه چه هر كله حضرت شيخ حسين زنجاني په سنه ۶۰۲ كښې وفات شوے دے. نو لكه چه مخكښې هم ذكر او شو. آخر دا څنګه ممكن كيدلے شي چه دے دَ داتا گنج بخش لاهور ته دَ راتللو په نيټه په سنه ۴۳۱ هـ كښې ۱۷۱ كاله مخكښې دے هم وفات شوے وي. يا دا چه دَ حضرت داتا گنج بخش پير بهائي اوَ دَ حضرت شيخ ابو الحسن ختلي متوفي سنه ۴۶۰ هـ مريد دے اومنلے شي.

البته د كراچي دَ يو فاضل رور "بزمي انصاري" خبره دا سے معلوميږي چه مفتي غلام سرور لاهوري د حضرت نظام الدين اولياء دا وئيلے مرتبے په لحاظ دَ هغه بيان لفظ په لفظ نقل كړے دے. او په هغې كښې چه كوم تاريخي تضاد موجود دو. هغې ته هډو فكر نه دے كړے.

# زیات عجیبه روایت

دَحضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة په حقله دَ تولونه زیات عجیبه روایت دَ حضرت شیخ حامد بن فضل الله المعروف په "شیخ جمالی" درویش کنبوه دهلوی دے.

دا بزرګ د سلطان سکندر لودهي همعصر دے. (سکندر لودهي په تاریخ اوومه د شعبان المعظم سنه ۸۹۴ھ په تخت ناست وو. او په تاریخ اوومه ذي قعده سنه ۹۲۳ھ کښې وفات شوے وو.) دَ تاریخ صولت افغانی دَ روایت مطابق چه کله وخت دا شیخ جمالی د ماوراء النهر، خراسان، عراق، آذربایجان، روم، شام دَ سفرنه واپس د هلی ته را ورسیدلو. نو سلطان سکندر لودهي ورته په فارسي ژبه یو منظوم خط ورا ولیږلو. (سکندر لودهي د فارسي ژبے قادر الکلام شاعر وو. تخلص ئے ګلرخ وُو.) چه په هغې کښې ئے د هغه د ملاقات دَ آرزومندۍ او دربارته دَ راتللو اظهار کړے وو. دَ دغه نظم اولنے شعر دا دے.

اے مخزن گنج لایزالی ✽ دے سالک راه دین جمالی

دے شیخ جمالی دد و مره اوږد سفرنه روستو دخپلے زمانے او دَ بخوانۍ زمانے دَ بزرګانو په حالاتو یو تذکره لیکلے ده. چه دَ هغې "سیر العارفین" نوم دے. او دا کتاب په سنه ۱۳۱۱ھ کښې په دهلی کښې چاپ شوے دے. دَ دے کتاب په صفحه ۱۲ باندې لیکي:- " حضرت زبدة الاولیاء والمشائخ معین الحق والدین حسن اجمیری پخپله دَ غزنې په طرف را روان شو. حضرت شمس العارفین عبد الواحد قدس سره. چه دَ حضرت شیخ نظام الدین ابو المؤید پیر وُو. هغه هم په غزنې کښې وو. دَ دواړو ملاقات اوشو دَ هغه ځاۍ نه خواجه اجمیری لاهور ته راغے. حضرت شیخ المشائخ پیر علي هجویري قدس سره چه (وَالْفَقْرُ عِنْدِيْ مَنْ لَا قَلْبَ لَهٗ وَلَا رَبَّ لَهٗ) قول دَ هغوي دے. هم په دغه کال باندے وفات

شوے وو۔ لیکن حضرت شیخ المشائخ حسین زنجانی چه پیر دَ حضرت شیخ سعد الدین قدس سرہٗ دے. په دغه وخت کښې ژوندے وو۔ په منځ د زبدۃ المشائخ والاولیاء حضرت معین الحق والدین حسن اجمیری قدس سرہٗ او حضرت شیخ المشائخ شیخ حسین زنجانی قدس سرہٗ کښې مینه، محبت، او اتحاد دَ حد او حساب نه زیات پیدا شو۔ مگر هم په دغو ورځو کښې سلطان معز الدین محمد سام (قبرئے روښانه شه) دهلے فتح کړے وو۔ او سلطان قطب الدین ایبک چه دده خاص غلام وو۔ په دار الخلافه دهلی کښې ئے خپل نائب الحکومت مقرر کړے وو۔ او په طرف دَ غزنی روان شوے وو......... چه په حق ورسیدہ. حضرت زبدۃ المشائخ معین الحق والدین حسن سنجری د حضرت شیخ زنجانی علیه الرحمة نه دَ رخصت کیدلو اجازت واخیست. او دار الخلافه دهلی ته روان شو۔" د حضرت شیخ جمالی دا پورتنے بیان په تاریخی اعتبار سره د ومره زیات عجیبه دے۔ چه حد پرے تمام دے. ددے بیان خلاصه مفهوم ترتیب وار دا دے۔

۱ | حضرت معین الحق والدین حسن سنجری اجمیری چه په کوم کال لاهور ته راورسیدہ. نو هم په دغه کال بانده حضرت داتا گنج بخش وفات شوے وو۔

۲ | هم په دغه ورځو کښې سلطان معز الدین محمد سام غوری دهلے فتح کړے وو۔ ایبک ئے نائب پریښودہ. غزنی ته روان شو او په لاره کښې په حق او رسیدہ۔

دَ شیخ جمالی ددے بیان په دواړو حصو به غور اوکړو۔ او په دے کښې چه کومے خبرے صحیح دی او کومے نه دی. هغه به په نښه کړو چه تاریخی فائدہ ئے زیاته شی۔ په دے سلسله کښے دَ حضرت شیخ جمالی دا یو خو روایتونه صحیح دی.

الف | یو دا روایت ئے صحیح دے. چه حضرت خواجه معین الدین حسن چشتی اجمیری دَ سنه ۶۰۰ھ په زمانه کښې لاهور ته را رسیدلے دے. ځکه چه ددے تائید د چشتیه سلسلے د نورو کنړو د تذکرو نه هم کیږی۔

ب | دا خبره ئے هم صحیح ده. چه سلطان معز الدین محمد ابن سام غوری په دَ غه

ورځو کښې (یعنې په کومو کښې چه حضرت خواجه غریب نواز په لاهور کښې اوسیدلو)
شهید شوے وو. ځکه چه عام تاریخونه پرے شهادت کوی.

ج | دا خبره ئے هم صحیح ده. چه حضرت شیخ زنجانی په دغه نیټه (یعنې په سنه ۶۰۰ھ
کښې چه خواجه غریب نواز لاهور ته راته. او په سنه ۶۰۲ھ کښې چه کله سلطان
محمد غوری شهید کیده) ژوندے وو. او په لاهور کښې اوسیده. ځکه چه مخکښې
طبقات ناصری حواله درج شویده. چه د سلطان محمد غوری د شهادت په
وخت یعنې سنه ۶۰۲ھ کښې شیخ زنجانی ژوندے وو او په لاهور کښې استوګن وو.

د | د شیخ جمالی د روایت نه مونږ ته دا فائده هم په لاس راځی. چه حضرت
خواجه معین الدین حسن چشتی اجمیری علیه الرحمة د سلطان محمد غوری
د شهادت نه مخکښې لاهور ته په سنه ۶۰۰ھ کښې راغلے وو. او بیا د حضرت شیخ
زنجانی د وفات سنه ۶۰۶ھ نه مخکښې په سنه ۶۰۴ھ کښې دهلی ته ئے تشریف وړے.
او په دے اعتبار ئے په لاهور کښې د وه څلور کاله زمانه تیره کړے ده. او په دغه دوران
کښې ئے د حضرت داتا ګنج بخش په دربار کښې چیله هم اوکښلے ده.

لیکن سره د دے نه د حضرت شیخ جمالی دا دوه روایتونه په خصوصیت سره صحیح نه دی.

۱ | یو دا چه هم په دغه ورځو کښې سلطان معزالدین محمد غوری دهلی فتح کړے وو.
قطب الدین ایبک ئے د دهلی نائب الحکومة کړ. غزنی ته روان شو. او په
منځ لاره کښې شهید شو، په دے روایت کښې چه کوم فرق دے. هغه دا دے. چه
سلطان معزالدین محمد غوری په سنه ۵۹۰ھ مطابق سنه ۱۱۹۳ء کښې دهلی فتح کړے
وو. په سنه ۶۰۱-۶۰۰ھ کښې ئے قطب الدین ایبک خپل نائب الحکومة کړے وو. په
سنه ۶۰۲ھ کښې غزنی ته روان شوے وو. او بیا هم په دغه کال شهید شوے وو.
لیکن حضرت شیخ جمالی علیه الرحمة د دولس کالو د زمانے څلور مختلف واقعات
په دے ترتیب سره بیان وی لکه چه دا هر څه په یو کال کښے شوی وی.

۲ | دویم ئے دا روایت صحیح نه دے. چه حضرت خواجه غریب نواز علیه الرحمة

په هغه کال لاهور ته راغلے وو- په کوم کال چه حضرت داتا گنج بخش وفات شوے وو- ځکه چه داخو ثابته شوه چه حضرت خواجه غریب نواز په سنه ۶۰۰ھ کښې لاهور ته رارسیدلے دے. مګر دابیان ئے څنګه اومنو چه پیر علی هجویری هم په دغه کال سنه ۶۰۰ھ کښې وفات شوے دے؟ لکه چه مخکښې پرے په تفصیل سره بحث اوشو دا تا گنج بخش په سنه ۴۸۵ھ کښې په حق رسیدلے دے. نو دے حقیقت په موجودګئ کښې یوسل پنځلس کاله پس په سنه ۶۰۰ھ کښې دوباره څرنګه په حق اورسیدلو.

د حضرت شیخ جمالی دَ پورتنی روایت نه یو څو نورے تاریخی فائدے هم مونږ ته په لاس راځی چه هغے ته اشاره کول مناسب معلومیږی.

الف) یوه دا ده چه د دے روایت نه یو خو ته د مفتی غلام سرور لاهوری دَ هغه خبرے تصدیق کیږی. چه حضرت شیخ زنجانی په سنه ۶۰۶ھ کښې وفات شوے دے. او بل خوا ته ورسره ورسره دَ مفتی غلام سرور هغه قیصه هم غلطه ثابتوی چه څه وخت حضرت داتا گنج بخش لاهور ته راغے. نو هم په هغه ورځ بانده حضرت شیخ زنجانی وفات شوے وو-

ب) دویمه تاریخی فائده دا ده. چه دَ حضرت شیخ جمالی د دے بیان نه دَ منشی محمد الدین فوق کشمیری هغه بیان هم غلط ثابتیږی. چه پخپل تالیف "داتا گنج بخش (طبع دویم لاهور سنه ۱۳۳۹ھ مطابق سنه ۱۹۲۰ء) کښې په صفحه د ۱۲۱) بانده ئے د مولوی نوراحمد چشتی دَ تالیف "تحقیقات چشتی" په حواله بانده د حضرت خواجه معین الدین چشتی اجمیری لاهور ته د راتللو تاریخ سنه ۵۰۰ھ او سنه ۵۲۵ھ لیکلے دے.

د دے بیان د غلط والی یوه وجه دا ده. چه په دے سلسله کښې دَ حضرت شیخ جمالی بالکل واضحه ده. چه خواجه غریب نواز د سلطان محمد غوری په زمانه کښې لاهور ته راغلے دے. بله وجه دا ده چه هر کله د ټولو مؤرخینو په اتفاق سره حضرت خواجه معین الدین حسن چشتی اجمیری په سنه ۵۳۷ھ کښې پیدا

شوې دې ـ او په ۶۳۳ه کښې وفات شوې دې. نو د منشي فوق دا خبره څنګه او منلې شي. حضرت خواجه اجمیري په ۵۰۰ه کښې لاهور ته راغلې وو. سوال دا دې چه د خپلو پیدائش د تاریخ ۵۳۷ه نه هم درې ځلویښت کاله وړاندې په ۵۰۰ه کښې لاهور ته څرنګ راغې؟ څه به او وایو چه دې کاله پیدا شوې وو.؟ ځکه چه په ۵۰۰ه کښې لاهور ته راتللو نو خامخا د دوئ عمر به دیرش ځلویښت کاله وو ـ او بیا چه هر کاله وفات په ۶۳۳ه کښې یقیني دې. نو څه به وایو چه د دوئ عمر ۱۸۰ کاله وو.؟ حالانکه په دې کښې یوه خبره هم صحیح نه ده. لیکن زیاته د حیرانتیا خبره دا ده. چه مولوي نور احمد چشتي په خپل تالیف "تحقیقات چشتي" کښې دا دومره په تاریخي لحاظ سره انتهائي فحش غلطه خبره په دومره واضحه الفاظو کښې راسې لیکلې ده.

"ورود حضرت خواجه معین الدین چشتي در لاهور در سنه پانصد هجري بوده"

(حواله به کتاب "تحقیقات چشتي" طبع ثاني. لاهور س ۱۳۲۴ه صفحه ۶۳۹)

البته په مولوي نور احمد مرحوم باندې د نیک ګمان کولو په خاطر دا توجیه ئې کولې شي. چه د کتابت په غلطۍ سره به د "ششصد" په ځائې "پانصد" لیکلې شوې وي. مګر بیا هم په دې کښې هیڅ شک نشته دې. چه د دې کتاب د غه بیان په دې موجوده شکل کښې انتهائي غلط دې. او یکار د چه صحیح ئې او شي.

## لاهور ته د حضرت داتا ګنج بخش علیه الرحمة راتلل

په "خزینة الاصفیاء" کښې لیکي چه "حضرت داتا ګنج بخش" د سلطان مسعود ابن محمود غزنوي د فوځونو سره لاهور ته تشریف راوړې وو. او د کشف الاسرار نومې کتاب په اردو ترجمه کښې لیکلي دي. چه دوئ په ۴۳۱ه کښې لاهور ته راغلي وو. او په دې دواړو بیانونو کښې اول به د مفتي غلام سرور په بیان نظر واچوو.

(۱) دَ مفتی غلام سرور په بیان یو نظر

دا معلومه ده. چه حضرت سلطان محمود غزنوی علیه الرحمة په سنه ۴۳۱ھ مطابق ۱۹ اپریل سنه ۱۰۳۰ء وفات شوے دے. دَ هغه نه روستو دَ هغه ځوئ سلطان محمد یو څو ورځے بادشاه وو. په هغه پسے سلطان مسعود ابن سلطان محمود بادشاه شو. او درے کاله پس سنه ۴۲۴-۴۲۳ھ کښی ئے په هندوستان حمله اوکړه. لاهور ئے قبضه کړ. او کشمیر ئے هم فتح کړ. دوئمه حمله ئے بیا په سنه ۴۲۷ھ کړے وه.

که دَ خزینة الاصفیاء دغه روایت او منلے شی. چه حضرت داتا گنج بخش دَ سلطان مسعود دَ لښکر وسره لاهور ته راغلے وو. نو درے مطلب به دا شی چه دوی سنه ۴۲۴-۴۲۳ھ کښے دَ سلطان مسعود دَ اولنئ حملے یا په سنه ۴۲۷ھ کښی دَ دویمے حملے په وخت کښے لاهور ته راغلی وو. او دغه نتیجه بهرحال سنه ۴۳۱ھ نه شی کیدلے او هر کله چه سلطان مسعود غزنوی دَ لس کاله حکومت کولو نه پس دَ خپل ورور ابو محمد دَ لاس نه په سنه ۴۳۳ھ مطابق سنه ۱۰۴۰-۱۰۳۹ء کښی قتل شوے دے.

نو دَ "کشف الاسرار" دَ هغه بیان سره چه حضرت داتا گنج صاحب په سنه ۴۳۱ھ کښے لاهور ته راغلے دے. د "خزینة الاصفیاء" دَ بیان په دے طریقه سره هم تطبیق نه شی راتللے. چه مونږ دا او وایو چه حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة به دَ سلطان مسعود دَ حکومت په آخری وخت کښے راغلی وی.

خبره دا ده. چه لاهور ته دَ حضرت داتا گنج بخش په سنه ۴۲۱ھ، سنه ۴۲۳ھ سنه ۴۲۴ھ، سنه ۴۲۷ھ یا سنه ۴۳۱ھ کښی راتلل دا ټول داسے بیانونه وی. چه دَ داتا گنج بخش دَ خپل کتاب "کشف المحجوب" نه د دے تصدیق نشی کیدے. لکه چه مخکښی بحث تیر شوے دے. په "کشف المحجوب" کښی د سنه ۴۲۱ھ نه د روستو زمانے دَ لاهور دَ قیام حالات بیان شوی دی. نو که بالفرض حضرت داتا گنج بخش په کال (۴۲۱، ۴۲۳، ۴۲۷، یا ۴۳۱) کښی راغلے وے. نو لازما په دے خپل کتاب کښے

دهغې تذکره به ئې هم کړې وې - ځکه چه په تاریخي اعتبار سره د "کشف المحجوب" حیثیت د یوې "روحانی روزنامچې" دے. چه ټول واقعات پکښې د سن او تاریخ په لحاظ سره سلسله وار بیان شوی دی.

داسې معلومیږی. چه د "خزینة الاصفیاء" مؤلف غلام سرور لاهوری ته د دے کتاب د لیکلو په وخت یعنی سنه ۱۲۸۴ھ کښې داپورتنۍ اشتباه د یوې تاریخي واقعې په وجه پیښه شوې وه. چه دے د هغې په صحیح مطلب نه وو پوهه شوے او د هغې نه ئې غلطه نتیجه اخیستې ده. هغه واقعه دا ده. چه یوه روایت داسې دے چه د حضرت داتا گنج بخش په لاس یو هندو راجا مسلمان شوے وو. چه د هغه نوم "رائے راجو" وو. چه روستو په "شیخ هندی" مشهور شوے دے. او دا سړے د هندو توب په زمانه کښې د غزنوی سلطان د طرف نه د پنجاب نائب الحکومة وو - کیدے شي چه مفتی غلام سرور خیال کړے وی. چه دغه "رائي جو" به د "سلطان مسعود" د اولنۍ حملې (سنه ۴۲۳ھ / ۴۲۴) په وخت کښې په لاهور حکمران وو. او چه کله وخت مسعود لاهور فتح کړے وی. نو "رائي جو" به ئې بدستور د لاهور حکمران او د پنجاب نائب الحکومة پریښے وی. او هغه به په حیثیت د نائب الحکومت د پنجاب حاکم وو - او بیا د دے خیال په بناء مفتی غلام سرور به دا خبره هم قیاس کړے وی. چه هر کله حضرت داتا گنج بخش د سلطان مسعود په لښکر کښې موجود وو. نو "رائي جو" به د هغه په لاس مسلمان شوے وی.

که فکر او کړو. دا خیال په دے وجه پیدا شوے دے. چه د سلطان مسعود غزنوی سیاسی حکمت عملی دا وه. چه د فوځ او انتظامی معاملو کښې ئې اهمې عهدې ئې غیر مسلمو کسانو ته حواله کړې وې. د مثال په طور د "تاریخ صولت افغانی" مؤلف د "تاریخ مخزن افغانی" په حواله په صفحه ۹۹ کښې لیکی:-

"په سنه ۴۲۵ھ کښې مسعود په لاهور کښې وو- په شمالمغربی او مغربی افغانستان کښې چه سلجوقیانو شورش پورته کړې نو مسعود دَ دغه فتنے دفع کولو دَ پاره چه کوم فوځونه اولیږل. په هغې کښې دَ هندوستانی فوځ سرلښکر "رج سنګه نومے هندو وو"۔

په دے وجه مونږ که او وئیل ممکنه دی. مفتی غلام سرورد اخیال کړے وی. چه "رائی جو" المعروف په "شیخ هندی" به هم د سلطان مسعود دَ زمانے وو- او دَ هغه له طرفه به دَ پنجاب په علاقه نائب الحکومة وو- او هم د دے وجوهاتو په رنړا کښې یے دا رائي ښکاره کړه چه حضرت داتا ګنج بخش دَ سلطان مسعود غزنوی په زمانه کښې لاهور ته راغلے وو-

لکه چه وړاندے ورته اشاره اوشوه. مفتی غلام سرور دغه خپل کتاب "خزینة الاصفیاء" په سنه ۱۲۸۴ھ کښې لیکلے دے. لاهور ته دَ حضرت داتا ګنج بخش دَ راتللو په حقله په دغه زمانه کښې د ده هم د غه قدر ته معلومات وو. کوم چه پورته بیان شول. لیکن دَ خزینة الاصفیاء دَ تالیف او چاپ کیدلو (سنه ۱۲۸۴ھ) نه پوره لس کاله روستو په سنه ۱۲۹۴ھ کښې یے یو بل کتاب لیکلے دے. چه دَ هغې نوم "تاریخ مخزن پنجاب" دے. د دے کتاب په جلد ۱ صفحه ۲۵۰ او ۲۵۱ یے دا لاندینی معلومات په دے ترتیب سره سلسله وار لیکلی دی۔

(۱) دَ سلطان محمود غزنوی دَ حکومت په دوران کښے دَ لاهور د حاکم ایاز علیه الرحمة حالات۔

(۲) دَ سلطان مسعود غزنوی دَ حکومت په دوران کښې دَ لاهور دَ درج ذیل حاکمانو حالات.

(الف) احمد ابن الپتګین حکمران لاهور حالات۔

(ب) مولک بن حسین غزنوی حکمران لاهور حالات.

(ج) ابو المجد ابن مسعود حکمران لاهور او دَ هغه سره د اتالیق په طور دَ

دَ ایاز علیہ الرحمۃ حالات ۔

(۳) دَ سلطان مودود غزنوی دَ حکومت پہ دوران کښې

(الف) دَ ابوالمجد ابن مسعود دَ خپل اتالیق آیاز پہ مرسته دَ لاهور دَ خود مختار حکمران په حیثیت سره حالات

(ب) دَ لحسن اللہ بیک غزنوی دَ لاهور دَ حکمرانی حالات ۔

(ج) دَ سلطان مودود غزنوی دَ خوئ ابوالقاسم محمود دَ لاهور دَ حکمرانی حالات

(د) دَ سلطان مودود غزنوی دَ دویم خوئ محمد منصور دَ لاهور دَ حکمرانی حالات

دے ټولو حالاتو دَ بیانولو نه روستو په دغه تاریخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحه ۲۵۱ کښې لیکی :-

"هر کله چه دَ سلطان مودود غزنوی دَ وفات سنه ۴۳۹ھ مطابق سنه ۱۰۴۹ء نه روستو ابوالحسن علی ابن مودود بادشاه شو ۔ نو دغه وخت کښې علی ابن ربیع ابن مسعود غزنوی دَ خپل وکیل میرک په اتفاق سره په پیښور، لاهور، ملتان، بلکه ټول پنجاب باندے قبضه اوکړه ۔ او لاهور ئے خپل دار الحکومة مقرر کړو ۔ دَ دهٔ په زمانه کښې مخدوم "علی" گنج بخش هجویری دَ غزنین نه لاهور ته تشریف راوړ ۔ او دلته ئے قیام اوفرمایه"

دَ مفتی غلام سرور دا دویم بیان بالکل صاف دے او صحیح هم دے ۔ او چه دَ داتا گنج بخش دَ خپل کتاب "کشف المحجوب" سره ئے مقابله کړو ۔ چه په هغې کښې دَ لاهور دَ قیام دَ حالاتو ابتداء دَ سنه ۴۳۰ھ نه شوے دهٔ ۔ نو واضحه کیږی ۔ چه مفتی غلام سرور رحمه په پورته جمله کښې دا ښائی :

" دَ دهٔ دَ حکومت په زمانه کښې ئے لاهور ته تشریف راوړ "

نو دے جملے مطلب دا گنړل پکار دی ۔ چه علی ابن ربیع ابن مسعود غزنوی په سنه ۴۳۹ھ کښې دَ لاهور خود مختار حکمران شوے وو ۔ او ورپسے کال پس په

سنہ ۴۳۰ھ کښې حضرت مخدوم "علی" گنج بخش هجویری لاهور ته تشریف راوړے دے.
چه فکر او کړے شي نو دا یوه داسے خبره ده. چه عقل ئے هم اخلی. ځکه چه مخکښې موږ ډېر تفصیلی بحث کړے دے. په هغې کښې دا واضحه شوے ده. چه دَ حضرت داتا گنج بخش" چه لاهور ته راتللو. نو دَ هغه وړاندے ئے دَ ټولو اسلامی ملکونو سیاحت کړے وو. ځکه دَ پاسه درے سوه عالمانو او مشائخو نه ئے فیض حاصل کړے وو. او د کمال درجے ته رسیدلے وو نو په دے اعتبار سره چه موږ هغه روایت تسلیم کړو. چه داتا بخش په سنہ ۳۹۵ھ کښے پیدا شوے وو. نو لاهور ته دَ راتللو په وخت کښې دَ دوئ عمر به پنځه څلوېښت کاله وو. او چه دَ "آئینه تصوف" نومے تذکرے روایت تسلیم کړو چه دَ دوئ ولادت په سنہ ۴۰۰ھ کښے وو. نو بیا به ئے څلوېښت کاله په عمر کښې لاهور ته دَ دوئ راتلل حساب کړے شي. او په دے دواړو صورتونو کښې دا خبره عقل ته پریوتلے شي. چه تر څلوېښت او پنځه څلوېښت کاله عمر په دوئ دَ ظاهری او باطنی علمونو دَ حاصلولو نه فارغ شوی وو.

## فائده:

مخکښې چه دَ مفتی غلام سرور لاهوری دَ تالیف "مخزن پنجاب" په حواله دَ حضرت داتا گنج بخش" لاهور ته دَ راتللو نه وړاندے دَ لاهور سنبھرا و پنجاب دَ مسلمانانو حکمرانانو او دَ حکومت غزنی له طرفه دَ نائب الحکومة کوم تفصیل درج کړے شو. خصوصاً دَ حضرت سلطان محمود غزنوی علیه الرحمة دَ محبوب غلام ایاز علیه الرحمة چه دَ هغه سره دَ لاهور په اولنی حمله سنہ ۴۰۲ھ کښې لاهور ته راغلے وو. او بیا دَ دغه خپل محسن آقا دَ طرف نه دَ لاهور نائب الحکومة شو. او روستو دَ ابوالمجد ابن مسعود غزنوی په لاهور دَ حکمرانئ په زمانه کښې په سنہ ۴۴۹ھ ۱۰۵۷ء کښې وفات شوے دے. نو لکه چه موږ ډېر دَ لاهور دَ اولنی جماعت په بحث کښې بیان کړے دے. چه دَ داتا بخش دَ راتللو نه مخکښې به په لاهور کښې نور جماعتونه دَ نخوانه جوړ شوی وو. دَ دغه وخت جماعتونو به دنیا کښې راوټلے شو. چه دَ لاهور سنبھر دَ ټولو نه اولنی

جماعت هم هغه کيدلے شي. چه کوم به ملک اياز عليه الرحمة په سنه ۴۰۲ھ کښې د سلطان محمود غزنوی د ورود په موقع په لاهور کښې جوړ کړے وو. او پير ممکنه دا چه د لاهور دغه جماعت د لاهور ښهر د فصيل نه باهر د فوځيانو په فوځی کيمپ کښې جوړ شوے وی. او دا هم هغه جماعت وی. په کوم کښې چلنن ورځے د حضرت ملک اياز عليه الرحمة زيارت دے. او د مسجد وزير خان سره نزدے په منع بازار کښې واقع دے. بهرحال دا به نور تحقيق غواړی.

دے پورته بيان نه دا نوره هم واضحه شوه. چه په لاهور کښې د حضرت داتا گنج بخش عليه الرحمة د راتللو نه مخکښې هم عالمان او صالحان موجود وو. فقط دومره ده. چه د هغوي مثال د دين اسلام د روښانه ستورو په شان وو. او د حضرت داتا گنج بخش لاهور ته تشريف راوړل دا سے شول. لکه د لاهور او پنجاب په زمکه چه د علم او عرفان روښانه نمر راختلے وی. چه د هغوي انوار په دے زمکه نن هم چه په ټول برصغير پاک او هند پوشان ځليږی.

د بحث په دے مرحله به د حضرت داتا گنج بخش په تاريخ وفات يو نظر بيا واچوو د کشف المحجوب د خپلو داخلی تاريخی شهادتونو نه تر سنه ۴۸۱ھ پورے د دوی ژوند يقينی دے. د دے سره چه مونږ هغه روايت په نظر کښې اوساتو چه په دوی باندے د ټولو نه اولنے مزار سلطان ابراهيم ابن مسعود ابن محمود غزنوی عليه الرحمة جوړ کړے دے. نو لکه چه مخکښې ذکر شوے دے. چه سلطان ابراهيم په سنه ۴۵۱ھ کښې بادشاه شوے او په سنه ۴۸۹ھ کښے وفات شوے دے. نو د دے په رڼا کښې دا ويلے شو. چه داتا گنج بخش د سلطان ابراهيم د وفات (سنه ۴۸۹ھ) نه مخکښې وفات شوے وی. او پيره ممکنه ده چه په سنه ۴۸۵ھ کښې ئے وفات واقع شوے وی. روستو مؤرخينو دده تاريخ وفات داسے ليکلے وی.

" توفي في سنة اربعمائة وثمانين وخمسة "

ليکن کاتبانو په غلطئ سره د ثمانين په ځای ستين ليکی وی. يعنے توفي

فی سنة اربعمائة وستین وخمسة ئے لیکلی وی. او په دے طریقه سره د سنه ۴۸۵ه نه سنه ۴۶۵ه جوړ شوی وی.

بهرحال چه په سنه ۴۸۵ه کښ د حضرت داتا گنج بخش ؒ وفات کیدل یقینی او منلے شی نو بیا د اعتبار سره هغه روایت یقیناً غلط دے. په کوم کښ چه د دوئ عمر او یا کاله ښودلے شوے دے. ځکه چه په دے حساب د دوئ عمر پنځه اتیا یا څلور نیمے شلے کاله جوړیږی. او ډیره ممکنه ده چه د نورو تحقیق نه روستو د دوئ عمر د دے نه هم زیات ثابت شی.

# د فیض او برکت آستانه

د حضرت داتا گنج بخش سید، مخدوم، شیخ "علی" هجویری، جلابی غزنوی لاهوری علیه الرحمة ذات بابرکات په اسلامی هند کښ د اسلام د سرلوړئ، روحانی عظمت او "روحانی تړون" یو عظیم الشان مظهر او مرکز گڼړلے شی. د دوئ د فیض او برکت نه ډکه آستانه هغه عظیم الشانه آستانه ده. چه حضرت سلطان الهند خواجه معین الدین حسن چشتی اجمیری د دوئ د دربار نه فیض حاصل کړ. نو په ډیر نیاز سره ئے عرض اوکړ.

*گنج بخش فیض عالم مظهر نور خدا* ⁘ *ناقصان را پیر کامل کاملان را رهنما*

اوس د دغه بزرگ او کامل روحانی پیشوا له برکته په هغه ښهر چرته چه د دوئ مزار پرانوار دے. د دنیا د یو لوئ اسلامی حکومت (پاکستان) اسلامی بیرغ ولاړ دے. نو د داسے مبارکے هستئ په حقله داتاریخی او معلوماتی خبرنامه (تحفه) م په دے غرض ضروری اوګڼړله. چه څومره د برصغیر پاک او هند د دے "روحانی محسن" د صحیح حالاتو نه کومره ناخبره پاتے شو. نو دا به سبه خبره نه وی. بیا خصوصاً په داسے حالاتو کښ چه په غیر د څه تمیز نه د ټول پاکستان بلکه د ټول عالم اسلام هر یو فرد د دوئ سره عقیدت لری. نیکی او احسان

ئې مني. او د دوی مبارک تعلیمات د خپل ژوند د پاره رهنما اصول گڼري۔

د حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة د ذات گرامي صفات سره مونږ پاکستانی ملت چه په خصوصیت سره کوم عقیدت لرو۔ په هغې کښې یو وجه دا هم ده چه مونږ ه د "عالمگیر اسلامی وحدت" او "اسلامی اتحاد" په نظریه باندې د مملکت پاکستان بنیاد ایښے دے۔ او چه د حضرت داتا گنج بخش د استاذانو او مشائخو په هیر اوکد فهرست باندې نظر واچوو۔ نو صفا خرگند ه شي۔ چه حضرت داتا گنج بخش د ټول عالم اسلامی د ټولو اسلامی مشاهیر و علمائو او مشائخو نه ظاهری او باطني فیوضات راجمع کړي دي۔ او د ټول عالم اسلام د غه متحده اولویه روحاني سرمایه او د فیوضاتو خزانې ئې په خپله ځولئ کښې راخیستے ده۔ لاهورته ئې راوړے ده۔ او په قول د حضرت خواجه غریب نواز علیه الرحمة:-

"د غه حضرت شیخ علی الهجویری چه د پاک خدائے د انوار و مظهر دے د ټول عالم اسلام د روحانی فیوضاتو خزانه په مرکزی ښهر لاهور کښې په شان اوکه الولو باندې پوشان ویشي۔ او بخښش کوي ئې"

د حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة په ذات گرامي صفات کښې د ټول عالم اسلامی ر[illegible] فیوضات راجمع کیدل د هغه لوئی او عظیم الشان "روحانی ترون" په طرف ځمونږ ه رهنمائي کوي۔ چه په کوم ځمونږ ه عقیده او ایمان دے۔

## د حضرت داتا گنج بخش علمي فیوضات

حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة د علم او عمل خاوند وو۔ ښه اخلاق ئې لرل۔ د سمے لارے ښودونکے وو۔ د بنی نوع انسان همدرد او رهنما وو۔ د اسلام داعي او مبلغ وو۔ د عامو مسلمانانو د رشد او هدایت د پاره ئې گڼر کتابونه لیکلي دي۔ چه هغه علاوه د روحانی فیوضاتو او تعلیماتو نه

څمونږه دپاره دعلمي فيوضاتو لويه قيمتي ذخيره او سرمايه ده. تر دے وخته پورے چه ددوئ دکومو تاليفاتو نومونه مونږ ته معلوم شوي دي. هغه دادي:-

(۱) داشعارو ديوان چه "وجادان" نوم ئے دے.

(۲) "منهاج الدين" دشريعت د احکامو په بيان کښ.

(۳) "کتاب الفناء والبقاء" داسلام دظاهري او باطني علمونو د اسرارو په بيان کښ

(۴) "کتاب الخرق والمونات" د اولياء الله چه کوم کرامات دي، دهغے د اسرارو په بيان کښ.

(۵) "کتاب البيان لاهل العيان" دظاهري شريعت د بنيادي اصولو په بيان کښ.

(۶) "بحرالقلوب" دعلم توحيد په بيان کښ.

(۷) "الرعاية لحقوق الله" داسلام دمعاشي، معاشرتي، مذهبي اصولو په بيان کښے

(۸) شرح کلام منصور حلاج" دمنصور حلاج دنعره انا الحق په بيان کښ. چه په دے کښ د شريعت په رو سره څه خرابي وه. او د هغه وخت عالمانو او مشائخو چه په هغه بانده د قتل حکم ورکړے وو د هغے د جواز او تائيد په حقله د دلائيلو تفصيل.

(۹) "کشف المحجوب" دا کتاب هم تذکره ده. هم ادب او اخلاق دي. هم د ظاهري شريعت احکام دي. او هم د طريقت او معرفت د اسرارو او رموزو بيان دے.

د حضرت داتا گنج بخش عليه الرحمة دغه ټول تاليفات څه په فارسي ژبه کښ دي او څه په عربي ژبه کښ دي. چه په دغه ټولو کښ د مضمون او افاديت په لحاظ سره کشف المحجوب ډير اهم کتاب دے. ژبه ئے فارسي ده

او په ټولو کتابونو کښ دا کتاب نن ورځ پورے باقي دے. دے کتاب اردو ترجمه هم چاپ شوے ده. او د دنيا په نورو ګڼو ژبو کښ ئے هم ترجمه شوے ده.

او دغه شان دَ برصغیر پاک وهند نه علاوه دَ دُنیا په نورو کښې و ملکونو کښې هم چاپ شوے دے.

دَ تصوف په کتابونو کښې کشف المحجوب ډیر اهم کتاب ګڼړلے شی. په دے کتاب کښې:-

(الف) دَ اسلام دَ بنیادی عقیدو.

(ب) دَ صحیح اسلامی معاشرے دَ بنیادی فرائضو او ذمه دارو په باب په ډیره ښکلے. او زړه راکښونکے طریقه سره وضاحت شوے دے. او دَ ریا کارانه تصوف. او غیر اسلامی ژوند دَ غلطو طریقو په خلاف ئے جهاد کړے دے. او دَ اخلاقو دَ اصلاح او دَ سیرت او کردار په پاکئ او پاکیزګئ باندے ئے زور زور کړے دے. دَ فائدے په لحاظ دَ "کشف المحجوب" یو څو اقتباسات درج کوو لے شی.

# اولنے ارشاد

دَ حنفی مذهب عالمان په دے خبره اتفاق لری. چه علم او معرفت یو څیز دے په دے کښې فرق نشته دے.

دوئ (یعنے حنفی عالمانو) دا خبره هم کړے ده. چه هغه علم چه ورسره عمل هم وی. او حال هم وی. او دغه نمونے عالم دا خپل حالونه څرګند کړی (خپل رازونه او وائی) نو دغے ته معرفت وئیلے شی. او دغه نمونے عالم ته عارف وئیلے شی.

(په دے اعتبار سره دَ عالم معنی شوه پوهه. پوهیدلے. پوهیدونکے، آګاه. او خبردار. او دَ عارف معنی شوه پیژندونکے. رسیدونکے. یعنے چه په څه پوهه شوے وی. دَ هغے تل. بیخ. جرړے. راز او حقیقت ته رسیدلے وی (اثر)

کوم علم چه دَ عمل نه جدا وی. (یعنے تشه پوهه وی. او دَ عمل او معنی نه خالی وی) هغے ته علم وئیلے شی. او دَ هغے پوهیدونکی ته عالم وئیلے شی.

لیکن په عین دغه حال کښې هغه جاهل او ناپوهه هم دے. ځکه چه هغه دا حقیقت نه دے پیژندلے چه دَعلم نه اصلی غرض او دَعلم حقیقی روح خو فقط "عمل" دے. ځکه چه علم خو یوذهنی کیفیت دے. ترڅو چه دغه ذهنی کیفیت په خارج کښې په عملی شکل کښې او نه ښودلے شی. دَ هغے نه څه نتیجه نه ولاړیږی. او نه ترینه څه فائده حاصلیږی" اثر)

او چه کوم سړی دَ څه څیز معنی او حقیقت ته رسیدلے وی. هغه عارف دے. همدا وجه ده. چه صوفیان خلق چه څهٔ وخت دَ خپلو مُعَمَرُو نومونه اخلی نو "دانشمند" یعنے دَ عقل او پوهے خاوند ورته وائی (هوښیار په دے معنی چه دا سړے چه په کوم څیز پوهه شوے دے. دَ هغے تل ته یے ځان رسولے دے. دَ مثال په طور چه په دے پوهه شوے دے. چه اسلام یو داسے لفظ دے. چه د دے لغوی معنی ده "غاړه کیښودل" او د دے معنی روح دا دے. چه "بنده خدائے ته غاړه کیږدی". نو دا عالم د دے لفظ دَ دغه لغوی معنی په دغه روح پوهیدلو او دَ خبرے جوړے ته دَ رسیدلو سره سم په عملی شکل چه دَ خدائ احکامو ته غاړه کیږدی. نو دے عارف دے. اثر)

عام خلق چه دَ "دانشمند" لفظ واوری. نو مطلب یے نه پوهیږی حالانکه (د دے مطلب بالکل صفا دے.) دَ صوفیانو مراد دا وی. چه یو سړے علم حاصل کړی. نو بیا دَ هغه هوښیارتیا او دانشمندی دا ده. چه هغه علم دَ ځان نه جدا نه کړی.

(یعنے علم خو یو نور دے. پکار ده چه دے پرے باندے خپل ځان او زړه روښانه کړی. او دَ هغه ساده سړی په شان کار او نه کړی. چه ډیوهٔ. تیل باتئ. ماچس (اَوُر) هر څه ورکړه موجود وی. لیکن سره دَ دغے په تیاره کښې ناست وی. اثر)

د دے خبرو خلاصه دا شوه. چه عالم چه خپل ځان او خپل ذات پورے تړلے وی. او

او عارف بخپل الله پورے تړلے وی۔

## (۲) دوئیم نصیحت

د درے قسمه بنیاد مونه ځان ساتی۔

(الف) د غافله عالمانونه۔

(ب) د مستو فقیرانو نه۔

(ج) د جاهلو صوفیانو نه۔

## (۳) دریم نصیحت

څلور څیزه دی چه د هغې د غلام کیدلو نه ځان بچ ساتل پکار دی۔ چه هغه دا دی:۔

(۱) حرص (۲) طمع (۳) ریا (۴) خواهشات

یاد لرئ ــــ!

(الف) حرص" که په بادشاه غالب شی۔ نو ظالم ئے کړی۔ بیا ظلمونه را واخلی۔

(ب) طمع" که په عالمانو کښ پیدا شی۔ نو فاسقان ئے کړی۔ فسق فجور پکښے پیدا شی۔

(ج) ریا" که په زاهدانو، پیرانو، فقیرانو کښ پیدا شی۔ نو په نفاق او منافقت کښ ئے مُبتلا کړی۔

(د) نفسانی خواهشات چه په ځوانانو غالب شی۔ نو په رقص او سرود او عیش او عشرت کښ ئے مُبتلا کړی۔

## څلورم ارشاد

تصوف د نیکو اخلاقو نوم دے۔ او غوره کار او بنه خوئ خصلت دا دے چه بنده کا په هر حال او احوال کښ په یو خدائ باندے تکیه و ساتی۔ او هم دے دپاره د الله تعالیٰ ذات د خپل هر څه د پاره کافی او کنړی۔

## پنځم(۵) ارشاد

تصوف (فقیري، درویشي، او بزرګي) په جامه او لباس پورې اړه (انحصار) نه لري. بلکه په عمل پورې موقوفتیا لري. دَ خدایٔ نیک بندګان په عمل پیژندلے شي. جامو ته ئے نشي کتلے -!

## شپږم(۶) ارشاد

څوک چه دَ عقل په بلنه او سنود نه عمل کوي. هغه ایمان بیا مومي. او څوک چه دَ هوا او هوس بندګي شروع کړي. هغه په کفر او ګمراهئ کښې مبتلا شي.

## اووم(۷) ارشاد

(یاد لري!) لس څیزونه دَ لسو څیزونو خوراک دے.

(۱) "توبه" دا پوړاسے څیز دے چه دا ګیږي او ګناه خوري.

(۲) "چُغلي" " " "عمل" خوري.

(۳) "غم" " " "عمر" "

(۴) "صدقه" " " " بلا "

(۵) "غصه" " " " عقل "

(۶) "پښیماني" " " " سخاوت "

(۷) "تکبر" " " " علم "

(۸) "نیکي" " " " بدي "

(۹) "دروغ" " " " دا ګیږي او رزق "

(۱۰) "ظلم" " " " عدل "

(په دے وجه دد دے لسو ناکاره اخلاقو نه ځان ساتل پکار دي. چه په دے کښې دَ دین او دنیا دواړو فائده ده. "اثر")

# اتم ارشاد (۸)

"علمونه" ډیر دی. او د بنیادم عمر لږ دے. په دے وجه د ټولو علمونو زده کړه په بنی آدم فرض نه ده. البته د ضرورۍ علم زده کړه په بنیادم فرض ده. چه په هغه ئے عمل برابر شی.

# نهم ارشاد (۹)

د نفس مثال د شیطان دے. په دے وجه د نفس د خواهشاتو مخالفت کول یو داسے خیز دے چه دغه په حقیقت کښ د ټولو عبادتونو جړه ده. او د ټولو ریاضتونو او مجاهدو کمال دے.

# لسم ارشاد (۱۰)

صوفی یعنی اصلی پیر او بزرګ هغه سړے دے. چه د هغه ګفتار او کردار یعنی د خلے وینا او عمل دواړه یو شان وی. او خپل اخلاق ئے په شرع باندے درست کړی وی. په شرعه برابر وی.

# یوولسم ارشاد (۱۱)

بوډاګانو له پکار دی. چه د نوجوانانو لحاظ وساتی. ځکه چه د کم عمرۍ په وجه د دے بوډاګانو په مقابله کښے د دغه نوجوانانو ګناهونه کم وی.

او نوجوانانو له پکار دی. چه د بوډاګانو وسپین ږیرو ادب او عزت او کړی. ځکه چه دغه مشران د نوجوانانو مقابله کښے زیات تقوی دار وی. عبادت ګذار او تجربه کار وی.

## (۱۲) دولسم ارشاد

دولت یو عذاب دے۔ لیکن د دے په ذریعه چه د غریبانو، مسکینانو او یتیمانو وغیره سره امداد اوکړلے شی۔ نو دغه د اخرت د پاره نیکه توښه ده۔

## (۱۳) دیارلسم ارشاد

د بنیادم د پاره د رتولو نه زیات مشکل کار د الله تعالیٰ پیژندل دی۔!

## (۱۴) څوارلسم ارشاد

کوم بزرګانو ته چه عارف وئیلے شی۔ هغه لازمًا عالم وی۔ عرفان په غیر د علم څخه نه حاصلیږی۔ لیکن دا ضروری نده۔ چه څوک عالم وی هغه دے عارف هم وی (یعنے د عرفان مرتبه په علم پسے دویمه مرتبه ده۔ لکه چه د یو عارف د پاره ضروری ده۔ چه دے به خامخا اول علم حاصلوی۔ دغه شان یکار ده۔ چه یو عالم هم د علم حاصلولو نه روستو کوشش اوکړی۔ چه د معرفت لوړه مرتبه حاصله کړی او په صحیح معنیٰ کښے عالم شی۔ اثر)

## (۱۵) پنځلسم ارشاد

رضا په دوه قسمه ده۔ یوه د خدائی پاک رضا د بنده نه۔ او بله د بنده رضا د خپل خدائی نه۔ بنده چه د خپل خدائی نه رضا شی د هغے نښه دا ده۔ چه بیا دے د خپل خدائی په حکم او فرمان قائم پاتے وی۔ او د خپل خدائی د حکمونو څخه کړدن بیخي نه کوی۔ (په دغه حالت کښے بیا خدائی هم د ده نه رضا شی۔ او د زیات نه زیات نیکئ توفیق ورکړی۔)

# شپاړسم[۱۶۶] ارشاد

غنی نوم خاص دَ خدائے سره لائق دے. (په حقیقت کښې غنی هم يو خالق دے)۔ بندګان د دے نوم مستحق نشي کيدلے. او دَ فقر نوم دَ خلقو سره ښائی. دا فقر يو داسے نوم دے. چه د دے نسبت الله تعالیٰ ته نشي کيدلے. که خالق پاک په خپله مهربانئ کوم يو بنده په غنی توب سرفراز کړی. نو دا دَ دغه بنده دَ پاره يو نعمت دے. مګر په دے نعمت کښې غفلت (يعنے شومتيا او دَ خدائے په لار کښې خرڅ نه کول دَ خلقو حقونه پوره نه ادا کول) داسے مثال لري لکه يو فقير چه حرص ناک شی۔

# اولسم[۱۶۷] ارشاد

دَ خپلو استاذانو دَ حق ادا کولو خيال اوساتئ. سپام کوئ چه دَ استاذانو حق در نه ضائع نه شی۔ او ناراضه ئے نه کړی۔



# حضرت

# ملیح بابا علیہ الرحمۃ

# یوسفزائیؒ

# سربنی

# سنہ ۱۲۰۰ھ

# حضرت مدیځ بابا علیه الرحمة

## (یوسفزاۍ، سړبنی)

په وادۍ پېښور کښې د زمانې په لحاظ سره چه کوم پخوانی بزرګان تېر شوی دی. په هغوی کښې د ټولو نه پخوانی مشر او د اوچتې عرفانی مرتبې خاوند مشهور بزرګ حضرت شیخ المشائخ مدیځ بابا علیه الرحمة دے.

د پښتو د علم الانساب په کتابونو کښې چه د دۀ کومه شجره د نسب درج ده. هغه داسې ده. مدیځ[1] ولد ابا[2] ولد بابو[3] ولد اکو[4] ولد یوسف[5] ولد منډ[6] ولد خښې[7] ولد کنډ[8] ولد سړبن[9] ولد قیس[10] (عبد الرشید)

د علم اصول تاریخ په رڼا کښې د یوې صدۍ د پاره څلور کسان یا درې کسان حسابیږي. هر کله چه د پښتون قوم د مشرانو اوسط عمر ونه زیات دی. د هر یو مشر نیکه به تقریباً سل شپېر شلې کاله عمر وو. بله دا چه د دوی ژوند هم ابتدائی قبائلی ژوند وو. یعنے دوی به عام طور ودونه د دیرش څلوېښت کاله په پوخ عمر کښې کول. په دې بناء باندې چه دیته فکر اوکړو. چه د پښتنو مورث اعلیٰ قیس (عبد الرشید) د حضرت رسول مقبول محمد مصطفےٰ صلی الله علیه وسلم صحابی دے. او زمانه ئې د سنه ۹ھ نه شروع کیږي. او حضرت مدیځ بابا د هغه په لسمه پیړۍ کښې نمسے دے. نو د دے نه د "مدیځ" بابا د زمانې معلومولو خبره اسانیږي. چه د تاریخ په لحاظ سره دے د سنه ۳۴۵ھ نه د خوا وشا زمانې بزرګ دے.

د علم اصول تاریخ یوه بله مسئله دا ده. چه که د یو سړي خپله زمانه معلومه نه وي. نو د هغه د نورو همعصرو د زمانې په قیاس سره د دۀ زمانه معلومیدلے شي. د دے مسئلې په رڼا کښې چه فکر اوکړو نو حضرت مدیځ بابا علیه الرحمة او حضرت سید علی الهجویری داتا ګنج بخش علیه الرحمة دواړه د یوې زمانې دی ځکه چه څرنګ مدیځ بابا علیه الرحمة په لسمه پیړۍ کښې د رسول پاک صلی الله

علیه وسلم دَ یو صحابیؓ قیس (عبد الرشید) نمسے دے. دغه شان حضرت داتا گنج بخش علیه الرحمة هم په نسمه پیړۍ کښې دَ رسول پاک صلی الله علیه وسلم نمسے دے. او هر کله چه حضرت داتا گنج بخش په اختلاف دَ اقوالو په سنه ۳۹۵ھ یا سنه ۴۰۰ھ کښې پیدا شوے دے. او په سنه ۴۸۵ھ کښې وفات شوے دے. نو په دے اعتبار سره داوئیلے شو چه حضرت بابا صاحب علیه الرحمة هم دَ دغه سنه ۴۰۰ھ دَ زمانے بزرگ دے.

دَ صولت افغانی صفحه ۳۱۵ دَ بیان مطابق دَ سلطان محمود غزنوی دَ حکومت زمانه د سنه ۳۸۷ھ نه تر سنه ۴۲۱ھ پورے پوله پنځه دیرش کاله وه. دَ برصغیر پاک او هند په غزاګانو کښې چه ددۀ سره دَ مختلفو پښتنو قبائلو، قبائلی سرداران او مشران سره دَ خپلو قبائلی لښکرو شامل شوی وُو. دَ هغوی نوم ونه دا دی:-

(۱) ملک خانو (۲) ملک عامون (۳) ملک داؤد (۴) ملک یحیٰ (۵) ملک احمد (۶) ملک محمود (۷) ملک محمد (۸) ملک عارف (۹) ملک غازی.

(په دوئ کښې ملک غازی هغه بزرګ دے. چه دَ پیر خوشحال په نوم مشهور دے. او دَ سلطان محمود غزنوی په ملګرتیا کښې دَ سوات په غزا کښې شهید شوے دے.)

دا ملکان دَ خپلو خپلو قبائلی لښکرو سره په خصوصیت سره دَ سومنات دَ فتح په جنګ کښې دَ سلطان محمود غزنوی سره ملګری وو. په دے سلسله کښے دَ پښتنو مؤرخینو یوه روایت دا هم دے چه پوره ته دَ پښتنو کوم نهه کسان قبائلی سرداران یاد شول دوئ یو کم دیرش کاله دَ سلطان محمود غزنوی سره په جهاد ونو کښے شامل وو. ددے مطلب دا شو. چه پوره ته دَ کومو پښتنو مشرانو نوم ونه یاد شول. دوئ دَ خپلو خپلو قومونو او قبیلو دَ قومی لښکرو او بیر غونو سره په سنه ۳۹۲ھ کښې دَ سلطان محمود غزنوی دَ حکومت په شپږم کال دَ غزا دَ پاره راوتلی وو. او په وادئ پیښور باندے چه کومه اولنۍ غزا شوے وه. دوئ په هغې کښې شامل وُو.

دَ حضرت اخون درویزه یو روایت دا سے دے. چه هر کله دَ سلطان محمود غزنوی

سره دَ پښتنو غازيانو لښکرے را روانے شولے. نو په دغه غازيانو کښې يو دوه روحاني بزرګان هم وو. چه ذيو "مدے" "مديح نوم وو. (دلته دا ياد لرل پکار دی چه اوس هم پښتانه په خپله مخصوصه اصطلاح او لهجه کښے دے بزرګ نوم "مديح" نه وائی. بلکه "مدے بابا" ورته وائی.) او دَ دويم بزرګ نوم "مدد" وو. او دهغوی دَ کرامات او ولايت په برکت هر ځائی غازيانو ته فتح او برے حاصليدلو. چنانچه دے پورتنو تاريخی معلوماتو او روايتونو نه هم دَ مديح (مدے) بابا په زمانه کښے متعين کولو کښے آسانتيا په لاس راځی.

دے روايا تو او واقعاتو په بناء سره حضرت مديح بابا عليه الرحمة

(الف) په قام بانډے يوسفزی دے.

(ب) بيا په يوسفزو کښے "اکوزے" دے.

(ج) بيا په اکوزو کښې "بابوزے" دے.

(د) بيا په بابوزو کښې "اباخيل" دے.

او په سنه ۳۹۲ھ کښې دَ غازيانو دَ لښکر سره دَ قندهار دارغستان نو مے علاقے نه په خصوصيت سره دَ يوسفزی قبيلے دَ غازيانو سره دے ملک ته راغلے دے. او دَ وادئ پيښور علاقے چه د دغه غازيانو په لاس فتح شوے دي. نو بيا هم دلته پاتے شوی دی.

## فائده

په تاريخی اعتبار سره پښتانه قبائل وادئ پيښور ته په درے مختلفو زمانو کښې راغلی دی. چه په اختصار سره ورته اشاره کول مناسب معلوميږی.

الف:- يو ځل لکه چه ذکر او شو. دغه په اول ګذار په سنه ۳۹۲ھ کښې دَ سلطان محمود غزنوی عليه الرحمة په ملګرتيا کښې دَ جهاد دَ پاره دَ دوئی راتلل دی.

ب:- دويم ځل هر کله چه په سنه ۶۰۰ھ کښې سلطان شهاب الدين غوری المعروف په معز الدين محمد بن سام غوری عليه الرحمة دَ هندوستان دَ دويمے کامياب

حملے نہ راواپس شو۔ نو د تاریخ صولت افغانی (ص ۳۱۵) د بیان مطابق د دہ پہ لښکر کښ چہ کوم یو لکھ د ولس زرہ کسان پښتانہ غازیان وو۔ هغه ئے پہ (۱) کوهستان رُوہ (۲) کوہ سلیمان (۳) اشنغر (۴) سوات او باجوړ کښے آباد کړل. پہ دے خلقو کښ هغه کورنئ چہ پہ قام مداخیل یوسفزی وو۔ د سمہ او بلوچو پہ علاقہ آباد شول۔ د دلازاک قبیلے خلق هم پہ دے نیتہ دلتہ راغلے دے۔

ج:۔ دریم حل د پښتنو قبائیلو هغه نقل وحمل دے۔ چہ د ارغستان نہ د قلات۔ غزنی۔ کابل۔ پاپین باسول پہ لارہ د شیخ ملی او ملک احمد پہ مشری کښ پہ سنہ ۸۱۰ھ کښ پہ خصوصیت سرہ د یوسفزی قبیلے خلق وادئ پیښور تہ راغلے وو۔

د دے وضاحتونو پہ رنړا کښ هر کلہ چہ پہ تاریخی اعتبار سرہ حضرت مدیح بابا علیه الرحمة د غازیانو د وړاند ینی لښکر سرہ دے ملک تہ راغلے دے نو ځکه مونږ دا او وئیل۔ چہ وادئ پیښور تہ د غازیانو د نورو هر څو مرہ لښکرو سرہ چہ نور هر څو مرہ مشاهیر بزرگان راغلی دی۔ پہ هغوی کښ دے یو اوبزرګ دے.

د حضرت مدیح بابا علیه الرحمة اولاد تہ مداخیل والی۔ پیران هم او تہ ورولی د مغولی حکومت پہ زمانہ کښ چہ د یوسفزی قوم تولہ مردم شماری حساب شوے وہ۔ نو پہ هغے کښ پواځے مداخیل د ټول یوسفزی شپږمہ حصہ وو۔ د مداخیل قبیلے خلق پہ سمہ، سوات، بُنیر۔ اباسیند، کوهستان او بلجوړ علاقو کښ خوارہ پراتہ دی۔

د مدیح بابا پہ اولاد کښ پیر گل محمد نومے یو بزرګ تیر شوے دے۔ چہ د شهنشاه دهلی جلال الدین اکبر همعصر وو۔ او د سنہ ۱۰۰۰ھ پہ خوا وشا کښ ژوندے وو۔ روایت دے چہ د ضلع مردان مرکزی مقام مردان نومے کلے دہ آباد کړے دے. دے خاندان تہ پیران او پیرخیل والی۔ لوئ لوئ بزرګان پکښ تیر شوی دی. د دن ورځے نہ شپږ شلے کالہ وړاندے پہ سنہ ۱۲۶۳ھ کښ پیر "عرب شاہ" او پیر ضامن شاہ پکښ مشهور بزرګان تیر شوی دی۔

حضرت مدیځ بابا علیه الرحمة څرنګ چه د یوسفزی پښتنو د یوے قبیلے ملاخیل، پیرانو، مورث اعلی دے. او په دغه وجه ډیر بختور انسان دے. دغه شان یو ډیر لوئ روحانی پیشوا روحانی رهنما او ولی الله هم دے. او په سلسله عالیه جنیدیه او حسنیه کښې د حضرت شیخ المشائخ مودود چشتی مرید وو۔

## احمد ابدال چشتی

په چشتیه طریقه کښې د حضرت مودود چشتی په نوم باندے دوه بزرګان تیر شوی دی. یو هغه مودود چشتی دے. چه د حضرت غوث الاعظم دستګیر شیخ عبد القادر جیلانی همعصر وو. او د سنه ۵۵۵ھ د زمانے بزرګ دے. دا په حقیقت کښې دویم مودود چشتی دے. د دوئ نه وړاندے بلکه هم پخپله ددے مودود چشتی (سنه ۵۵۵ھ) په پخوانو پیرانو کښې د سنه ۳۰۰ھ په خوا وشا زمانه کښې د خراسان په چشت نومے علاقه کښې یو بل بزرګ تیر شوے دے. چه د هغه نوم احمد مودود چشتی دے. او "مودود" یې روحانی لقب دے. (وُدُ په عربی ژبه کښې محبت ته والی. معنی هغه سړے چه خدائ او رسولؐ ورسره مینه فرمائیلے ده. بزرګی او ولایت یې ورکړے دے. او د چشت نومے علاقے په نسبت سره ورته چشتی والی۔

د دے حضرت احمد ابدال مودود چشتی اول طریقه هم لکه د هغه زمانے د نورو بزرګانو جنیدیه طریقه وه (چه حضرت شیخ جنید بغدادی علیه الرحمة ته منسوبه ده.) او حضرت مدیځ (مد ے) بابا هم د طریقت په دغه پخوانو سلسلو کښې د حضرت مودود چشتی اول مرید وو. او د تصوف او عرفان په سلسله کښې پخپله زمانه کښې قطب تیر شوے دے. او د قطبیت د مرتبے انوار او فیوضات یې او س هم څرګند دی۔

د حضرت مدیځ بابا علیه الرحمة مزار مبارک په ضلع مردان تحصیل

مردان کښې د "جلاله" نومي کلي سره نزدې دے. او زيارت ګاه د خاص او عام دے. تصرفات او فيوضات ئے ښکاره دي. او د خدائ مخلوق ته ترينه ډير لوئ فيض رسيدلے دے او رسيږي.

## شيخ ابوبکر صالح عليه الرحمة

د حضرت مديح بابا ځنې کرامات ډير مشهور دي. د دوئ په اولاد کښې پر له پسې تر دولسم پُښته پورے ډير لوئ لوئ مشاهير بزرګان تير شوي دي. چه په خپل خپل وخت ئې د دے وطن د مسلمانانو روحاني رهنمائي او ديني خدمتونه کړي دي. د حضرت مديح بابا عليه الرحمة په دغو دولسو بزرګانو کښې يو بزرګ چه هغه په پنځم پُښت کښې د حضرت مديح بابا عليه الرحمة نمسے وو. د هغه شيخ ابوبکر صالح عليه الرحمة نوم وو. دے د حضرت سيدنا شيخ ميران محي الدين عبد القادر جيلاني عليه الرحمة مريد وو. او د روستو د مردان په علاقه په يوه غزا کښې شهيد شوے دے.

که فکر اوکړو د حضرت مديح بابا عليه الرحمة د ټولو لوئ کرامت دا دے چه د دوئ په روحاني مشرئ کښې د غازيانو لښکر د اسلام بيرغ تر دے علاقو پورے را رسولے دے. او د دوئ د برکته دا وطن نن هم د اسلام په رڼا روښانه دے.

عليهم الرحمة والغفران

# حضرت شیخ الاسلام شیخ اَتُو

## شوریانی، خویشکی

### قصوری، سهروردي

(سنه ۵۵۱ھ)

یادګیرنه :- حضرت سید عطاء الله المعروف په شیخ اَتُو په قام بختیاری سید دے. شجره یې داده :- سید باقر الملقب په عطاء الله المعروف په شیخ اتو ـ ابن محمد الملقب په بختیار ابن سید ابی سعید اسحاق ابن جعفر ابن نظام ابن عیسیٰ ابن محی الدین ابن محمد ابن حافظ ابن نور ابن سید جمال ابن ابو علی جعفر ابن یادګار علی ابن نشان علی ابن علی زین العابدین ابن سید الشهداء امام حسین رضی الله عنهم ط

دَ اتوزی شاخ سیدان په آتوزی او اتو خیل نومونو یادیږی روستو دَ غوښتی قوم دَ ذیلی شاخ خویشکی سره وصل شوید ی. په دغه وجه په اتوزی شیرانی خویشکی نامه یاد شول. دَ تفصیل دَ پاره ملاحظه کړئ جمونږ بل کتاب سادات افاغنه۔ (عبد الحلیم اثر)

# حضرت شیخ الاسلام شیخ اَتُو، شوربانی

،قصوری، ؟ ،سهروردی،

زرداد خان ناآغر، غورغشتی یخیل تالیف صولت افغانی صفحه ۲۳۹ کښې دَ نعمت الله خان هروی دَ تالیف، مخزن افغانی" او دَ یو بل نایاب تاریخی کتاب "تذکیر الاخوان وتقویة الایمان" په حواله باندے او ښاغلی شیخ محمد اکرم یخیل تالیف "رودکوثر" صفحه ۳۵۹ کښې دَ شیخ عبد القادر خویشگی قصوری دَ تالیف "اخبار الاولیاء من لسان الاصفیاء" په حواله باندے لیکی چه :-

دَ پنجاب په قصور نومے ښهر کښې چه کوم خویشگی پښتانه آباد دی. او دلته چه په دے قام کښې څومره بزرگان. اولیاء الله او مشهور مشائخ تیر شوی دی. دَ دوئ مورث اعلیٰ پیر کبار یعنے "لوئ پیر" شیخ "دتو" علیه الرحمة وو. دَ خپل وطن نه راروان شو. خراسان ته لاړو. په چشت نومے ځائے کښې ئے دَ حضرت خواجه مودود چشتی (ثانی) علیه الرحمة نه لاس نیوه وکړه. او دَ خپل پیر خدمت کښې دَ ډیرے مودے تیره ولو او دَ کمال درجے حاصلولو نه روستو بیا واپس خپل وطن ته راغے. دلته ئے دَ خدائ مخلوق ته دَ حق دین اسلام تبلیغ او هدایت کولو چه آخر په سنه ۵۵۱ هـ مطابق سنه ۱۱۵۵ ء کښې په پیښور (سرحد) کښې په حق او رسیدلو.

پورته چه دَ کوم دوه وو مؤلفانو تاریخی حوالے درج شوے. په دغ کښې دوئ دے نامور بزرگ نوم شیخ دِ تُو ضبط کړے دے. لیکن په کتاب "مجمع الانساب" تالیف دَ میاں محمد نور ولد میاں محمد قاسم ولد حضرت حاجی عبد الله المعروف حاجی بهادر کوهاټی کښې دا نوم شیخ "اَتُو" ضبط شوے دے. او چه فکر او کړو. نو دَ مجمع الانساب دا روایت صحیح معلومیږی. د دے وجه دا ده چه پښتانه په نسل باندے بنی اسرائیل دی. او په دغه لحاظ دَ دوئ دَ نیکو نو بچوانی ژبه عبرانی ده. په عبرانی ژبه کښے د حرف (ع) په ځائے دَ حرف (الف) تلفظ کولے شی. او د حرف

(ط) په ځائې د حرف (ت) تلفظ کوؤلے شي۔ (اوبه بعضو لهجوکښې حرف الف په واو بدلولے شي۔) په دے اعتبار سره لفظ (اتو) د لفظ (عطاء) آړولے شکل دے۔ چنانچه ترننه ورځے پورے پښتانه هم دد ے خپلے ژبے عبرانۍ ژبے د ریشے مطابق د لفظ عطاء تلفظ په "اتو" سره کوي۔ هرکله چه د دے حضرت "شيخ الاسلام" خپل اصلي پوره نوم عطاء الله وو۔ او روستو د پوره نوم په ځائې په "شيخ عطاء" سره بللے شي۔ نو دهغه پس د پښتو ژبے د لهجے مطابق په "شيخ اتو" سره ياد شوے دے۔ د دے نه علاوه چه د دے شيخ اتو د کامونو په نوموغوراوشي۔ نو د هغے نه په قياس سره دا نتيجه په لاس راځي۔ چه د ده اصلي نوم عطاء الله وو۔

د مشهور مؤرخ محمد افضل خان ابن اشرف خان ابن خان خوشحال خان ختک په کتاب "تاريخ مرصع" (قلمي نسخه د پبلک لائبريري پنجاب صفحه ۴۶۵) کښې د ابي سعيد المعروف بختيار پنځه ځامن ياد شوي دي۔ (۱) اتو۔ (۲) اکو۔ (۳) کرني۔ (۴) پيري۔ (۵) توري۔ چه د دے پنځه وارو کښې د اتو په حقله د تاريخ مرصع وضاحت دا سے دے۔

اتوغه عطاء الله دے۔ ليکن په قبيله کښې ئې د شيراني شهرت په اتو بيا موندلو۔ له اتو سيد محمد پيدا شو۔ له سيد محمد خواجه الياس او له خواجه الياس "يحيٰ کبير پيدا شو۔ او د يحيٰ کبير شيخ نرے......"

د تاريخ مرصع د دے وضاحت نه روستو په دے کښې څه شک نه پاتے کيږي۔ چه د مجمع الانساب بيان صحيح دے۔ د دے شيخ نوم اتو دے چه د عطا بدل شوے شکل دے او پوره نوم ئې عطاء الله دے۔ او کومو مؤرخانو چه د اتو نوم شيخ ډيتو ضبط کړے دے۔ دغه صحيح نه دے۔ هرکله چه د شيخ ډيتو د لفظ هيڅ يو تعبير هم سمون نه شي خوړلے پله کوم ځاے د اضروري وضاحت او تحقيقي بحث دلته را وړلے شو۔ او هم د دے په رڼړا کښې مونږ د دے بزرګ د هغه مشهور نوم "شيخ اتو" دلته درج کړے دے۔

په تاريخ "صولت افغاني" کښې د دے شيخ اتو عليه الرحمة حالات په دے الفاظو

بیان شوی دی۔

ذکر دَ هغه معرفت دستګاه۔ هغه مظهر دَ اسماء صفات الهی۔ هغه غرق دَ بحر فنا۔ هغه سیاح دصحرائے تحقیق۔ هغه قابل او مقبول دَ التفات یزدانی۔ شیخ اتو شورہانی۔ خویشګی علیه الرحمة۔۔۔۔۔۔۔۔۔ دے شیخ اتو علیه الرحمة دیرش کاله دَخپل پیر طریقت حضرت مودود چشتی په خدمت کښ تیر کړل۔ په آخر عمر کښ خپل پیر ورله خپل خاص خلعت او خرقه دَ خلافت ورکړله او دَ رشد او هدایت اجازت او حکم ئے ورته اوکړ۔ مهربانی ئے ورسره اوکړه ــ او قصور ته دَ تللو اجازت ئے ورته وکړلو۔ لیکن دے دَخپل پیر دَ وفات نه روستو پنځه کاله نور هم هلته پاتے شو۔ او پوره پنځه دیرش کاله پس دَ خویشګی قبیلے دَ نورو کلو سره رار وان شول۔ او بیبنو، (سرحد) ته ئے تشریف راوړ۔ دَ دوي په تشریف راوړلو دَ ملک په دے حصه کښے دَ اسلام رڼا خوره شوله؛۔

دَ حضرت شیخ اتو کرامات له حده زیر دی۔ او دَ خدائ پاک پیر زیات مخلوق ته ترینه فائده رسیدلے ده۔ او نن هم رسیږی۔ دَ دوی په همعصرو بزرګانو کښ د دے مشاهیر ومشایخو نومونه دَ یادولو دی۔

(۱) شیخ ابراهیم دانشمند اَرمړ دَ وزیرستان۔
(۲) شیخ احمد سخی سرور سلطان دَ ډیره غازی خاں۔
(۳) شیخ الاسلام غوث العالم بهاء الدین ذکریا دَ ملتان۔

(چه روستو به د دے درے وارو مشاهیرو و مشایخو تذکره په تفصیل سره راشی) په دے اعتبار سره دَ مغربی پاکستان په د غه ټولو علاقو یعنے وزیرستان، ډیره غازی خان۔ ملتان او قصور کښ دَ هغه یو مشعل رڼا وه۔ چه دَ قادریه، سهروردیه، چشتیه سلسلو بزرګانو دَ بغداد شریف نه دلته رالیږلے وه۔ او د دے رڼا دَ رالیږلو نه ئے لوئ بنیادی او اصلی غرض په دے زمکه دَ کفر او شرک تیاره ورکول وو۔

په دې سلسله کښې داپوه خاصه نکته یاد ساتل پکار دي. چه که حضرت شیخ ابراهیم دانشمندٌ ارمړ. او حضرت شیخ اتو خویشکے په قام پښتانه وو. او حضرت شیخ الاسلام غوث العالم بهاءالدین ذکریا په قام قریشی عرب وو. او حضرت شیخ احمد سخی سرور سلطان په قام بانډے سید وو. نو دغه ټیزاودغه فرق دَ شیخ نه ورک وو. اصلی څیز هغه روحانی فیض وو چه سرچشمه ئې یوه وه "یو" روحانی تړون" وو. او ټولو مسلمانانو ته ایکي یوشان فیض رسیدلو. د دې مشرانو مینه او محبت او شفقت هرڅه دَ اسلام سره وو. او چه دَ دوئ یو مرید به دَ محنت. مشقت. زهد او ریاضت نه روستو دَ کمال درجې ته اورسیدلو نو بیا به ئې هغه ځائې ته او هغه ملک ته لیږلو. چه چرته به دَ دین اسلام دَ تبلیغ زیات ضرورت وو.

دَ حضرت شیخ اتو علیه الرحمة شپږ ځامن وو. نومونه ئې دا دي:

(۱) حضرت شیخ میاں چنول (ثناءالله) چه دَ ده دَ نسل خلق دَ "چنوزائي" په نامه یادیږي.

(۲) حضرت شیخ میاں عارف الله. چه د ده اولاد ته "عارف زائي" وئیلے شي.

(۳) حضرت شیخ میاں "محمد" چه اولاد ئې "محمد زائي" بللے شي.

(۴) حضرت شیخ میاں "شبابن" (شهاب الدین) چه اولاد ئې شبابن زائي بللے شي.

(۵) حضرت شیخ میاں "محمد ابراهیم" چه اولاد ئے "ابراهیم زائي" یادیږي.

(۶) حضرت شیخ میاں محمد عیسیٰ چه په شیخ عیسو او عیشو مشهور دے او اولاد ئې دَ "عشوزي" په نامه بللے شي.

## ((حضرت شیخ میاں چنول، شورپسانی، خویشکی))

دَ حضرت شیخ عطاء الله المعروف شیخ اتو علیه الرحمة مشر ځوی حضرت ثناء الله المعروف په شیخ "چنول" او میاں "چنول" دَ خپل وخت لوئي

بزرګ وو۔ د دۀ د نسل خلق د "چنون زائی" په نامه یادیږی. د دۀ د نوم (چنون) په حقله یو روایت دا هم دے. چه لفظ چنون د هغه زمانے (۵۵۱ھ مطابق ۱۱۵۵ء) د پنجاب د مقامی ژبے لغت دے۔ چه د میښے په طور د لفظ چانه (سپوږمۍ) مخفف دے۔

څۀ وخت چه حضرت شیخ اتو علیه الرحمة وفات شو۔ نو دهغه په ګدۍ باندے حضرت میاں چنون علیه الرحمة ګدۍ نشین شو۔ او د دین اسلام تبلیغ او رښته او هدایت خدمت ئے کولو۔ د لاهور او قصور او خواؤ شا علاقو په مسلمانانو کښں د دوی پیرلوئ قدر عزت او احترام ؤو۔ د تاریخ صولت افغانی (ص ۶۵۳) د روایت مطابق "میاں چنون" د پیرلوئے روحانی درجے خاوند وو۔

د لاهور او ملتان په ریلوے لائین باندے د لاهور نه ۵۰ میلو نو فاصله د منټګمرۍ نه اخوا ته یو تیسن دے. او د خانیوال نه ځلور تیسنه را دے خوا ته. یعنی د منټګمرۍ او خانیوال تر منځه د یو ریلوے تیسن نوم "میاں چنو" دے. چه دغه مقام هم د دے خویشکی بزرګ په نوم مشهور دے. حضرت شیخ میاں چنون چشتی سهروردی قصوری علیه الرحمة د "قصور" نه دغه علاقے ته تلے وو. هلته آباد شوے وو. او هم دغلته د دوی مزار مبارک واقع دے. علیه الرحمة والغفران.

د حضرت شیخ عطاء الله المعروف شیخ اتو علیه الرحمة په دے خاندان کښں چه په قصور کښے کوم مشهور بزرګان تیر شوی دی. په هغوی کښں د یو څو بزرګانو نوموونه دلته لیکلے شی۔

(۱) حضرت شیخ حاجی اویس اتو زائی قصوری چشتی چه په سنه ۱۰۰۹ھ مطابق سنه ۱۵۹۷ء کښں وفات شوے دے۔ او مزار ئے په قصور کښں دے۔

(۲) حضرت شیخ سعید اتو زائے قصوری چشتی چه په سنه ۱۰۲۱ھ مطابق سنه ۱۶۰۹ء کښں وفات شوے دے۔ او مزار مبارک ئے په قصور کښں دے۔

(۳) حضرت شیخ رحمت اتو زائی قصوری چه په سنه ۱۰۲۸ھ مطابق سنه ۱۶۱۶ء کښں وفات شوے دے۔ او مزار مبارک ئے په قصور کښں دے۔

(۴) حضرت مولانا شیخ احمد اتوزائ قصوری شوربانی خویشکی چه په سنه ۱۰۳۳ه
مطابق سنه ۱۶۲۳ء کښې وفات شوې دې. او مزار مبارک ئې په قصور کښې دې.
په دې پوړنۍ غلورو وارو بزرګانو کښې د حضرت شیخ احمد اتوزائي مختصره
تذکره درج کول مناسب معلومیږي.

## (( حضرت شیخ احمد اتوزائي قصوري رح ))

د تذکرهٔ "رود کوثر" مؤلف د حضرت مولانا شیخ احمد اتوزائي علیه الرحمة
په حالاتو کښې لیکي چه:-
حضرت شیخ احمد د قصور د خویشکي قام په پښتنو بزرګانو کښې د ټولو نه
زیات نامور بزرګ تیر شوې دې. دې هم د پیر کبار حضرت شیخ اتو علیه الرحمة په
اولاد کښې وو. ظاهري او باطني علومو تکمیل ئې په لاهور ښهر کښې د حضرت
شیخ اسحاق ابن حضرت "شاه کاکو" چشتي لاهوري نه کړې وو. چه دغه شیخ
اسحاق د شهنشاه جلال الدین اکبر په زمانه کښې د ملک په ممتاز و عالمانو
کښې شمیرلې شو. (د حوالې د پاره ملاحظه کړئ د ملا عبد القادر بدایوني کتاب "منتخب التواریخ")
حضرت شیخ احمد قصوري پخپل قوم کښې اولنې بزرګ وو. چه دوئ د
باطني کمالاتو سره ظاهري علومونه جمع کړي وو. په زهد او ریاضت کښې ئې خپل
نظیر او مثال نه لرلو. او ورسره په علم او فضل کښې هم د دوئ آوازه تر لرې لرې
پورې رسیدلې وه. د دۀ په همعصرو بزرګانو کښې ئې څو بزرګانو نومونه د یاد ولو دي.
(۱) حضرت شیخ احمد سرهندي مجدد الف ثاني علیه الرحمة.
(۲) حضرت شیخ احمد سون غورغشتي د جالندهر علیه الرحمة.
(۳) حضرت شیخ عبد الحق محدث دهلوي علیه الرحمة.
(۴) حضرت شیخ عیسیٰ برهانپوري سندهي علیه الرحمة.
دې غلورو وارو بزرګانو به د دۀ زیات قدر او احترام کولو. بلکه بل یو مشهور
صوفي بزرګ او فاضل عالم حضرت شیخ عبد اللطیف برهانپوري خو به دا هم

فرمائیل ـ چه ما پخپل عمر کښې داسې عالمان چه په علوم ظاهری او باطنی دواړو کښې یو شان کاملان وی فقط دوه کسان لیدلی دی ـ یو شیخ عبدالوهاب مرضیعی، او دویم شیخ احمد اتوزائ قصوری خویشګی ـ چنانچه د قصور د خواږشا علاقې نه به چه که څوک سړی د طریقې کولو او فیض کولو د پاره برهان پور ته مولانا عبداللطیف له ورغی. نو هغه به یې بیرته قصور له واپس لیږلو. او هغه ته به یې فرمائیل. چه هر کله په قصور کښې داسې د فیض چینه موجوده ده، نو ته د هغې نه خپله تنده ولې نه ماتوې ـ؟

حضرت شیخ احمد اتوزائ ډیر زیات لوی عالم وو ـ زیات وخت به یې خلقو ته د علم دین په درس او تدریس کښې تیریده ـ "سوالات احمدی" نومې یو تالیف یې یادګار پاتې دې. ؛ علیه الرحمة والغفران ؛

## حاجی نکن اتوزائ، قصوری، خویشګی

په دې خاندان کښې یو بل بزرګ حضرت شیخ حاجی نکن اتوزائ شوړیانی خویشګی قصوری تیر شوې دې ـ چه اووه حجونه یې کړی وو ـ ډیر لوئ زاهد پرهیزګاره او مشهور بزرګ وو ـ د حضرت شیخ عیسیٰ مشوانی نه یې لاس نیوه کړې وه ـ په سنه ۱۰۴۶ هـ مطابق سنه ۱۶۳۴ ع کښې وفات شوې دې. علیه الرحمة.

د قصور پنجاب د خویشګی خاندان پښتانه بزرګان د چشتیه سلسلې بزرګان وو ـ د معرفت او طریقت او د علم او فضل د اشاعت او درس او تدریس او فیضان نه علاوه دوئ ډیر ادبی خدمات هم کړی دی ـ او د دغه نه علاوه په دوئ کښې د ډیر لوئ جاه و جلال خاوندان مشهور حکمرانان هم تیر شوی دی ـ لکه د مبارز الدوله پیر ابراهیم خان خویشګی قصوری نوم پکښې په خاص طور سره د یاد ولو دې ـ

د حضرت شیخ عطاء الله المعروف شیخ اتو او د هغه د خاندان د بزرګانو

دَ حالاتو دے مختصر بیان نه ډیره په آسانتیا سره دا اندازه لګیدلے شی.
چه دَ خویشکی پښتنو دے نامور بزرګ دَ تاریخ وفات (سنه ۵۵۵ھ مطابق سنه ۱۱۵۵ء)
نه راپه دے خوا په تیر وشوو اته وَ سوَ کلونو کښې دَ مغربی پاکستان دَ
پنجاب په علاقه کښې د دے خاندان بزرګانو دَ دین اسلام او مسلمانانو
خومره خدمتونه کړی دی. او دا خبره دَ خویشکی قبیلے دَ هغه
خاقو دَ پاره چه دَ ضلع پیښور په تحصیل نوښهر کښې آباد دی.
ډیره لویه دَ فخر او عزت خبره ده. ۔ ورسره دا هم ترینه واضحه
کیږی. چه دَ ملک په دے دوا پرو حصو کښې هم دَ دوی په برکت
سره چه کوم مضبوط "روحانی تړون" موجود دے.
انشاء الله چه تر عمره عمره به موجود وی.

# شیخ المشائخ، حضرت سیّدنا غوث الاعظم، محبوب سبحانی، شیخ عبدالقادر جیلانیؒ

(متوفی سنہ ۵۶۲ھجری)

دَحضرت شیخ المشائخ غوث الاعظم، دستګیر نوم مبارک سیّد عبدالقادر دے. کنیّت ئے ابومحمد دے. او لقبونه ئے بے شمیره دی. لکه غوث صمدانی، قطب ربانی، محبوب سبحانی، غوث الاعظم، میرمیران، لوئ پیر، سلطان الاولیاء محی الدین جیلانی،

پښتانه ورته لوئ خوان، "پیرانو پیر" او "غوث پاک" وائی. حضرت غوث پاک په ټام باندے سیّد دے. دَ پلار دَ طرف نه حسنی او دَ مور دَ طرف نه حُسینی سیّد دے.

(الف) دَ پلار طرف نه شجره دَ نسب ئے داسے ده. حضرت سیّد محی الدین عبدالقادر جیلانی ابن الامام سیّد ابی صالح موسیٰ جنګی دوست ابن الامام سیّد عبدالله ابن الامام سید یحیی الزاهد ابن الامام السیّد محمد ابن الامام سیّد داؤد ابن الامام سیّد موسیٰ ابن الامام السیّد عبدالله ابن الامام سیّد موسیٰ الجون ابن الامام السیّد عبدالله المحض ابن الامام سیّد حسن مثنیٰ ابن الامام الهمام سیّدنا حسن السبط ابن سیّدنا ومولانا امیرالمؤمنین ابی الحسنین الامام علی ابن ابی طالب رضی الله عنهم اجمعین

(ب) او دَ مور بی بی دَ طرف نه دَ حضرت سیدنا او مولانا غوث الاعظم سیّد شیخ عبدالقادر جیلانی شجره دَ نسب داسے ده. چه دَ دوئ دَ والدے نوم دے. سیّده ام الخیر امة الجبار فاطمه بنت سیّد عبدالله صومعی الزاهد ابن سیّد ابی الجمال الدین محمد ابن سیّد محمود ابن سیّد ابو العطاء عبدالله ابن

السید کمال الدین عیسیٰ ابن السید الامام ابی علاء الدین محمد الجوادؒ ابن سید الامام علی رضا ابن سید الامام موسیٰ کاظم ابن سید الامام جعفر الصادق ابن الامام محمد الباقر ابن الامام زین العابدین علی ابن الامام الهمام الحسین شهید کربلا ابن الامام الهمام امیرالمؤمنین سیدنا علی ابن ابی طالب رضی الله تعالیٰ عنهم:-

په ایران نومی ملک کښې طبرستان نومې وطن دے. په هغې کښې گیلان نومې یوه علاقه ده. په دے علاقه کښې نیق نومې یو کلے دے. په هغې کښې د سادات یوه کورنۍ ده. حضرت غوث پاک په دغه بختوره په دغه پاکه کورنۍ کښې په اولنی تاریخ د رمضان المبارک سنه ۴۷۰ هـ یا سنه ۴۷۱ هـ کښې پیدا شوے دے. هرکله چه د دوی پیدائش په گیلان نومې علاقه کښې شوے دے. په دغه مناسبت د دوی مبارک د نوم سره گیلانی لیکلے شی. (په دے سلسله کښې یو نوی تحقیق طرف ته اشاره کول هم مناسب معلومیږی. چه د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په نیکونو کښې د یو نیکه نوم دے. مُضَرْ چه په سنه ۵۵ ق م کښې تیر شوے دے. د هغه دوه ځامن وو. (۱) الیاس چه د قریش قبیلې خلق د ده په اولاد کښې دی. (۲) غیلان چه د بنی اسماعیل قوم قیسی نومې قبیله د ده په اولاد کښې ده. د دے غیلان قبیلې خلق په سنه ۲۰۰ ق م کښې د موجوده افغانستان علاقې ته راغلی وو. او د غزنی او قندهار ترمنځه چه نن ورځې کوم ځائې د "مقر" په نوم یادیږی. دغلته آباد شوی وو. د دے مقر پخوانے نوم غیلان دے چه هم دغه غیلان ابن مضر ته منسوب دے. کیدے شی چه حضرت غوث پاک هم د دے غیلان "گیلان" وی. مقر چه پخوانے نوم ئے غیلان گیلان دے. د کابل او قندهار ترمنځه غزنی په لاره یا نږدے پروت دے. مقر د کابل نه د (۱۵۲) میله. او د غزنی نه د (۶۲) میله په فاصله پروت دے. د کابل او غزنی ترمنځه (۹۰) میله لاره ده. بیا د مقر نه تر قندهاره پورے (۱۶۷) میله فاصله ده. مقر د کابل ښهر نه جنوب مغرب طرف ته

واقع دے. بهرحال دا یوه داسے خبره ده چه ځیاني تحقیق به غواړي.)

حضرت سیدنا عبد القادر ګیلاني چه لږ لوئ شو. نو والدین بزرګوار ورته سبق شروع کړو. اول ئے قرآن مجید اولوست. او بیائے د دیني علومو واړه واړه ابتدائي کتابونه شروع کړل. په دغه منځ کښې د دوئ پلار وفات شو. او ماشوم عبد القادر یتیم پاتے شو. خو دغه دُر یتیم سبق پرے نښودو. او د لسو کالو تر عمره ئے ځپل کلي کښې لوستنه اوکړه. بیائے د مور نه اجازت واخستلو او په سبق پسے بغداد ته روان شو. په دغه زمانه په بغداد باندے د خلیفه المستظهر بالله عباسي (د ۴۸۷ھ نه تر ۵۱۲ھ) پورے د خلافت زمانه وه. او په ایران کښې د سلجوقیانو بادشاهي وه. او په افغانستان او مغربي پاکستان دواړو علاقو باندے د سلطان شهاب الدین غوري حکومت وو. (شهاب الدین غوري په ۵۷۱ھ کښې په ملتان او اوچ باندے بیا قابض شوے وو. او تر ۵۷۸ھ ئے ټول سنده قبضه کړے وو.) لیکن په دغه دوران کښې د باطنیه اسماعیلیه فرقے کوم مشر چه د شیخ الجبال په نوم یادیده. او د فدایانو مریدانو یو داسے ټولے ئے پیدا کړے وُو. چه قلعه الموت نومے مقام ئے مرکز وو. او د هغه نه چار چاپېره ملک ئے اړے کړے وو. د وسله بند لښکرو په شکل چپاؤنه به ئے وهل. لارے به ئے وهلے. او د هغوئ د لاسه قافلے به په امن سره په لارے تیریدے نه شولے. په داسے حالاتو کښې غوث پاک د بغداد په نیت د کور نه په سفر روان شو.

حضرت غوث پاک چه د کور نه روانیده. نو مور ورله د واسکټ په ترخونو کښې د ننه اړخ ته خلویښت اشرفئ اوګنډلے. او دا نصیحت ئے ورته اوکړو چه بچیه! تل رښتیا وایه. او هیڅ ورے دروغ مه وایه. بیا د ډیر دعاګانو سره ئے خپل یتیم ځوئ د خدائے په نوم د دین په سبق پسے بغداد ته رخصت کړو.

په لاره کښې چه قافله باندے د اکه پریوته. او د همدان په خوا کښې

ټول سود اَګران اولو ټلے شول. دَلوټ مار په منځ کښې يو ډاکو دَ حضرت غوث پاک رضي الله عنه نه تپوس اوکړو. چه ستا په واسکټ کښے څه مال ښتة دے اوکه نه؟ حضرت اوفرمائيل. هُو! ما سره څلويښت اشرفۍ شته دی. ډاکو زريو ملګری ته آواز اوکړو. چه راشه دا ماشوم وائی چه ماسره څلويښت اشرفۍ شته. دويم ډاکو چه ترينه تپوس اوکړو. نو حضرت ورته زر واسکټ کوز کړو. او پوره څلويښت اشرفۍ ترينه را اوختے. نه يوه کمه نه زياته ـــــ؟.

ډاکوانو چه دا قيصه خپل مشر ته بيان کړه. نو هغه حضرت پيران پير رضي الله عنه را اوغوښتلو. او ورنه ئے تپوس اوکړو. چه تا ولے خپل مال ښکاره کړو. او ځان دے اوچ په اوچه تاوانی کړو؟

حضرت اوفرمائيل. چه ما دَ خپلے خورے مور سره لوظ کړے دے. چه هيچرے به زه دروغ نه وايم. نو ځکه مے سم حال اووے. چه دروغژن نه شم. دَ حضرت غوث پاک دے وينا دَ ډاکوانو په سردار دومره اثر اوکړو. چه په ژړا شو. او وئے وئيل چه تا يو وارے دَ خپلے مور سره لوظ کړے دے. او په هغے ټينګ ولاړ يے. او موږ چه دَ خدائ پاک سره لوظ کړے دے. چه ظلم زياتے به نه کوو. نو بيا هم هر وخت په حرامو کښې بوخت پراته يو. او دَ خپل لوظ هيڅ خيال نه ساتو. دا خو پيره دَ شرم خبره ده. ځما دَ نن ورځے نه توبه ده. چه بيا به دَ ګناه هيڅ کار نه کووم په دے باندے هغوئ ټولو توبه اوويسته. لوټ کړی مالونه ئے سوداګرو ته واپس کړل. دَ پاکيزه ژوند تير ولو اراده اوکړله.

## (په بغداد کښې تعليم:-)

روايت دے. چه حضرت غوث پاک بغداد شريف ته په کال ۴۸۸ سنه هجری کښې دَ صفر المظفر په مياشت کښې رسيدلے وو. په دے اعتبار سره بغداد شريف ته دوئ دَ اولسو(۱۷) يا اتلسو(۱۸) کالو په عمر کښې را رسيدلی دی. که دَ ګيلان نه دَ دوئ بغداد ته دَ راوانيدلو صحيح تاريخ معلوم شي. نو دَ هغے په رڼا

کښې ۔ اخپره اسانه شي چه دوئ په ګومره موده کښې بغداد ته رسیدلي وو۔ او په لاره کښې په کومو کومو علاقو کښې ئې څومره موده تیره کړې وه.

په بغداد کښې ئې د قاضی القضاة حضرت ابوسعید نه فقهه اولوستله بیائې د حضرت ابوبکر احمد ابن مظفر نه احادیث اولوستل ۔ او د افضل العلماء حضرت ابو... او د بحر العلوم ابوسعید رومانی نه ئې تفسیر اولوست ۔ او په دې ټولو علمونو کښې د هرچا د پاسه شو ۔ او اته کاله پس په میاشت د ذالحجه ۴۹۶ھ کښې د تحصیل علم نه فارغ شو ۔ او په خپلو ملګرو کښې د ټولو نه او چت علمي درجه ورته حاصله شوه. عالمان د دوئ په تعریف کښې چه :۔ "فَاقَ الْکُلَّ فِی الْکُلِّ۔ وَصَارَ مَرْجَعُ الْجَمِیْعِ فِی الْجَمِیْعِ" یعنې په ټولو علمونو کښې د ټولو نه لوړه مرتبه ورته حاصله شوه او په ټولو علمونو کښې د ټولو عالمانو مرجع او د راغونډیدلو ځائ شولو ۔

**لاس نیوه :۔** د علم حاصلولو نه پس حضرت غوث پاک د حضرت ابو سعید المبارک مخرمی نه لاس نیوه اوکړه ۔ او پنځویشت کاله ئې په بغداد کښې او د عراق په ځنګلونو کښې د ګرانو نه ګرانې مجاهدې او ریاضتونه اوکړل ۔ او په دې سلسله کښې بې شمیره سختئ ئې په ځان تیرې کړې ۔ او د عرفان هغه لوړه مرتبه ورته حاصله شوه. چه د هغې نه خلق په غوث صمدانی او محبوب سبحانی سره تعبیر کوي ۔ او د حضرت شاه ولی الله صاحب د قول مطابق :۔ "وَلَهُ سِرْیَانٌ فِی الْعَالَمِ فَصَارَ کَالْمَلَاءِ الْاَعْلٰی" ۔ ترجمه :۔ حضرت غوث پاک ته په ټول عالم کښې داسې تصرف او نفوذ ورکړې شوې دې ۔ لکه هوا چه چلیږي. او په مرتبه د ملاء اعلیٰ ګرزولې شوې دې. یعنې په دې اعتبار د دوئ لقب غوث الاعظم دې ۔

**درس :۔** د لوئې ریاضت او پیر محنت نه پس حضرت غوث پاک پسته بغداد ته لاړو ۔ او د خپل پیر ابوسعید المبارک مخرمی په جوړه کړې مدرسه کښې ئې د دیني علمونو درس ورکول شروع کړه ۔ د اوړه غونډې مدرسه د باب الازج په محله کښې جوړه وه ۔ په لږ ورځو کښې د حضرت غوث پاک په برکت

دَ طالب علمانو او شیخانو تعداد دومره زیات شو۔ چه روغه مدرسه پرے تنګه شوه۔ او کیر چاپیر ځایونه په مدرسه کښی شامل کړے شول۔ دغه توسیع په سنه ۵۲۸ھ کښی شوے وه۔ او دغے نه پس دا مدرسه دَ حضرت شیخ عبدالقادر گیلانیؒ په نوم مشهوره شوه۔ ددے مدرسے په توسیع کښی خلقو ډیر خلوص نه کار اخیستے وو۔ تردے حده چه یو بے شیخ خپل کلکار خاوند راوست چه په ده بانده ځماشان اشرفی مهر پورے دے۔ لس دے مدرسے ته ورکړی او نورے لس به ورته وبخښم۔ هغه سړی چه په مدرسه کښی دَ ښځهٔ واشر فو کار اوکړو۔ نو حضرت ورته نور رقم معاف کړو۔ او مهر نامه ئے ورته واپس کړه۔

**وعظ** حضرت غوث پاک به په هفته کښے درے ورځے وعظ کولو۔ دَ جمعے په سحر او دَ نهی په شپه به ئے په مدرسه کښی وعظ کولو۔ او دَ شورو (چارشنبه) په سحر به ئے بخپله مهمانخانه کښی نصیحت کولو۔ دا کار دَ سنه ۵۳۱ھ نه شروع شوے وو۔ او تر آخر وخته پورے جاری وو۔

ددے نه علاوه دَ فقهے او اخلاقیاتو درس به ئے هم ورکولو۔ او سحر او ماښام به ئے دَ تفسیر۔ حدیث۔ اصول فقه او دعلم نحو سبقونه هم ښودل۔ او دماسپخین دَ مانځه نه پس به ئے دَ قرآن مجید درس هم ورکولو۔ او دَ څلور واړو مذهبونو دَ فقهے مطابق به ئے فتویٰ ورکوله۔ او بخپله دَ اجتهاد مرتبے ته رسیدلے وو۔ خو بیا دے څلور واړو مذهبونو کښی دَ حنبلی مذهب ته مائله وُو۔

دَ حضرت غوث پاک دغه آسمانی وعظ وو۔ چه پنځه زره یهودیان او عیسایان پرے مسلمانان شوی وو۔ او په لکونو خلقو دَ بد کارونو نه توبه اوبیستله۔ او حضرت غوث پاک ته ئے دَ ذوالبیانین صاحب البراهین امام الفریقین۔ امام الطریقین۔ ذوالسراجین۔ او ذوالمنهاجین خطابونه ورکړل۔

**تصنیفات** دَ حضرت شیخ سید پیران پیر صاحب په تصنیفاتو کښی

غنیة الطالبین۔ او فتوح الغیب او مکتوبات ډیر زیات مشهور دی۔ چه دَ هغې ترجمې په مختلفو ژبو کښې شوی دی۔ عالمان، صوفیان او عوام ټول ترینه فائده اوچتوی۔ دَ حضرت پاک یو بل تالیف دے چه هغه نن ورځے ډیر نایاب دے۔ دَ هغې نوم دے" سِرُّ الاسرار فیما یحتاج الیه الابرار" په دے کتاب کښې دَ طریقت او عرفان دَ مسائلو او اصولو ذکر دے۔ لکه چه پخپله غوث پاک دَ دے کتاب په دیباچه کښې فرمائی" لانا ذکرنا فیه ما یطلب غالبًا فی الشریعة والطریقة والحقیقة وجعلناه مشتملاً علی مقدمة واربعون فصلاً بعد د حروف کلمة لآ اله الا الله محمد رسول الله۔ وعدد ساعات اللیل والنهار" دَ دے مبارک کتاب یو نسخه څما مؤلف (عبدالحلیم اثر) سره موجود ده۔

دَ دوئ په وعظ او نصیحت کښې ډیر لوئ تاثیر وُو۔ چه یو ځل هم چا به واوریدلو چه په کافر وُو مسلمان به شو۔ او که بد عمله مسلمان وو ۔ نیک عمله به شو۔ دَ دوئ دَ وعظ یو طریقه دا وه چه سړے به دَ وعظ په مجلس کښې حاضر وو۔ او په هغه کښې به یو خاص عیب وو۔ نو هغه ته به ئے کوته نه نیوله۔ دَ هغه پرده به ئے نه فاش کوله۔ بلکه په خبرو خبرو کښې به ئے دَ هغې گناه او ناکاره عیب دا سے وضاحت او فرمایه۔ چه هغه سړی به دَ ځان سره دا محسوس کړه چه دا اشاره خو په حقیقت کښې ماته ده۔ او دا هر څه څما دَ اصلاح او فائدے دَ پاره فرمائی۔ او هغه به توبه تائب شو۔ او په دے طریقه سره ډیر غاوره غاوره حاکمان چه څرگند عیبونه به پکښې وو۔ دَ حضور غوث پاک دَ وعظ مجلس ته چه راغلی دی۔ نو اصلاح ئے شوے ده۔

روایت دے۔ چه دَ هغې زمانے دَ بغداد خلیفة المسلمین به ورله کله کله دَ شپے ملاقات له راتے۔ نو حضرت به پخپله وظیفه او عبادت کښې داسے مشغول وو۔ چه تر سحره به ئے ملاقات او نه شو۔ یا نے شو نو حضرت دربار ته تلل نو دا خیز دوئ نه خوښولو۔ او فرمائیل به ئے چه: "دَ بادشاهانو

دربار ته تلل یا دَ هغوی په دسترخوان بانډِ کیناستل دَ عقوبت عاجله دے"

**وفات:-** مرګ حق دے۔ او خلاصے ترینه نشته دے. په ربیع الثانی سنه ۵۶۲ھ کښې حضرت غوث پاک ناجوړه شو۔ او د نهٔ مبارکے میاشتے په یو ولسم تاریخ دَ حضرت دَ بدن مبارک نه روح پرواز اوکړو۔ دَ دوئ دَ وفات تاریخ د دے جملے نه راوتلے شی [معشوق الٰهی ۵۶۲] دَ حضرت پیران پیر صاحب په جنازه کښے دومره کثیر مخلوق راجمع شوے وو. د دے وجهے نه دَ ورځے دَ کفن دفن انتظام اونه شو۔ آخرچه ماښام شو۔ او دَ شپے توره ورزے دَ مزکے په مخ راوغوړیدے او کثره خوره شوه نو دَ حضرت دَ کفن دفن انتظام په اطمینان سره اوکړے شو۔ په خپله مدرسه کښې دَ نه دَ یوسیر لاندے ورله قبر اوکنستے شو۔ خو اول دَ مدرسے وروله بند کړے شول. او دَ هغے نه پس دا کار سرته اورسولے شو دَ هغے ورځے نه ترننه ورځے پورے دَ حضرت په مزار مبارک باندے په زرګونو خلق مره ورځ دُعا له حاضریږی. اګرچه په بغداد کښې عباسی خلافت پاتے نه شو۔ اوکوم بغداد چه "عروس البلاد" کنړلے شو۔ هغه دَ زړو عمارتونو دَ کنډرو ډهیره کړئ شوے۔ خو حضرت پیران پیر غوث الاعظم دستګیر صاحب اوس هم دَ خپل مزار پرانوار نه په ټلور کنجه دنیا حکومت کوی۔ او دَ ټولے دنیا دَ مسلمانانو زړونه ئے په خپل موټی کښې ټینګ نیولی دی۔

**اولاد او فیوضات:-** دَ حضرت غوث پاک دَ ورځامنو نو مونه ډیر مشهور دی سیّدنا عبد الوهاب او سیّدنا عبد الرزاق دوئ دواړه په سلسله عالیه قادریه کښې دَ خپل والد ماجد خلیفه ګان وو۔ خرنګ چه دَ دوئ په ذریعه دَ حضور غوث پاک دَ اولاد او نسل سلسله په دنیا کښې خوره شوے ده۔ دغه شان دَ روحانیت او طریقت سلسله هم خوره شوے ده۔ دَ مثال په طور

حضرت سید شرف الدین علیه الرحمة

چه د مغربي پنجاب د ښهر لاهور د باغ جناح د جیم خانه کلب سره نمرخانه طرف ته یې مزار مبارک دے دا حضرت سید شرف الدین علیه الرحمة د حضرت غوث پاک د فرزند ارجمند حضرت سیدنا ابوبکر عبد الوهاب خلیفه او ماذون دو.

په برصغیر او هند کښې چه هر څومره روحاني پیشوایان تیر شوي دي په دوي کښې زیات تعداد د هغه بزرګانو دے. چه په سلسلهٔ عالیه قادریه کښې یې تربیت او کمال حاصل کړے دے. او بیا په خصوصیت سره د پاکستان په دواړو حصو کښې یعنې په مغربي پاکستان او مشرقي پاکستان کښې چه د دے سلسلے کوم مشاهیر بزرګان تیر شوي دي. په هغوي کښې

(الف) یو هغه دي. چه د حضور غوث پاک اولاد دے.

(ب) دویم هغه دي چه د حضور غوث پاک براه راست خلیفه ګان او ماذونان دي.

په دے ضمن کښې څو بزه د پاکستان مسلمانانو د نیک بختۍ او خوش قسمتۍ نښه دا ده چه د حضرت محبوب سبحاني قطب رباني. غوث صمداني شیخ عبدالقادر جیلاني مزار پر انوار که په بغداد شریف کښې دے. نو د هغوي د نامورو خلیفه ګانو د سلسلے مریدان او په خصوصیت سره د غوث پاک د دواړو ځامنو یعنې حضرت سیدنا عبد الوهاب او حضرت سیدنا عبد الرزاق قدس سرهم العزیز د نسل سادات په اوچ بهاولپور. ملتان. شیرګړه. (منټګمري) لاهور. سنده. کشمیر. بلوچستان. وزیرستان. جهلم. بنوں. کوهاټ. پیښور. چارسده او سوات کښې او نورو مختلفو علاقو کښې آباد دي. او ډیر لوي لوي بزرګان پکښې تیر شوي دي. چه دوي کښې په خصوصیت سره د بهاولپور د اوچ. او ملتان. منټګمري ګیلاني سادات هم د حضرت سیدنا عبدالوهاب د نسل څخه دے. د دے نسل سادات په ټول مغربي پاکستان کښې هم خواره دي. او د پیښور. بنوں. وزیرستان سادات په خصوصیت سره د سید ناعبد الرزاق د نسل څخه دي.

او دے نسل سادات هم په قول مغربی پاکستان او افغانستان کښې خوار لاړ دی.
د لته دَیو مشاهیرو گیلانی او قادری بزرگانو نومونه لیکے شی.

(۱) شیخ داؤد کرمانی قادری:- دَ دوی مزار مبارک په موضع شیرگړه ضلع منټگمری کښې دَ ے.

(۲) سید شیر شاه قادری:- دَ دوی مزار مبارک دَ ملتان په خواؤشا کښې دے.

(۳) سید بهاول شیر گیلانی قادری:- دَ دوی مزار په موضع حجره شاه مقیم منټگمری کښې دَ ے.

(۴) سید محمد مقیم محکم الدین گیلانی:- دَ دوی مزار په موضع حجره شاه مقیم منټگمری کښې دے.

(۵) شیخ خیر محمد قادری:- دَ دوی مزار مبارک په موضع پنډی بهٹیان کښې دے.

(۶) سید میر قادری گیلانی:- دَ دوی مزار مبارک په موضع سید واله دوآبه دَ چناب منټگمری کښې دے.

(۷) سید احمد علی شاه قادری گیلانی:- چه دَ شیخ الهند په لقب یادید لو. دَ بغداد شریف نه ئے دَ شهنشاه عالمگیر په زمانه دے ملک ته تشریف راوړے دے. او په مقام دَ کوټله پیران ئے عبادت خانه جوړه کړه استوگنه ئے اختیار کړه. او دَ حق طالبانو ته ئے هدایت او ارشاد به ئے کولو. روستو دَ بندہ بیراگی برخلاف سره دَ خپلو مریدانو غزا له تلے وو. په مقام دَ بټالے شهید شو. مرایدانو ئے نعش مبارک دلته راوړلو. مزار ئے پرے جوړ کړلو. حضرت سید احمد علی شاه شهید دَ حضرت سیدنا عبد الرزاق ابن غوث الاعظم په اولاد کښې وو.

(۸) سید دلاور شاه دَ حضرت غوث پاک دَ فرزند ارجمند سیدنا عبد الرزاق په نزدے نمسو کښې دَ یو نمسی نوم سید محمود وو. چه په "تاج الدین شهزاده اصفهانی" لقب باندے مشهور وو. روستو دغه حضرت سید شهزاده

اصفهانی دَ افغانستان سمت جنوبی ته راغے. د لته آباد شو. چه نن ورځے مبارک مزارئے په "برمل" نومے علاقه کښں دے. او دَ دوی اولاد چه په کوم کلی کښے آباد دے هغے ته په خصوصیت سره، سادات پیرکوټی "وائی. د دے حضرت سید ناشهزاده اصفهانی په اولادکښں حضرت سید نادلاور شاه علیه الرحمة دَ اکبر باد شاه په زمانه کښں دَ شمالی وزیرستان "سپین وام" نومے علاقے ته راغے. دا مقام دَ میران شاه نه ۳۵ میله جنوب مشرق طرفته واقع دے. دَ "سپین وام" گیلانی عبد الرزاق سادات دَ ټول وزیرستان پیرخانه ده. حضرت سید مقتدا صاحب پکښں اوس اوس ډیر لوئ بزرګ تیر شوے دے.

علیهم الرحمة والغفران :-

---

# دَ غوث الاعظم ارشادات

دَ حضرت غوث الاعظم یو څو قیمتی اقوال او ارشادات دَ فائدے په خاطر دلته درج کړے شی. فرمائی :-

(۱) تاسو دَ خپل نفس دَ خواهشا تو په پوره کولو کښں لګیا یئ. او هغه ستاسو په برباد ولو کښں مصروف دے.

(۲) دَ بنیادم ناکاره بد عمله ملګرے په حقیقت کښں دَ هغه بد ترین دشمن دے.

(۳) مه دَ چا سره په محبت. مینه کولو کښں جلتی کوی. او مه دَ چا سره په عداوت او دشمنئ کولو کښں دَ تادئ نه کار اخلئ.

(۴) چه چادرنه تپوس نه وی کړے. بے ځایه کړ پیدل نه دی پکار.

(۵) څرنګ چه ستاسو نفس دَ خدائ دَ حکم منلو نه انکار کوی. دغه شان تاسو هم دَ خپل نفس دَ وینا او لمسون منلو نه انکار او کړئ.

(۶) ماله په هغه سړی تعجب راځی څوک چه په دے پوهه وی چه خدائ پاک

د دۀ په هر يو حال خبردار ده دے. او سره د دغے نه بيا هم دے گناه کوي. تعجب دے په هغه چاچه دا دُنيا فاني گنړي او بيا هم ورسره مينه ساتي.

(۷) خلق هغه چا ته لوئ سړے وائي. چه په هغه کښې تواضع وي. خاکپائي او عاجزي وي. تکبر کوونکي ته څوک لوئے سړے نه وائي.

(۸) دَ مؤمن سړي نښه دا ده چه هغه خپل اهل وعيال په الله باندِ سپاري. او منافقت سړے خپل مال دولت ته سپاري.

(۹) دنيا او مال دولت دَ زړۀ نه را او باسي په لاس کښې ئے اونيسئ. يعني مال او دولت گټئ. ليکن په لاس کښې ئے ساتي. او ديته ئے مه پرېږدئ چه دَ دنيا مينه ستاسو په زړۀ باندے قبضه اوکړي.

(۱۰) دَ حرامے روزئ نه ځان اوساته. ځکه چه دَ نيکو اعمالو جرړۀ هم دا ده.

(۱۱) اخلاص ديته وائي چه بندۀ هر کار دَ خدائي دَ رضا دَ پاره اوکړي. دَ خلقو دَ ښه يا بد ويئيلو خيال او پرواه او نه ساتي.

(۱۲) چاچه مخلوق ته مخ اوگرزاوۀ. پوهه شه چه هغه خدائي ته شا کړه.

(۱۳) دَ خدائي دَ مخلوق سره دَ محبت او مينے ساتلو معنئ دا ده چه ته دَ هغوئ خيرخواهي اوکړے.

(۱۴) دَ خلقو په نظر کښې خپل وقار قايم ساتل پکار دي. که خپله بېستمني او افلاس ورته څرگند کړے. نو دَ خلقو په نظر کښې به سپک راځې.

(۱۵) قول داسے دے لکه صورت. او عمل داسے دے لکه روح.

(۱۶) دَ مالدارو سره په وقار او هسکه غړئ روزگار ساته. او دَ فقيرانو سره په عاجزئ او انکسار!

(۱۷) څوک چه دَ بادشاهانو سره ناسته ولاړه ساتي. دَ هغه زړۀ سخت او مغرور کيږي. څوک چه دَ هلکانو سره کښيني پاسي. په هغه کښے دَ لهو او خندا عادتونه پيدا کيږي. څوک چه دَ زنانوُ په مجلس کښې ناست پاست وي. په هغه کښې جهالت

او نا کاره خواهشونه زياتيږي. څوک چه د بد عمله او فاسقانو سره نشست
او برخاست لري. هغه په ګناهونو کولو کښې زړه ورکيږي. او د توبې او ښکلو توفيق
يې نه نصيب کيږي. څوک چه د عالمانو سره کښيني پاسي هغه پرهيزګاره کيږي
او علم حاصلوي.

---

# حضرت
# سيد احمد سخي سرور سلطان رح
## سهروردي رح
(سنه ۵۷۷ ه)

# حضرت سیّد احمد سخی سرور سلطان سهروردی

علیه الرحمة

دَ حضرت سید نا امام جعفر صادق رضی الله عنه په اولاد کښ په نولسم پُشت کښ یو سیّد وو. چه دَ هغه سید زین العابدین نوم وو. دے په سنه ۵۲۰ھ کښ دَ بغداد شریف نه راروان شو. او دَ ملتان په خواؤ شا کښ په "شهر کوټ" نومے ځائ کښ ئے استوګنه اختیار کړه. دغلته دَ "کهوکهر" نومے قوم خلق آباد وو. دَ هغوئ یو مشر ملک وو. چه "پیر محمد" "المعروف" "پیرے" نوم ئے وو. هغه او لګیدَه خپله لور "عایشه بی بی" ئے حضرت سید زین العابدین ته په نکاح ورکړله. دَ هغه بی بی نه ئے څوئ پیدا شو. په هغه باندے احمد نوم کیښودلے شو. چه ئن ورځ

حضرت سید احمد سخی سرور سلطان سهروردی علیه الرحمة

په نامه باندِ مشهور دے. دَ دوئ دَ ولادت تاریخ سنه ۴۸۲ھ بیانولے شی.

په سنه ۵۰۵ھ کښ چه حضرت سیّد زین العابدین وفات شو. نو حضرت سیّد احمد علیه الرحمة دَ هغے نه یو کال پس په سنه ۵۰۶ھ کښ بغداد شریف ته لاړلو. او هلته ئے دینی علمونه حاصل کړل. او بیائے دَ درے مشهورو بزرګانو قدس سره

( الف ) حضرت غوث الاعظم دستګیر میران محی الدین شیخ عبد القادر جیلانی

( ب ) حضرت شیخ الشیوخ شهباز طریقت شهاب الدین سهروردی علیه الرحمة.

( ج ) او حضرت خواجه خواجګان شیخ مودود چشتی علیه الرحمة.

څخه فیض حاصل کړو. بیا چه دَ سنه ۵۵۲ھ په شاؤ خوا کښ دَ بغداد شریف نه ئے واپس دے وطن ته تشریف راوړلو. نو څه موده ئے دَ موجوده ضلع ګوجرانواله په موضع "دهونکل" کښ تیره کړه. بیائے "ملتان" ته تشریف یو ړلو. په هغه زمانه چه دَ ملتان څوک حاکم وو. هغه ورله خپله لور په نکاح ورکړله. څه زمانه پس ئے دویم واده هم او کړ. او دَ حضرت سیّد عبد الرزاق ملتانی لور بی بی ئے په نکاح کړله. بیا دَ ملتان نه راروان

شو۔ لاهور ته راغے. او دلته ئے دَ حضرت سید اسحاق لاهوری علیه الرحمة
نه علوم ظاهری حاصل کړل. بیا دَ لاهور نه. شاه کوټ "ته ئے تشریف یوړلو.
او دغلته ئے سکونت اختیار کړ۔

نن ورځے دَ دوئ مزار مبارک په موضع "نګاهه" ضلع ډیره غازیخان
کښی دے. او دَ مغربی پنجاب په ټولو زیارتونو کښی زیات مشهور زیارت
دے. دَ ټول پنجاب سابق سرحد. سابق سنده. سابق بلوچستان او ټولو
قبائیلی علاقو ټول مسلمانانو ورسره یو شان عقیدت لری. او دَ دوئ دَ
درګاه نه ټولو ته یو شان روحانی فیوضات رسیږی.

دَ پهګنړ او چیتر په میاشتو کښی زرګونه خلق روغ روغ قافلے دَ
سیالکوټ - ګوجرانواله - ګوجرات. منټګمری. ملتان - لاهور - راولپنډی
میانوالی. ډیره اسماعیل خان. پیښور. سنده او بلوچستان وغیره
نه دلته حاضریږی. او دَ بیساکهئ دَ میاشتے په اوله ورځ دلته یو عظیم الشانه
میله لګیږی. چه دَ "سخی سرور میله" ورته وائی. او دومره خلق پکښی راغونډ
شی. چه سړے دا خیال کوی چه روغ مغربی پاکستان یو ځاے ته راجمع شوے دے.

دَ پاکستان دَ جوړیدلو نه مخکښی دَ "سخی سرور میلے" او "کلیزے" (عرس) له
به دَ موجوده مشرقی پنجاب دَ جالندهر - هوشیارپور - او ګورداسپور نه هم
په خصوصیت سره ډیر زیات خلق راتلل. او قابل ذکر خبره پکښی دا ده
چه دَ حضرت سخی سرور درګاه ته به هندوان او سکهان هم په ډیر تعداد
کښی راتلل. روایت دے. چه دَ حضرت سخی سرور په مبارکو لاسونو چه څومره
زیات کافران او مشرکان مسلمانان شوی دی. دَ هغے اندازه لګول ګران دی.

دَ زمانے په لحاظ سره حضرت سید احمد سخی سرور سلطان دَ حضرت شیخ
الاسلام غوث العالم بهاء الدین ذکریا ملتانی. او دَ حضرت شیخ المشائخ
شیخ ابراهیم دانشمند ارمړ دواړو نه دَ مخکښی زمانے بزرګ دے، او مشر دے. او به

روحاني اعتبار سره حضرت سيد احمد سخي سرور يو۳ زيم مثال وو. چه دَ بغداد شريف نه دَ موجوده مغربي پاکستان علاقو ته رالېږلے شوے وه. او دا خلق دَ هغې په برکت دَ کفر. شرک. او ګمراهئ دَ تورو تيارو نه خلاص شوي وو. حضرت سخي سرور سلطان عليه الرحمة په ۵۷۷ھ کښې وفات شوے دے. عليه الرحمة والرضوان.

کرمونږ ۴ دَ حضرت سيد احمد سخي سرور سلطان. حضرت ابراهيم دانشمند ارمړ. او حضرت بهاء الدين ذکريا دَ وارو په ژوند باندے يو نظر واچوو. نو دَ سړي زړه او روح پرے تازه شي. په حقيقت کښې دَ اسلام يو داسے دين دے. چه د دے دين دعوت او پېغام دَ ټولے دُنيا دَ ټولو بنيادمو دَ پاره ايکي يوشان دے. دَ قام ملک. رنګ او نسل په کښې هيڅ فرق او تميز نشته دے. او هر هغه څوک چه په دين اسلام باندے ايمان راوړے. هغه ټول بيا يو رونړه وي. يو مذهبي وحدت ترينه جوړ شي. او دَ يو عالمګير

"روحاني تړون"

شکل اختيار کړي.

هو بهو هم په دغه شکل سره څمونږ. دَ مذهب اسلام دَ ټولونه لويو روحاني پيشوايانو ومشهورو بزرګانو يعني (۱) حضرت سيدنا شيخ ميران محي الدين عبد القادر جيلاني. سيدنا حضرت شيخ شهاب الدين سهروردي. سيدنا حضرت شيخ مودود چشتي عليهم الرحمة درے وارو په شريکه چه خپل دَ ګرمشهور خليفه ګان (۱) حضرت سخي سرور سلطان (۲) حضرت شيخ ابراهيم دانشمند (۳) او حضرت غوث العالم شيخ ذکريا عليه الرحمة. څمونږ دَ مغربي پاکستان علاقو ته رااوليږل نو درے وارو بزرګانو په دَرګاهونو کښې چه به کوم مسلمانان راغونډيدل. او فيض او برکت به ئے حاصلولو. يا غير مسلم خلق به راتلل او په ايمان به مشرف کيدل. نو په هغې کښې هيڅ دا سوال نه وو. چه دا په قام

خوک دی. دَکومے زمکے اوکومے علاقے دی ۔ اودَکوم ځای دی . بلکه دے بزرګانو مثال دَیوے داسے خوږے اوصفا چینے و ر. چه ټول عالم به پرے راپېنه وو ۔ اوهغه دَحضرت شیخ سعدی علیه الرحمة خبره :۔ ؎

هرکجا چشمه بود شیرین      مردم ومور ومار گرد آیند

اودا یو داسے روحانی برکت وو ۔ چه دَ مسلمانانو وجود ونه او جوسے که کنړے وے . بیلے بیلے وے ۔ لیکن روح ئے یو وو ۔ اوهم ددے روحانی یووالی په په برکت بانده ے څو نبزه مشرانو دَ اسلام شاندار خدمات کړی دی . اوکامیابی ئے حاصله کړے ده ۔ او نن ورځ پورے په دے علاقو کښ دَ اسلام روح باقی دے . او امید دے چه تر قیامته به باقی وی ۔

دا خبره داسے ده ۔ چه موږ ته دَ حضرت سید احمد سخی سرور سلطان مثال دے په ثبوت کښ پیش کولے شو ۔ که دوئ خاص خدمتګاران په شمار بانده ے درے کسان وو ۔ (۱) دَ یو کو هر نوم وو ۔ په قام بانده ے کلنهګ وو ۔ چه اولاد ئے کلنهګی بللے شی . (۲) دَ دوئیم حیرت نوم وو ۔ په قام بانده ے " لنګاه " وو چه اولاد ئے مېتهن بللے شی ۔ (۳) دَ دریئم نوم احمد خان وو ۔ په قام بانده ے پښتون وو ۔ چه اولاد ئے شیخان بللے شی .

او نن ورځ ددے درے واړه خدمتګارانو اولاد یو شان دَ حضرت سید احمد سخی سرور سلطانؒ دَ درګاه مجاوران دی .

او دَ حضرت سخی سرور یو بل کرامت ته به فکر اوکړو ۔ چه ددے درے واړو مجاورانو دَ اولاد او خاندان دَ خلقو مجموعی تعداد او شمیر دَ یو لس نیم (۱۳۵۰) سوه کسانو نه هیڅکله او په هیڅ وخت کښ نه زیاتیږی . یعنے په دے درے واړو خاندانونو کښ دَ هر یو خاندان دَ نارینه کسانو تعداد څلور نیم (۴۵۰) سوه وی . که په کوم یو خاندان کښ هر څومره ماشومان نارینه فرزندان پیدا شی . هم په هغه شمار او حساب بانده ے به دَ لوئ عمر نارینه فرزندان په حق رسیږی ۔

او زور په تعداد (۲۵۰) به پوره کیږی. په دے کښې د کلنهکی. لنګاه او پښتون هیڅ فرق نشته دے. یو بارګاه دے یو شان خله متکاران دی. او د ټولو یو حال دے. چنانچه داهغه د اسلام "روحانی تړون" دے. چه په دُنیا کښې د ګ مثال نشته دے او هم داهغه څیز دے چه مونږه ټول مسلمانان یے یو رونړه کړی یو۔

---

# حضرت اختیارالدین محمد بختیار خلجیؒ

(سنہ ۶۰۲ھ)

(مشرقی پاکستان)

# حضرت اختیار الدین محمد بختیار خلجی علیه الرحمة

په مشرقی پاکستان او بنګال دواړو حصو کښې د اسلام د تبلیغ او د مسلمانانو د راتللو او اقتدار حاصلولو په حقله څه کوم صحیح تاریخی معلومات په لاس راغلی دی. د هغې په رنړا کښې دا خبره ثبوت ته رسیدلې ده. چه هرکله په ۵۹۲ھ مطابق سنه ۱۱۹۷ء کښې حضرت اختیار الدین محمد بختیار خلجی علیه الرحمة په مشرقی پاکستان او مغربی بنګال (بهارت) باندې جهاد اوکړو - د دغه ملک هندو راجه "لکشمن سین" له ئې شکست ورکړو - د بنګال په دارالحکومت "ندیا" ئې قبضه اوکړه - او د اسلامی اقتدار او حکومت بنیاد ئې کیښودو. نو د بنګال په زمکه د اسلام بیرغ اودرول شو - چه په هغې د "الله اکبر" کلمه لیکلې وه.

د دغې نه روستو اسلام په ټول بنګال کښې خور شو - ځکه چه د حضرت بختیار خلجی سره. او د هغه د فتح نه روستو د هغه په زمانه کښې بیا وریسې په راتلونکې زمانه کښې د نورو مختلفو مسلمانانو حکمرانانو او سلطانانو په زمانه کښې بې شمیره عالمان او مشایخ دلته راغلی وو. او هغوئ د کلمه توحید لا اله الا الله محمد رسول الله سره د خلقو غوږونه اوزړونه آشنا کړل.

حضرت بختیار خلجی علیه الرحمة چه د بنګال د ټولو نه اولنی فاتح دے. د حضرت سلطان شهاب الدین محمد ابن سام غوریؒ نه روستو په قنوج کښې حکمران وو. او د دے نه مخکښې په ۵۸۷ھ سنه کښې ئې د دهلی د فتح په جهاد کښې حصه اخیستې وه. په دے اعتبار سره د حضرت معز الدین الملقب په شهاب الدین محمد ابن سام غوری علیه الرحمة په قیادت کښې د دهلی د فتح نه پنځه کاله پس د بنګال هیواد د مسلمانانو په لاس فتح شو - او د اسلام رنړا د یو مجاهد پښتون بختیار خلجی په لاسونو تر هغې هیواد ونو او رسیدله.

د حضرت بختیار خلجی علیه الرحمة نه روستو په دے زمکه باندې مخکښې او

پر له پسې اسلامي حکومتونه قائم شول. چه د دغه مسلمانانو بادشاهانو حکومتونو په زمانه کښې بنګال ته وخت په وخت د راغلو عالمانو صوفیانو. او مشايخو په برکت د اسلام رنړا د ے ملک په کوټ کوټ کښې خوره شوله. په هغه زمانه څرنګ چه په دکهن. ګجرات. او جونپور کښې طاقتور او مستقل اسلامي حکومتونه قايم شوي وو. په بنګال کښې هم دغه شان مضبوط اسلامي حکومتونه قايم شوي وو. او د اسلام د تبليغ او اشاعت د پاره باقاعده انتظامات شوي وو.

په بنګال باندے د مسلمانانو حکومت او اقتدار د سنه ۵۹۲ هـ مطابق سنه ۱۱۹۷ نه تر سنه ۱۱۷۷ هـ مطابق سنه ۱۷۶۴ پورے قايم وو. يعنې پوره پنځه سوه او شپېته (۵۶۷) کاله په ټول مشرقي پاکستان او بنګال (بهارت) باندے د اسلام او مسلمانانو اقتدار وو. په دغه مينځ کښې د سنه ۱۷۶۴ نه تر سنه ۱۹۴۷ پورے په دے ملک د انګريزانو اقتدار وو. او د سنه ۱۹۴۷ نه را په ديخوا د ے هيواد صرف په يو حصه مشرقي پاکستان (مشرقي بنګال) باندے يو ځل بيا د مسلمانانو اقتدار راغلے دے. مخکښې خدائ مالک دے. او که د هغه رضا شي. نو دا هيڅ ګرانه نه ده. چه د دغه ټول هيواد چه مسلمانانو پرے پنځه نيم سوه کاله حکومت کړے دے. يو ځل بيا د اسلام د بيرغ لاندے راشي.

د سنه ۵۸۸ هـ مطابق سنه ۱۱۹۲ نه روستو د هندوستان په مختلفو علاقو کښې چه د مسلمانانو کوم حکومتونه قايم شوي وو. په هغو ټولو کښې د دهلي د مرکزي حکومت قايم شوي وو. په هغو ټولو کښې د دهلي د مرکزي حکومت نه په دويم نمبر باندے د سلطنت د جغرافيائي حدودو د وسعت. د قيام د زمانے د زياتوالي او د اقتصادي مضبوط والي په اعتبار سره لوئ طاقتور حکومت هم د "بنګال اسلامي حکومت" وو. په هغه زمانه د بنګال په اسلامي حکومت کښې چه کوم علاقے شاملے وے. د هغے نومونه دا دي. موجوده مشرقي پاکستان (يعنے

مشرقي بنګال، مغربي بنګال - صوبه بهار - جنوبي آسام - تري پوره - او د صوبه اړیسه هغه ضلع چه د بنګال سره ئې پوله جنګیدله دلا. دا دومره لوی ملک چه د مسلمانانو په لاس د فتح کیدلو نه روستو" اسلامي ملک" کرځیدلے وو. په دے اعتبار چه دے هیواد مقامي غیرمسلم خلق په دین اسلام مشرف شول. دا یو داسے خدمت دے. چه بنیاد ئې حضرت بختیار خلجي کیښودلے وو. او ورپسے د هغه زمانے صوفیائی کرامو او روحاني پیشوایانو او مسلمانانو حکمرانو په شریک همت سره سرته رسولے وو. او د تاریخ په پاڼو د سر وزرو په اوبو د لیکلو حق لري. ځکه چه مشران بزرګان د بنګال د فتح کیدلو نه روستو د بنګال ګوټ ګوټ ته اورسیدل. په ځان ئې تکلیفونه تیر کړل. او د اسلام تبلیغ ئې او کړو او د خدائے پاک هغه مخلوق چه د کفر او شرک په تیاره کښې پراته وو. هغوی ته ئې د اسلام رڼړا بنکاره کړله. د اسلامي رورولۍ او مساوات په نعمت ئې سرفرازه کړل. او په دے خاوره کښې یو عظیم الشان روحاني تړون په وجود کښې راغے.

د پاک او هند په دغه پورتنو علاقو کښې چه په هغه زمانه د بنګال د اسلامي حکومت په حدودو کښې داخلے وے. د اسلام د رڼړا خوره ولو د پاره چه کوم تبلیغي مهم چلولے شوے وو. د هغے بنیاد کیښودونکے حضرت اختیارالدین بختیار خلجي علیه الرحمة وو. بڅپله دوئ او د دوئ نه روستو د بنګال نورو سلطانانو او بادشاهو په دغه تبلیغي مهم کښې په دے جوړ حصه اخستے وه. چه عالمانو. بزرګانو صوفیانو او مشائخو به د اسلام تبلیغ کولو. او د مسلمانانو بادشاهانو به د هغوئ حوصله افزائي کوله. مدرسے جماعتونه. خانقاهونه او د بزرګانو درګاهونه به ئې جوړول. آباد د کول. د هغے ساتنه او پالنه به ئې کوله. او په ډیره فیاضئ سره به ئې د هغے د اخراجاتو پوره کولو د پاره جاګیرونه او اوقاف مقرر کول. او د عالمانو او مشائخو د ګذارے د پاره به ئې په خصوصیت سره جاګیرونه او وظیفے مقرر کولے. او په دے شان به

یې د اسلام خدمت کولو. د بنګال د مسلمانانو بادشاهانو د حوصله افزايۍ
په وجه د هندوستان د مختلفو علاقو نه بې شمیره بزرګان. عالمان او مشاهیر
اولیاء الله بنګال ته په کډه لاړل. اکثر په کښې هلته په کلکه استوګن شول.

د بنګال دغه اولنی مسلمان فاتح او حکمران حضرت اختیار الدین
بختیار خلجی په بنګال کښې صرف لس کاله حکومت کړے دے. په دے دومره لږه
موده کښې سره د دے نه چه د هغه زیات وخت په غزاګانو کښې او د ملک په
انتظامی معاملاتو سمولو کښې تیر شوی وو. بیا هم چه هر څومره علاقې یې فتح
کړے وے. په هغې کښې یې جماعتونه. مدرسې او خانقاهونه جوړ کړي وو. او د
عالمانو او بزرګانو د پاره یې د اسلام د تبلیغ اسانتیاګانې پیدا کړے وے. او
پخپله یې هم د اسلام د تبلیغ فریضه ادا کړے وه. چنانچه د کوچ نومې قبیلې
یو قبائیلی سردار دده په لاس باندے اسلام قبول کړے وو. چه د هغه
اسلامی نوم "علی میچ" وو. دغې قبائیلی سردار د مسلمانیدو نه روستو
د اسلام ډیر خدمت کړے وو. او غزاګانې یې کړے وے. د نیفا او تبت په غزاګانو
کښې د حضرت بختیار خلجی رهنمائي هم دغه علی میچ علیه الرحمة کړے وه. او د ده
په همت او برکت مسلمانانو غازیانو ته فتح حاصله شوے وه.

حضرت اختیار الدین بختیار خلجی علیه الرحمة یو کتاب لیکلے دے. چه د
هغې نوم دے "عجائب الاسفار" په دے کتاب کښې یې د هغې ټولو بزرګانو او عالمانو
کارنامې او دینی تبلیغی او مجاهدانه کوششونه په تفصیل سره بیان کړي دي.
چه د ده په زمانه کښې یې د اسلام د اشاعت د پاره کړي وو. بختیار خلجی په دغه
کتاب کښې لیکلي چه یو نیم سو (۱۵۰) ګدۍ. آستانې. خانقاهونه او مدرسې
تر دے وخته پورے (یعنې هم د ده د حکومت په زمانه کښې په بنګال کښې قائمې شوې
دي. چه خلق د خدای حق دین اسلام ته رابلي. او په اسلام یې مشرف
کوي. په څلور کاله مختصره زمانه کښې په شمار یو نیم سو د اسلام د تبلیغ

او اشاعت ادارے۔ مدرسے۔ او خانقاهونه قائم کیدل دا د بنګال د دے اولنی فاتح حضرت اختیار الدین بختیار خلجی علیه الرحمة یوه داسے کارنامه دۀ. چه تر څو د بنګال په خاوره د اسلام نوم ژوندے وی. نو هیریدلے نه شی. دا نامور غازی سلطان په سنه ۶۰۲ھ کښے وفات شوے دۀ.

د حضرت اختیار الدین بختیار خلجی علیه الرحمة په زمانه کښں چه مشرقی پاکستان او بنګال ته کوم مشاهیر عالمان او بزرګان راغلی وو. په هغوئ کښں د دوؤ بزرګانو نومونه خاص طور سره یادیږی. چه یو بزرګ نوم دے.

## حضرت مخدوم شاه محمد غزنوی المعروف راهی پیر علیه الرحمة

حضرت مخدوم شاه محمد غزنوی د حضرت سید مبارک غزنوی علیه الرحمة د خاندان څخه وو. د دهلی په جهاد کښں شامل وو. د هغه نه روستو په سنه ۵۹۶ھ مطابق سنه ۱۲۰۰ء د بنګال منګل کوټ نومے علاقے ته راغے. دلته ئے د اسلام تبلیغ شروع وکړه. او بیا هم دلته وفات شو. د منګل کوټ په "پیروټ" نومے مقام کښں په یوه اوچته ډهیرئ بانددے د دوئ مزار مبارک واقع دے. چه د "شاه غازی" په درګاه باندے مشهور دے.

## (۲) حضرت خواجه عبدالله کرمانی علیه الرحمة :-

دویم بزرګ نوم دے حضرت خواجه عبدالله کرمانی علیه الرحمة. چه د خواجه خواجګان خواجه معین الدین حسن چشتی اجمیری علیه الرحمة خلیفه او ماذون وو. بنګال ته ئے تشریف راوړے وو. او د موجوده مغربی بنګال د "بهوم" نومے علاقه کښں استوګن شوے وو. د اسلام تبلیغ ئے کولو او هم دغلته په سنه ۶۴۵ھ مطابق سنه ۱۲۳۶ء کښں وفات شوے وو.

د حضرت بختیار خلجی علیه الرحمة نه روستو د بنګال ټولو پښتنو سلطانانو د جهاد و نوا و غزاګانو کولو۔ او د اسلام د تبلیغ کولو فریضه په ښه شان

سره اداکړې ده. او د عالمانو او مشایخو د قدردانۍ. سرپرستۍ او همکارۍ کومه تاده چه حضرت بختیار خلجي ایښې ده. هغه ځ په ښه طریقه سره سرته رسولې ده. چنانچه په دې تاریخ ګواه دے. څنګه چې سلطان د وفات نه روستو چه کوم یو نوے سلطان راغلې ده او بادشاه شوے دے. هغه هم د سلطان بختیار خلجي په هغه زړه طریقه یاندې د خپلې خپلې زمانې د عالمانو او مشاهیرو بزرګانو سره د دین اسلام په تبلیغ کښې پوره پوره حصه اخستې وه. د دې نامور دے نامور و مشاهیرو د زرینو دیني کارنامونه د خبریدلو په خاطر د لته یوه مختصره تاریخي جائزه او تذکره پیش کول مناسب معلومیږي. چه د بنګال په خاوره څومره کومو مشرانو د اسلام خدمت کړے دے او د حضرت بختیار خلجي علیه الرحمة نه روستو څه کم شپږ سوه کاله ئې د اسلام د غه مشعل روښانه ساتلې وو. چه د هغوئ یاد تازه شي. او د هغوئ په مجاهدانه کارنامو ملاحظه کولو څومره په زړونو او روح کښې حرارت او جذبه پیدا شي. او د خدائ نه توفیق او غواړو چه مونږ هم د دغه خپلو مشاهیرو بزرګانو په شان د اسلام خدمت او کړے شو. چنانچه په دے سلسله کښې د

# حضرت سلطان غیاث الدین عوض خلجي علیه الرحمة

نوم ډیاد ولو دے. د امسلمان بادشاه د صحیح اسلامي جذبې خاوند وو. د اسلامي وحدت او د اسلامي روحاني تړون د قایم ساتلو او مضبوطولو د پاره ئې ډیر شاندار ے کارنامے سرته رسولې دي. چه په هغې کښې د دله د وله زرینې کارنامې د تاریخ په پاڼو ویادګار پاتې دي. (۱) یو دا چه د خپلې زمانې د بغداد د خلیفة المسلمین سره ئې تعلق قایم کړلو. او خپل حکومت ئې د اسلام د مرکزي حکومت او خلافت بغداد یوه صوبه اوګرځوله پخپل ټول حکومت کښې ئې د بغداد د خلیفة المسلمین په نوم د خطبې و ئیلو حکم و کړ. او سکه او ضرب هر څه ئې

دَ خلیفة المسلمین په نوم کړل. (۲) بله دا چه دَ فیروزه کوه یوسیّد زاده حضرت سید جمال الدین ابن سیّد جمال الدین له ئې پیرا نعامونه او بخشنونه ورکړي وو. خاص په دے خبره باندے چه دغه سیّدزاده دَ حضرت سیدالشهداء امام حسین رضی الله عنه په مدح او منقبت کښې یوه ډیره ښکلے قصیده وئیلے وه. په دے کښې دَ عبرت خبره دا ده چه عام طور بادشاهان هغه چاله انعام ورکوی. چه هغه دَ بادشاه مدح کښې قصیده وائي. او حضرت غیاث الدین عوض خلجی علیه الرحمة هغه چاله انعام ورکړ چه هغه دَ حضرت رسول مقبول صلی الله علیه وسلم دَ نمسی په مدح کښې قصیده وئیلے وه. دَ دے نه دَ دے مسلمان بادشاه دَ اسلام سره مینه او محبت معلومیدے شي. علیه الرحمة و الغفران.

## حضرت علی مردان خلجی علیه الرحمة

دَ حضرت علی مردان خلجی علیه الرحمة په زمانه کښې دَ اسلام دَ تبلیغ کوم خدمتونه شوی دی او دَ ده په زمانه کښې چه دَ بنګال په خاوره کوم مشاهیر عالمان او بزرګان موجود وو. په هغوئ کښې دَ

## حضرت شیخ رکن الدین سمرقندی علیه الرحمة

دَ یاد ولو دے. دَ بنګال په مشاهیر و عالمانو او بزرګانو کښې حضرت شیخ رکن الدین سمرقندی علیه الرحمة دَ ډیرے لوئې مرتبے خاوند وو. دے دَ حضرت علی مردان خلجی علیه الرحمة په زمانه کښې دَ سلطنت بنګال دَ مرکزی دارالحکومت "ندیا" قاضی وو. او دَ عربۍ. فارسۍ. بنګالی ژبونه علاوه دَ نورو کښې و ژبو فاضل عالم هم وو. ده یو کتاب لیکلے دے. چه دَ هغې نوم دے "حوض الحیاة" دا کتاب په اصل کښې دَ پنډت "بهوج برهمن" تالیف دے. چه په سنسکرت ژبه کښې ئې لیکلے وو. او امرکنډ نوم ئې پرے ایښے وو. چه حضرت شیخ رکن الدین هم دغه دَ

پنډت بهوج کتاب اول په عربۍ ژبه او بیا په فارسۍ ژبه کښې ترجمه کړې
وو - او "حوض الحیاة" نوم ئې پرې ایښے وو - پنډت بهوج برهمن د کامروپ
(آسام) او سیدونکے وو - د علمی مناظرے او بحث د پاره په حضرت قاضی شیخ رکن
الدین پسے "ندیا" ته راغلے وو - د "ندیا" په جامع مسجد کښې ئې سره مناظره
او بحثونه او کړل ، په دغے کښې په بهوج برهمن باندې د حضرت شیخ رکن الدین
د بحث د ومره اثر شو - چه هم هغه وخت مسلمان شو - او د هغه په مریدانو
کښې شامل شو - علیهم الرحمة والغفران -

## حضرت سلطان غیاث الدین ارطغرل علیه الرحمة

حضرت سلطان غیاث الدین ارطغرل علیه الرحمة د بنګال
په مسلمانانو بادشاهانو کښې یو نامور حکمران تیر شوے دے - چه په
ګوړ - لکهنوتی کښې د دۀ دارالحکومت وو - د دۀ په زمانه کښې په ګوړ کښې د قلندریه
سلسلے د مشائخو او صوفیانو مرکز وو - او پخپله دے هم د طریقت د دغے سلسلے
معتقد وو -

# حضرت شیخ سیّد امیر کبیر مدنی (سندھی)

په برصغیر پاک او هند کښې د اسلام شمع د دین بزرګانو روښانه کړې ده. او د دے عظیم ملک په کوټ کوټ کښې د حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم تعلیمات فقراء او مشائخو خوارۀ کړی دی. چنانچه په دوه اعتبارونو سره د دے زمکے په دوه بیلو بیلو علاقو کښې اسلام د ټولو نه اول سنو رشوے دے.

الف: په تبلیغی طریقه سره د ټولو نه اول چه په کومه علاقه کښې اسلام خور شوے دے. هغه د جنوبی هند د دکهن علاقه ده. چه د مالابار په ساحلی علاقو کښې د برصغیر د ټولو نه اولنی جماعت جوړ شو. او په هغې کښې دا آواز پورته کړے شو چه:-

لا اله الا الله محمد رسول الله

ب: او په سیاسی او اجتماعی طریقه سره د ټولو نه اول چه په کومه علاقه کښې اسلام خور شوے دے. هغه د "وادئ مهران" (سندھ) علاقه ده. چه په دے زمکه باندے د اسلام سیاسی او روحانی بیرغ اودرولے شو. او د دے ملک په کوټ کوټ کښې د کلمهٔ توحید او نعرهٔ تکبیر

"الله اکبر"

آوازه خوره شوه. محمد ابن قاسم په سنه ۹۲ھ کښې د سندھ علاقے ته راننوتلے دے. دغه د اسلام اولنی صدۍ وه. د دغے نه روستو اتوله علاقه د انګریزانو د حکومت د راتللو نه زمانے پورے څه د پاسه یوولس سوه کاله د مسلمانانو بادشاهانو په حکومت کښې پاتے شوے ده. خواه که هغه مسلمانان بادشاهان به په مقامی طور سره خود مختار وو. او که د نورو لویو لویو مسلمانانو بادشاهانو ما تحت به وو.

په دا سے حالاتو کښې د محمد ابن قاسم د زمانے نه روستو په زرګونو زرګونو عالمان، مشایخ او سادات دے زمکے ته راغلی دی. او د اسلام د زرینو اصولو

په برابرئ ئے د دے ملک دَ عامو مسلمانانو روحانی تربیت کړے دے۔ او د دے ملک دَ مسلمانانو تعلق ئے دَ اسلام په مقدسه رشته باندے دَ ټول عالم اسلام دَ مسلمانانو سره را وستلے دے۔ او دَ یو عظیم الشان "اسلامی وحدت" په شکل ئے دغه اسلامی "روحانی تړون" قائم کړے دے۔ او مضبوط کړے دَے۔

د دے زمکے په پخوانی تاریخ کښې ډیر داسے نامور ادیبان۔ عالمان مشائخ او اولیاء الله تیر شوی دی۔ چه په عراق او عرب دواړو کښې ئے ډیر لوئ نوم او شهرت لرلو۔ دغه دَ لوئ نوم او شهرت او روحانی فیض لرونکی مشاهیر دَ سنده دَ تاریخی ښهرونو ټهټه۔ بهکر۔ سیوستان۔ اربیله نه پوره شوی وو۔ هم دغه شان دَ دنیائے اسلام دَ روحانی مرکزونو لکه ملتان۔ سرهند۔ لاهور۔ پیښور او غزنی نه لوئ لوئ روحانی مشاهیر وخت په وخت د دے زمکے ته راغلی دی۔ او دَ هغوئ په راتللو په دے ملک کښې دَ اسلام رسڼا نوره هم خوره شوے ده۔ او دَ مسلمانانو ترمنځه دغه روحانی تړون نور هم مضبوط شوے دے۔ چه په دے کښې دَ حضرت شیخ سید امیر کبیر قطب الدین مدنی سندهی علیه الرحمة نوم مبارک دَ یاد ولو دے۔

حضرت سید امیر کبیر په نسب باندے حسنی او حسینی سید وو۔ او دَ حضرت امیر کبیر، پیرانو پیر، غوث الاعظم دستگیر شیخ محی الدین عبد القادر جیلانی قدس سره العزیز دَ خور ځوئ یعنے خوریے وو۔ دوئ ابتدائی تعلیم دَ خپل ماما حضرت محبوب سبحانی۔ غوث صمدانی، پیر دستگیر قدس سره نه حاصل کړے وو۔ او دَ هغے نه پس ئے دَ حضرت شیخ نجم الدین علیه الرحمة نه په قادریه طریقه کښې بیعت کړے وو۔

حضرت غوث الاعظم قدس سره چه په سنه ۴۷۱ھ (۴۷۰) کښې پیدا شوے وو۔ او په سنه ۵۶۱ھ (۵۶۲) کښې وفات شوے دے۔ د دغے نه دَ حضرت امیر کبیر قطب الدین دَ زمانے اندازه لګیدے شی۔ دَ شپږم صدئ دَ (سنه ۶۰۰ھ)

په مېنځنۍ حصه کښې دوی مدینې منورې ته لاړل. هلته ورته د حضور پُر نور
رسول مقبول صلی الله علیه وسلم د طرف نه په روحانی طریقه سره هدایت
اوفرمائیلے شو. د اسلام د تبلیغ دپاره هندوستان ته لاړشو. چنانچه دوئ
حضور خواجهٔ کون و مکان نبی آخر الزمان د ارشاد مطابق په سنه ٦٠٠ھ کښې د
دولس مریدانو سره "وادئ مهران" (سندھ) ته تشریف راوړلو. او دلته ئې
د سلسلہ عالیه قادریه فیوضات خوارهٔ کړل. او د دے ځاي نه بیا دهلی اوکړه
مانکپور ته ئې تشریف یوړلو.

د وادي سندھ په زمکه د سلسله عالیه قادریه اولنی روحانی
رهنما هم دغه امیر کبیر دے. چه دلته راغلی دے. د دے نه روستو چه
د دے سلسلے کوم مشاهیر بزرګان دلته راغلی دی. په هغوئ کښې
ډیر لوئ نامور او مشهور بزرګ حضرت لعل شهباز قلندر
علیه الرحمة دے. چه د
هغه ذکر به روستو
راشی:

علیهم
الرحمة
و
الغفران



# حضرت شیخ المشائخ شیخ شهاب الدین سهروردی

سنه ۶۳۲ھ

لکه چه مخکښې هم ورته اشاره شوې ده. د پاکستان په مغربی او مشرقی دواړو حصو کښې د روحانیت او معرفت څلور طریقې او سلسلې زیاتې مشهورې دی.

(الف) قادریه طریقه :- چه د حضرت غوث الاعظم میران محی الدین شیخ عبدالقادر جیلانی قدس سره نه شروع شوې ده.

(ب) چشتیه طریقه :- چه د حضرت مودود چشتی نه شروع شوې ده.

(ج) سهروردیه طریقه :- چه د حضرت شیخ شهاب الدین سهروردی نه شروع شوې ده.

د دے درے واړو سلسلو د مشاهیر بزرگان په یو وخت او یوه زمانه کښې په بغداد کښې اوسیدل. او د هغه ځای نه د دے هرې یوې سلسلې مشاهیر بزرگان څمونږ دے ملک ته د اسلام د تبلیغ د پاره راغلی دی.

(د) نقشبندیه طریقه :- چه د حضرت خواجه بهاؤالدین نقشبند نه شروع شوې ده. دغه حضرت شاه نقشبند په بخارا کښې اوسیده. او د هغه ځائ نه د معرفت او حقیقت د انوار و رڼا څمونږ دے ملک ته خوره شوې ده.

---

هر کله چه څمونږ په دے ملک کښې د سلسله عالیه سهروردیه بے شمیره مشاهیر بزرگان تیر شوی دی. چه هغوئ هر یو په خپل خپل وخت د دین اسلام ډیر لوئ خدمتونه کړی دی. او څمونږ دا ملک د هغوئ په روحانی انوارو تر ننه ورځې پورې روښانه دے. او د هغوئ د مبارکو تعلیماتو او مجاهدانه کارنامو په برکت چه د دے زمکې د مسلمانانو ترمینځه کوم "روحانی تړون" قائم شوې دے هغه لا هغه شان قائم دے. په دې وجه د حضرت شیخ شهاب الدین سهروردی

په حقله مختصره تذکره د لته درج کوُلے شی۔

روایت دے۔ چه په بغداد شریف کښې یو نیک سړے وو۔ دَ هغه شیخ محمد عمر ابن عبد الله نوم وو۔ د غه شیخ محمد عمر یوه ورځ دَ غوث الاعظم میران محی الدین شیخ عبد القادر جیلانی قدس سرهٔ په خدمت کښې حاضر شو عرض ئے اوکړو چه نارینه اولاد نه لرم۔ د عا راته اوکړئ۔ حضور غوث پاک ورته د عا اوفرمائیله۔ او دائے هم اوفرمائیل چه خدائے پاک څوئے درکړی نو په هغه باندے شیخ شهاب الدین عمر نوم کیږدئ۔ هغه به څمارو۔ بنی څوی او متبنّی وی۔ چه یر لوئے ژوند به خدائے پاک ورکړی۔ اوَ هغه مریدان به ډیر لویو لو یو درجو خاوندان وی۔ چنانچه حضرت غوث الاعظم شاه جیلانی رضی الله عنه او دعا خدائے پاک ته قبوله شوه۔ شیخ شهاب الدین ته دومره اوچته مرتبه حاصله شوه۔ چه دَ هغه په مشهورو مریدانو کښې دَ حضرت شیخ مصلح الدین سعدی شیرازی علیه الرحمة او دَ حضرت قاضی حمید الدین ناګوری علیه الرحمة په شان لوئے لوئے بزرګان پیدا شول۔ حضرت شیخ الشیوخ محمد شهاب الدین سهروردی په پنځم یا پنځلسم تاریخ دَ رجب المرجب ۵۳۸ه سنه پیدا شوے وو۔ اوَ نهٔ لونوی کالو په عمر کښې په یکم محرم الحرام سنه ۶۳۲ه کښې وفات شوے دے علیه الرحمة والغفران:۔

په پاکستان کښې دَ سلسله عالیه سهروردیه چه کوم مشاهیر بزرګان دی۔ نو هغه یا خو هغه دی۔ چه براه راست دَ حضرت شیخ الاسلام والمسلمین شهاب الدین سهروردی خلیفه ګان دی لکه:۔

(الف) په مشرقی پاکستان کښې۔ حضرت شیخ قاضی حمید الدین ناګوری رح
(ب) او په مغربی پاکستان کښې۔ (۱) حضرت شیخ الاسلام ابراهیم دانشمند رحمه دَ وزیرستان (مزار مبارک ئے په ډهاکه مشرقی پاکستان کښې دے)
(۲) حضرت شیخ الاسلام غوث العالم بهاء الدین ذکریا ملتانی۔

(۳) حضرت شیخ الاسلام خواجه فرید الدین گنج شکر دَ پاک پټن۔

یا هغه بزرګان دی۔ چه د دے سلسله عالیه سهروردیه روښانه ستوری دی۔ او ځمونږ داوطن پرے روښانه دے۔ لکه۔

(۱) حضرت شیخ نورالدین ولی کشمیری چه دَ میر محمد ابن میر علی همدانی مرید وو۔ او په سنه ۸۴۲ھ کښې وفات شوے دے۔ مزار مبارک ئے په کشمیر کښې دے۔

(۲) حضرت شیخ عبد الجلیل "قطب عالم" چوهڑ قریشی سهروردی۔ متوفی سنه ۹۱۰ھ چه مزار مبارک ئے په لاهور کښې دَ حضرت شیخ موسیٰ سهروردیؒ مزار سره نزدے واقع دے۔

(یادګیرنه :-) دَ حضرت سلطان بهلول لودهی یوه لور بی بی په دے شیخ عبد الجلیل علیه الرحمة بانړ واده ده۔ اولاد ئے دَ لاهور سره نزدے په "رتّه" نوے ځای کښې اوس هم موجود دے۔ قریشی، هاشمی خاندان دے۔

(دَ حوالے دَ پاره ملاحظه کړی تاریخ مخزن پنجاب جلد ۵ صفحه ۵۲۳)

(۳) حضرت شیخ موسیٰ سهروردی۔ چه مزار مبارک ئے دَ لاهور ښهر په قلعه ګوجر سنګه کښے دے۔ او دَ شین رنګ ګنبد پرے جوړ دے۔ متوفی سنه ۹۲۵ھ دے۔

---

(۴) حضرت شیخ الاسلام سیدنا شیخ رحمکار کاکا صاحب علیه الرحمة متوفی سنه ۱۰۶۳ھ چه مزار مبارک ئے په ضلع پیښور تحصیل نوښهر کښې دے او روستو په دے سلسله عالیه سهروردیه کښې دَ دوی چه څومره خلیفګان تیر شوی دی دَ هغې بحث به روستو راشی۔ علیهم الرحمة والغفران۔

# حضرت شیخ المشائخ

# سیّدنا قطب العارفین معین الحق والملۃ والدین

# حسن سنجری چشتی اجمیری

علیہ الرحمۃ والغفران

سنہ ۶۳۳ھ

# حضرت شیخ المشایخ سید نا قطب العارفین معین الحق والملۃ والدین

# حسن سنجری چشتی اجمیری علیہ الرحمۃ والغفران

حضرت خواجه بزرګ، خواجه خواجګان معین الحق والملة والدین حسن سنجری، چشتی اجمیری علیہ الرحمۃ والغفران د دنیائے اسلام په لويونا مورو اوليا ؤ کښ هغه لوئ، ممتاز ترين اونامور ترين ولی ګڼلې شي دے. چه د هغوئ په ذات مبارک به زمانه د هميش هميش د پاره فخر کوی. دوئ ته په دے اعتبار سره يو امتيازی شان حاصل دے. چه په کفرستان د هند کښے د اسلام رڼرا په لويه پيمانه سره د دوئ د نيکو کوششونو په ذريعه او برکت سره خوره شوے ده. تاريخ ګواه دے. چه اجمير شريف ته د حضور غريب نواز په تشريف راوړلو. او دلته د قيام فرمائيلو په برکت د هندوستان ګوټ ګوټ کښ د توحيد او تکبير نعره اوچته شوه. او به دے برصغير کښ د يو داسے شاندار اسلامی حکومت بنياد مضبوط او محکم شو. او استقلال ورته حاصل شو. چه د داسے حکومت مثال په تاريخ کښ نشي پيدا کيدے. او په حقيقت کښ هم دغه د خواجه بزرګ لويه کارنامه ده. او هم دغه د دوی لوئ تعريف دے. خدائے دے د دوی درجے نورے هم بلند کړی.

## يوه تاريخی جائزه:-

د حضرت خواجه بزرګ علیه الرحمة د مبارک ژوند او برصغير پاک و هند ته د دوئ د راتللو په سلسله کښ د مختلفو تذکرو د بيانونو يو تاريخی جائزه اخيستل مناسب ګڼړو. برصغير پاک او هند ته د حضرت خواجه بزرګ د راتلل. د هغے روحانی پس منظر. او د هغے د ريپا او ژوندی

اثرات ځان له یو مستقل تاریخ دے ۔ البته چه څرنګ د دے حق دے هغه شان بحث پرے نه دے شوے ۔ او دلته که پوره په تفصیل سره دا بحث تر سره نه کړے شو ۔ اشاره کول ورته ضرور ګڼړم ۔

ظاهره ده ۔ چه د پاکستان د قیام نه پس د حضرت خواجه بزرګ مزار پرانوار د بهارت په جغرافیائی علاقه کښں واقع دے ۔ او ځمونږ دا کتاب "روحانی تړون" د "اولیائے پاکستان" ده ۔ لیکن هر کله چه په مغربی او مشرقی پاکستان دواړو حصو کښں اکثر مشاهیر اولیاء الله هغه دی چه هغوئ د حضرت خواجه بزرګ د روحانی او عرفانی فیوضاتو د سر چشمے نه فیض یاب شوی دی ۔ او ځمونږ دا اسلامی مملکت پاکستان هم په حقیقت کښں د حضرت خواجه بزرګ د روحانی فیوضاتو یوه مبارکه نتیجه ده ۔ او هیڅ یو تاریخ د خپل ماضی نه مستغنی کیدلے نشی ۔ په دے وجه دا ضروری ده ۔ چه د هغه روحانی او عرفانی حرکت او جد وجهد نه واقفیت حاصل کړو چه د هغے سرخیل او میر کاروان حضرت خواجه بزرګ علیه الرحمة وو ۔ او د هغے په برکت په برصغیر پاک او هند کښں د پاکستان په نوم یو اسلامی حکومت جوړ شو ۔ او د بهارت په زمکه هم ځلور ځلور بیم کروړه د کلمه توحید لا اله الا الله محمد رسول الله ویونکی موجود دی ۔ او ورسره ورسره دا هم واضح شی ۔ چه په دے ټول اسلامی جد وجهد کښے د حضرت خواجه بزرګ علیه الرحمة کردار او مقام څه وو ۔ په خصوصیت سره اجمیر شریف ته د دوئ تشریف راوړل څه خیز ته اشاره کوی ؟ که مونږ په دغه راز ځان پوهه کړو ۔ نو دومره به او وایو چه کیدے شی چه اجمیر به شاؤخوا کښں یو ځل بیا نعره تکبیر واوریدلے شی ۔ وَمَا ذَالِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيْزٍ ۔ (خدای پاک نه دا ګران نه دی) یو حدیث شریف دے ۔ مَنْ رَاٰى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهٖ اَوْ بِلِسَانِهٖ فَاِنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَلْيُنْكِرْهُ فِيْ قَلْبِهٖ وَ ذَالِكَ اَضْعَفُ الْاِيْمَانِ ۔ (اوکماقال رسول الله صلعم)

دا دے حدیث شریف معنی دا اخیستے شویدہ۔ چہ دَ یو منکر او نا کارہ کار دَ لاس او طاقت پہ ذریعہ برابر ول دَ اسلامی حکومت کار دے چہ جہاد او غزا ورپسے اوکړی۔ دَ کفر او شرک نہ زیات بل نا کارہ کار څہ کیدے شی۔ حمو بزرګانو چہ جہاد و نہ کړی دی۔ دَ کالونو کالونو مزلونہ ئے پہ لرے لرے ملکونو کښں دَ شہادت درجہ حاصلہ کړے دہ۔ هغہ دا دے دَ پارہ چہ دَ کفر او شرک تیارہ دَ اسلام پہ رنړا بدلہ کړے شی۔ دَ کفر او شرک پہ تیارہ جغرافیائی حدود کښں دَ اسلام بیرغ اودرول دَ مسلمانانو حکمرانانو او غازیانو کار دے۔ او بیا دَ جہاد نہ روستو پہ دویمہ مرحلہ کښں دَ ځلے پہ ذریعہ دَ وعظ او تبلیغ پہ شکل سرہ دا فرض ادا کول او دَ غیر مسلمو خلقو زړونہ او روح دَ ایمان پہ رنړا روښانہ کول پہ خصوصیت سرہ دَ علماء اسلام او مشائخو او بزرګانو کار دے۔ او دا اینکارہ خبرہ دہ۔ چہ پہ کفرستان دَ هند کښں کہ دَ اسلام بیرغ حمو بزر مسلمانانو غازیانو بادشاهانو او درولے دے۔ لکہ محمد ابن قاسمؒ۔ سلطان محمود غزنوی۔ او شهاب الدین الملقب پہ معز الدین محمد ابن سام غوری شول۔ نو دغہ شان دَ زبے او تبلیغ پہ ذریعہ دَ اسلام پہ علماؤ مشائخو کښں پہ مخکښں دور کښں حضرت داتا گنج بخش علی هجویریؒ۔ شیخ شاہ دولہ دریائی۔ (گجرات کاٹھیاواړ) او حضرت خواجہ معین الدین حسن اجمیری علیهم الرحمۃ والغفران دغہ فرض ادا کړے دے۔ دَ حضرت محمد ابن قاسم علیہ الرحمۃ دَ زمانے (سنہ ۹۲ھ) نہ را واخلہ ترننہ ورځے (سنہ ۱۳۸۳ھ) پورے پہ دے دولس سوہ کالو کښں پہ برصغیر پاک و هند کښں پہ زرګونو زرګونو مسلمانان حکمرانان لوئی واړہ تیر شوی دی۔ چہ هغوئی هر یو تر خپل وس او طاقت دَ اسلام دَ سرلوړئ دَ پارہ جہاد و نہ او غزاگانے کړی دی۔ دغہ شان پہ زرګونو او لکھونو علماء او مشائخ هم تیر شوی دی۔ چہ هغوئی هم پہ جہاد کښں حصہ اخیستی دہ او هم ئے دَ خپل علمی۔ روحانی او عرفانی تبلیغ

په ذریعه اسلام خور کړے دے. په برصغیر پاک وهند کښې اسلام په
تدریجی طریقه سره خور شوے دے. ډیوے یوے انچ زمکے دپاره جهادونه
شوی دی. توفیق ورکونکے الله تعالیٰ دے. چا چه ډیره حصه زمکه کښے اسلام
خور کړے دے. چا په لږ کښې. او چه په دغه نقطه نظر ورته فکر اوکړو.
نو د برصغیر پاک وهند په ټول اسلامی تاریخ کښې د (۹۲ھ نه تر ۱۳۸۳ھ)
د حضرت خواجه بزرګ زمانه د ۶۰۰ھ منځنۍ زمانه ده. د دوی په راتللو
د تیر وشوو شپږ سوو کالو نو د اسلامی جدوجهد تکمیل اوشو او اسلام
په ټول هند کښې خور شو. یعنے حضرت خواجه بزرګ که برصغیر پاک و
هند ته د تاریخ په هر دور کښې چه راغلے دے. مګر د کار د هغے د نتیجے او اثراتو
په لحاظ سره د دوی په فیوضاتو کښې همه ګیر والے دے. او د اثراتے تر ټول
برصغیر خوره ده. او هم دغه د حضرت خواجه بزرګ صحیح مقام دے. دے
نه د دوی د مقام او مرتبے عظمت معلومیږی: "په لویو کښې د لوئے مرتبے خاوند
هغه وی چه په لویو کښے لویه کارنامه انجام ته اورسولے شی". د حضرت خواجه
بزرګ په لویو کښې لویه کارنامه داده چه د دوی په برکت د اسلام نشان
او نښان ته شوکت او عظمت حاصل شوے دے. خدائے دے د دوی اجر
لوی کړی او د دوئ له مخه دے په برصغیر پاک او هند کښې اسلام ته
نور هم شوکت او عظمت ورکړی (وکان ذالك على الله يسيرا. او دا کار خدائ
ته ډیر آسان دے.)

د پورته بیان د زیاتے پوهے د پاره به د برصغیر پاک او هند د اسلام
په مجاهدینو حکمرانانو یو نظر واچوو. د حضرت محمد ابن قاسم (۹۲ھ)
نه واخله د ملتان د شیخ حمید لودهی پورے د اسلام اشاعت تر سنده او
څه حصے د پنجاب پورے شوے وو. د هغے نه پس د سلطان محمود غزنوی
په زمانه کښې د اسلام دغه پوله لږه وړاندے شوه. د سنده او شمالغربی

هند نه ترخه حصے او دَ جنوبی هند ترخه حصے او رسید لے۔ لیکن باعث کفرستان دَ هند کښې دَ اسلامی حکومت دَ مستقبل بنیاد بانی سلطان شهاب الدین الملقب په معز الدین محمد ابن سام غوری کښې ښودلے شي۔ چه دَ شمالی۔ وسطی، جنوبی هند نه واخله تر آسام او تبت پورې هغه او دَ هغه بهادرانو جرنیلانو او جانشینانو دَ اسلام بیرغ او رسولو۔ دَ محمد ابن سام غوریؒ نه مخکښې دَ ټولو مجاهدینو دَ اسلام دَ مجاهدانه کوششونو تکمیل به ده او شو۔ دَ حضرت خواجه بزرګ علیه الرحمة حال ته چه فکر او کړو۔ نو دَ دوی صحیح تاریخی مقام دَ تبلیغی کارنامو دَ نوعیت په لحاظ سره هم هغه دَ معز الدین محمد ابن سام غوریؒ په شان دے۔ ځکه چه دَ حضرت خواجه بزرګ نه مخکښې هم برصغیر پاک او هند ته څو مره کښې شهیر مشاهیر بزرګان راغلی وو۔ دَ هغوی دَ فیوضاتو دائره تر یو بے خاصے علاقے پورې محدوده ده۔ او دَ خواجه بزرګ انوار په ټول برصغیر خوارۀ شول۔ دمثال په طور:-

(۱) په چشتیه طریقه کښې دَ حضرت خواجه بزرګ په شپږمه پیړی کښې دَ مشر پیر طریقت نوم دے۔ حضرت خواجه ناصر الدین شیخ ابو احمد یوسف چشتی علیه الرحمة چه په احمد ابدال چشتی نامه بانیٔ مشهور دے۔ ابو احمد ابدال چشتی علیه الرحمة یو مرید حضرت مدیح بابا علیه الرحمة دَ سنه ۳۰۰ھ په شاؤ خوا کښې دَ سابق صوبه سرحد

له دَ حضرت خواجه ابو احمد ابدال چشتی ولادت سنه ۲۶۰ھ او وفات سنه ۳۵۵ھ دے۔ (اثر)

علاقے ته تشریف راوړے دے۔ چه دَ دوی دَ فیوضاتو دائره دَ سابق صوبه سرحد او قبائیلی علاقو پورې خوره ده (مخکښې دَ دوی حالات په تفصیل سره بیان شوی دی)

(۲) دَ جنید یه بغدادیه سلسلے په مشرانو مشائخو کښې حضرت شیخ داتا ګنج بخش علی الهجویری په سنه ۴۳۹ھ کښې دَ سابق مغربی پنجاب مرکزی

شهر لاهور ته راغلي وو۔ چه دَ دوئ دَ فیوضاتو سرچشمه تر پنجاب او سنده خوره۔ (دَ دوئ تذکره هم کښې درج شوے ده۔)

۳ دَ حضرت خواجه بزرګ په دریمه پیړئ کښې دَ مشر پیر نوم دے۔ حضرت مودود چشتي علیه الرحمة۔ دَ دوئ دوه مریدان وو۔ ۱۔ سید احمد سخي سرور سلطان ۲۔ او حضرت اتوشو ریانی خویشکی دَ سابق مغربي پنجاب علاقے ته راغلي وو۔ او دا علاقے ئے پخپلو روحاني انوارو رڼا کړے وه۔ (هم کښې دَ دوئ حالات بیان شوي دي۔)

۴ دَ جنوبي هند علاقو ته دَ حضرت غوث الاعظم پیر دستګیر شیخ عبدالقادر جیلاني علیه الرحمة ممتاز خلیفه حضرت شاه دوله دریائی علیه الرحمة تشریف راوړے وو۔ او دَ ګجرات او کاټهیاوار په علاقو کښې ئے دَ اسلام رڼا خوره کړے وه۔ بیا ئے بنګال ته تشریف وړے وو۔ او مزار مبارک ئے په ګوړ" کښې دے۔

لیکن چه څه وخت حضرت خواجه بزرګ تشریف راوړلو۔ نو برصغیر پاک و هند پر منځنئ علاقه اجمیر کښې ئے مقام اونیولو۔ او د دے ځائ نه دوئ:۔

(الف) دَ برصغیر هرے حصے ته خپل مریدان او خلیفه ګان خواره کړل۔ (چه روستو به ئے تفصیل راشي)

(ب) دَ قادریه او سهروردیه دواړو طریقو هر څو مره مشائخ او بزرګان چه دَ برصغیر په چارچاپیره علاقو کښې دَ اسلام په تبلیغ کښې مصروف وو۔ دَ هغوئ سرپرستي ئے اوفرمائیله۔

که په حقیقت باندې غور اوشي۔ نو دوئ ته دَ "هند الولی" خطاب پرده مناسبت ورکړے شوے دے۔ چه کم نور بزرګان دَ برصغیر دَ بیل بیل ولایت روحاني رهنمایان او مبلغان وو۔ نو دَ دوئ دَ پاره ټول هندوستان یو ولایت وو او خواجه بزرګ" دَ دے ټول ولایت" روحاني بادشاه"

ولی او والی وو۔ "علیہ الرحمۃ والغفران"

پدے خبرہ باندے د پورتہ پوهیدلو دپارہ بہ لنډ وضاحت اوکړو۔ لکہ چہ مخکښې ورته اشارہ شوے دہ پہ برصغیر پاک وهند کښې د مستقل وهمہ گیر اسلامی حکومت بانی حضرت سلطان شہاب الدین الملقب پہ محمد ابن سام غوری دے۔ چہ پہ سنہ ۵۷۱ھ کښې پہ ملتان اولنی حملہ کړے وہ۔ او پہ سنہ ۶۰۰ھ کښې د دهٔ د یو جرنیل محمد ابن بختیار خلجی پہ ذریعہ د اسلام بیرغ تر آسام پورے رسیدلے وو۔ پہ تاریخی اعتبار سرہ دا دیرش کالہ زمانہ دہ۔ چہ هم پدے کښې اسلام د برصغیر د برسرنہ نرکوزہ سرہ پورے رسیدلے دے۔ د ملتان پہ مقام د جهاد پہ میدان کښې چہ ملکیاد غرشین غر کړے وو۔

غازیانو راشئ ؛ د شہاب پر ملا شئ

نو دغہ غر د برصغیر پاک وهند تہ بہ غاړے تر پہ ټول عالم اسلامی کښې آوریدلے شوے وو۔ پہ دے غر چہ څومرہ مسلمانان او خصوصاً اولیاء اللہ راغلی وو او شہاب الدین غوری سرہ ملګری شوی وو۔ پہ هغے چہ یو نظر واچوؤ پہ هغے کښې ډیرلوئ تعداد د قادریہ سهروردیہ او چشتیہ خاندانونو د بزرګانو دے۔ بلخصوص سلطان شہاب الدین غوری د حضرت شہاب الدین سهروردی سرہ عقیدت لرلو۔ د حضرت غوث پاک زمانہ لرہ شان مخکښې دہ۔ (سنہ ۴۷۰ھ تا سنہ ۶۳۲ھ) دوارہ هم عصر بلکہ هم ولی دی۔ حضرت خواجہ سهروردی د حضرت غوث پاکؒ متبنیٰ او تربیت یافتہ وو۔ سلسلہ عالیہ سهروردیہ پہ حقیقت کښې د سلسلہ عالیہ قادریہ معنوی شاخ دے۔ د دے دوارو سلسلو د فیوضاتو مرکز بغداد وو۔ د حضرت خواجہ بزرګ د معنوی فیوضاتو ابتداء هم د بغداد نہ کیږی۔ د حضرت ابو اللیث سمرقندی پہ مسجد جامع کښې حضرت قطب الدین بختیار کاکی

ته حضرت خواجه بزرګ بیعت ورکولو نو په دغه موقع او مجلس کښ شیخ شهاب الدین سهروردی. شیخ داؤد کرمانی. شیخ برهان الدین چشتی. شیخ تاج الدین محمد اصفهانی[له] وغیره موجود وو. د دے بیان نه دا ښودل غرض وو. چه د دے دواړو مشائخو په منځکښ څومره خوږ تعلق وو. چه یو شیخ یعنی خواجه بزرګ خپل یو مرید یعنی خواجه قطب الدین بختیار کاکیؒ ته بیعت ورکوی. نو د تبرک د پاره د حضرت خواجه سهروردی په حضور کښ ورته بیعت کوی. ځکه چه دغه وخت د حضور غوث پاک د وفات (سنه ۵۶۲ هـ) نه روستو د هغوئ روحانی جانشین حضرت خواجه سهروردی وو. دلته دا هم یاد لرل پکار دی چه د حضرت خواجه بزرګ بغداد ته په دریم ځل د تشریف راوړلو په دے موقع (سنه ۵۸۲ هـ) باندے چه کوم اولیاء موجود وو. د هغوئ نومونه دا دی.

(۱) خواجه شمس الدین محمد تبریزی (۲) خواجه فرید الدین عطاء (۳) شیخ اوحد الدین کرمانی (۴) مولانا بهاء الدین بخاری (۵) خواجه اجل شیرازی (۶) شیخ جلال الدین تبریزی (۷) شهاب الدین محمد بغدادی (۸) مولانا عماد الدین بخاری (۹) شیخ عبد الواحد برهان غزنوی (۱۰) شیخ علی سنجری (۱۱) شیخ سیف الدین ناخرزی (۱۲) خواجه سلیمان عبد الرحمان او چه مخکښ ئے نومونه ذکر شول. (۱۳) شیخ شهاب الدین سهروردی (۱۴) شیخ بهاء الدین ذکریا ملتانی (۱۵) شیخ داؤد کرمانی (۱۶) شیخ برهان الدین محمد چشتی (۱۷) شیخ تاج الدین محمود اصفهانی.

د دے سره سره په دغه د ورکښ چه د دے بزرګانو د یو بل سره کوم خوږ تعلق وو. په هغے به هم یو نظر واچوو. د مثال په طور شیخ اوحد الدین کرمانی د غوث پاک د مشهور خلیفه شیخ اکبر محی الدین ابن عربی هم مرید وو.

[له] شیخ تاج الدین محمد اصفهانی د حضور غوث پاک نمسے دے او زیارت ئے د مغربی پاکستان د قبائیلی علاقے وزیرستان سره نزدے د افغانستان په ... کښ په برمل کښے ځائے دے.

دَشیخ اکبر په مشهور کتاب فتوحات مکیه کښې ئې ذکر راغلے دے۔ بیا دَ شیخ شهاب الدین سهروردی او خواجه شمس الدین محمد تبریزیؒ هم مرید شوے وو۔ او چه کله په سنه ۵۸۲ھ کښې خواجه بزرگؒ بغداد ته راغے۔ نو دے خپلو ټولو پیرانو په موجودګئ کښې دَ خواجه بزرګ نه ئې هم خرقه دَ خلافت حاصله کړه۔ دا یو مثال دے۔ د دے نه که د دغه دور دَ روحانی رهنمایانو په پرخلوصه او دَ مینې نه ډک تعلقاتو باندے رڼا پریوزی۔ نو ورسره دا هم معلومید لے شی۔ چه دَ اوحد الدین کرمانی په شان باکماله بزرګ هم چه دَ خواجهٔ خواجګان په لمن پورے ځان نښلول خپله نیک بختیؒ ګڼړی او دَ هغه دواړه پیران حضرت شیخ شهاب الدین او شمس الدین تبریزی هم داخپل مرید دَ حضرت خواجه بزرګ په خدمت کښې پیش کول مبارک ګڼړی نو د دے نه دَ خواجه بزرګ دَ اوچت عرفانی مقام اندازه لګید لے شی۔

د لته یوه بله خبره هم یاد لرل پکار دی۔ لکه چه روستو به ئې تفصیل راشی۔ دَ سلسله عالیه چشتیه دا چشتیه لقب دَ ډیر پخوانه موجود وو۔ او دَ سلسله عالیه قادریه او سهروردیه د دواړو نسبتی نومونه په دغه نزدے زمانه کښې شروع شوی وو۔ په دغه زمانه دَ طریقت او معرفت ټولے څوارلس سلسلے وے۔ چه دا درے واړه سلسلے (قادریه، چشتیه۔ سهروردیه) هم په هغے کښې شمار دے۔ او حضرت خواجه بزرګ ته په دے ټولو سلسلو کښې نسبت حاصل ؤ۔

دا پورته بیان مو په دے غرض د لته راوړلو۔ چه په تاریخی اعتبار سره دا ټول د سنه ۵۸۲ھ واقعات دی۔ چه په دے کال حضرت خواجه بزرګ بغداد ته راغلے وو۔ د دے نه دوه کاله پس په سنه ۵۸۶ھ کښې حضرت سلطان شهاب الدین غوری د راجه پرتهوی راج سره دَ "تراړه" په مقام په اولنی جنګ کښې بر ے اونه موندله۔ او حضرت خواجه شهاب الدین سهروردی ته ئې دَ امداد دَ پاره درخواست اولیږله۔ او هغه په خپل ځائے باندے خپل خوریئے حضرت سیّد

سیند مبارک غزنویؒ را اولیږه. نو دا سے معلومیږی چه د حضرت شهاب الدین غوری په دے درخواست په ټول عالم اسلام کښې یوانګور پورته شوے وو. او په د غے باندے د ټول عالم اسلام د څوارلس واړه سلسلو بزرګان رالیږلی وو۔

د شهاب الدین غوری په دے درخواست چه هر کله د روحانیت د مرکز بغداد نه او نورکیرچاپیر عالم اسلام نه د روحانیت او طریقت د مشهورو څوارلسو سلسلو او په خصوصیت سره د درے واړه سلسلو قادریه چشتیه سهروردیه د مشایخو او بزرګانو ډیر لوئ تعداد را خور شو۔ په دے غرض چه په برصغیر پاک و هند کښې د اسلام رڼا خوره شی۔ د اسلام او مسلمانانو لښکرو او غازیانو ته فتح حاصله شی۔ په برصغیر پاک و هند کښې اسلامی حکومت قائم شی۔ او نوی قائم کیدونکی اسلامی حکومت ته استحکام حاصل شی۔ نو که مونږ د هغه دور په بزرګانو یو نظر واچوو۔ نو دا آسانئ د پاره به صرف د حضرت شهاب الدین سهروردی خلیفه ګان او مریدان واخلو۔ او دا به راته معلومه شی چه د حضرت خواجه سهروردی چه هر څومره ممتاز خلیفه ګان وو۔ هغه ټول برصغیر پاک و هند ته په دغه موقع د جهاد د پاره رالیږلی دی۔ د مثال په طور. (الف) یوائے د بنګال په مقام کښې چه دیوګان نوم یے دے۔ دلته د حضرت خواجه شهاب الدین سهروردی داولس ممتاز و خلیفه ګانو مزارات مبارک دی۔ (چه روستو به ئے تفصیل راشی۔)

(ب) د سابق صوبه سرحد د مشهور تاریخی شخصیت پیر روښان په شپږم پښت کښې نیکه حضرت ابراهیم دانشمند ارمړ چه د حضرت شیخ شهاب الدین سهروردی خلیفه وو۔ د هغه مزار په "سونارګاؤں" مشرقی پاکستان کښې دے۔ او د هغه د څوئ حضرت سراج الدین المعروف په مولانا عطاء چه ځل پلار د پیر بهائی حضرت بهاء الدین ذکریا ملتانی مرید وو د هغه مزار په مشرقی پاکستان کښې دے۔

(ج) هغه چه په بغداد کښې ئے د حضرت خواجه بزرګ سره ئے صحبتونه وو. خواجه محمد شمس الدین تبریزي د هغه مزار مبارک په ملتان کښې دے د دوی د ولادت تاریخ سنه ۵۶۰ھ او د وفات تاریخ سنه ۶۴۵ھ دے

(د) حضرت خواجه شاه جلال الدین تبریزي چه د حضرت خواجه سهروردي خلیفه وو. او د حضرت خواجه قطب الدین بختیاري کاکي او حضرت اوحد الدین کرماني سره ملګرے د بغداد نه ملتان ته راغلے وو. د هغه مزار مبارک په مشرقي پاکستان کښې دے.

دا یو مختصر مثال دے. او د دے په رڼړا کښې ښیلے شو. چه:-

(الف) د سنه ۵۶۰ھ نه تر سنه ۶۰۰ھ پورے چه د برصغیر پاک و هند په زمکه د اسلام کوم بیرغ اودریدلے وو. د هغے د استحکام د پاره.

(ب) او په پورتني زمانه کښې چه د طریقت. معرفت او شریعت د دے څو مره سلسلو بزرګانو او مشایخ دے زمکے ته راغلي وو. د هغوی د روحاني امداد او سرپرستۍ د پاره او په هغے کښې د مرکزیت پیدا کولو د پاره. دا دے دوارو کارونو په سبب طریقه سره سرته رسولو د پاره خدائے پاک خواجه بزرګ له دا عزت ورکړو. د "هند الولی" مرتبه ئے ورته ونجښله. او په سر زمین هند کښې د اسلام د تبلیغ د پاره د "نائب رسول" او چت مقام ئے ورته عطا کړو. دوئ هندوستان ته تشریف راوړلو. دلته ئے د توحید د تبلیغ مرکز قایم کړو. دلته چه کوم اولیاء الله د اسلام د دین په خدمت کښې مصروف وو. د هغوی ملتے مضبوطے شولے. او د دوئ د مبارکو قدمونو او کوششونو په نتیجه کښې په دے سر زمین کښې د اسلام رڼړا دا سے خوره شوه. او دا سے استحکام ورته حاصل شو. چه نن د برصغیر پاک و هند یو اهم طاقت اسلام او مسلمان دے. ________

# نظرِ اعتبار

یو طرف ته دَ حضرت خواجه خواجگان معین الحق والملة والدین حسن سنجری، چشتی اجمیری کار دومرهٔ اوچت روحانی. عرفانی او دَ اسلام دَ نشر واشاعت او تبلیغ په سلسله کښې دَ شاندار و خدماتو دا دومرهٔ عظیم الشان مقام دے. او بل خواته دَ دوی په سوانح حیات کښې چه نن ورځې هرڅومره تذکرے لیکلے شوے دی. یا لیکلے شی. دَ هغې اکثر بیانونه په تاریخی اعتبار سرهٔ دَ افسوسناکو غلطونه ډک دی. دَ مثال په طور یوهٔ غلطی به ئے واخلو. دَ نن ورځې ټولو تذکرهٔ لیکونکو دا متفقه روایت دے. چه حضرت خواجه بزرګ په سنه ۵۶۱ھ کښې اجمیر ته تشریف راورے دے. لیکن دا انصاف دار دیته فکر نه کوی چه هرکله حضرت خواجه بزرګ په سنه ۵۳۷ھ کښې پیدا شوے دے. په سنه ۵۵۳ھ کښې دَ خپل والد ماجد علیه الرحمة دَ وفات نه روستو دَ علم په طلب کښې بخارا او سمرقند ته ئے تشریف ورے دے. پنځه کاله ئے هلته درس لوستلے دے. او په سنه ۵۵۹ھ/۵۶۰ کښې بغداد شریف ته راغلے دے. او په سنه ۵۶۲ھ کښې دلته دَ دینی علمونو دَ تکمیل نه فارغ کیږی. او دَ طریقت دَ ژوند ابتدا کوی. نو په سنه ۵۶۱ھ کښې اجمیر ته څرنګ راغلے وو. ؟

لکه چه روستو مونږ په تفصیل سرهٔ پرے بحث کړے دے. او دَ هغې نه به پورهٔ واضحه شی. خواجه بزرګ دَ بغداد نه په سنه ۵۶۲/۶۳ھ کښې دَ ایران نیشاپور نومے ښهر ته رسیږی. هلته په هارون نومے کلی کښې دَ حضرت خواجه عثمان هارونیؒ نه لاس نیوهٔ کوی. او دَ بیعت نه روستو پورهٔ شل کاله تر سنه ۵۸۳/۸۴ھ پورے دَ خپل پیر طریقت په خدمت کښې پاتے کیږی. دَ هغې نه روستو بیا دَ دنیائے اسلام په سفر روانیږی. بیا سنه ۵۸۴/۸۵ھ کښې بغداد شریف ته راځی. او لکه چه مخکښې ورته اشاره

اوشوه - په بغداد کښې د مشاهیر و بزرګانو سره ملاقاتونه کوی. نو آخر به کوم دلیل او کومه بناء دا ممکنه کیدے شی. چه په سنه ۵۶۱ھ کښې چه هیله د دوئ عمر مبارک (۲۴) کاله وو - او لا د علم د تحصیل نه فارغه شوی هم نه وو. دوئ دے اجمیر ته راغلی وی۔

بیا د دغې نه علاوه دے تذکره لیکونکو بل کار دا کړے دے. چه یو ځل یې په غلطئ سره او په بے احتیاطئ بانده په سنه ۵۶۱ھ کښې اجمیر شریف ته دوئ تشریف راوړل فرض کړی دی - نو بیا دے ځینی غلط روایت د راتلونکو لو د پاره ئے د سنه ۵۶۱ھ نه ترسنه ۶۰۰ھ پورے د اجمیر د قیام د دوران داسے قیصے او افسانے د حضرت خواجه بزرګ علیه الرحمة ذات مبارک ته منسوبے کړے دی. چه سړے ورته حیران پاتے شی. په دے کښې هیڅ شک نشته دے. چه د حضرت خواجه ذات مبارک ډیره لویه هستی ده. د هغوی عرفانی او روحانی مقام دومره اوچت دے. چه هغې ته ځمونږ فکر او خیال رسید لے هم نه شی. د هغوئ ذات مبارک په دے برصغیر کښې د انوار و یو لا منار ده. چه دا برصغیر پرے تول رڼا دے. د اسلام د شوکت او عظمت یو لاستن ده. چه په دے برصغیر کښې د اسلام عمارت پرے تینګ ولاړ دے. د هغوئ د ذات سره د دے برصغیر د هر مسلمان په زړه کښې د عقیدت موجودګی یو قدرتی خیز دے. لیکن د عقیدت په بنا د یو تاریخ او تذکره لیکونکی د پاره تاریخی حقایق مسخ کول مناسب نه دی۔

دے مؤرخانو دا کار کړے دے. چه هر کله په سنه ۵۶۱ھ کښې ئے د حضرت خواجه بزرګ علیه الرحمة اجمیر ته راتلل فرض کړی دی. او بیا ئے د شهاب الدین محمد ابن سام غوریؒ د لاس نه د "ترائین" په مقام د راجه "پرتهوی راج" شکست او نور تول فتوحات د خواجه بزرګ روحانی تصرفات بښودلی دی. نو بیائے ورپسے د داسے واقعاتو نسبت د خواجه بزرګ ذات مبارک ته کړے دے. چه که د هغې تجزیه اوکړے شی - نو هغه په هیڅ صورت سره د "خواجه بزرګ"

دَ تعریف خبرہ نشی کیدلے۔ خدائ پاک دے دَ خواجه بزرګ درجے اوچتے کړی.
دَ هغوئ مبارک شان دَ داسے واقعاتو او افسانونه بالکل پاک دے۔ دکومو نسبت
چه دَ موجوده دور تذکره لیکونکو او مؤرخانو هغوئ ته کړے دے۔ حال دا
چه په څوانو تذکروکښ داغلط واقعات نشته دے۔

دَ مثال په طور یو کتاب دے۔ دَ هغے نوم دے "خواجه غریب نواز" دَ هغے
په صفحه ۶۰ باندے لیکی:- (دَ اردو نه ترجمه)

## په رائ پتهورا دَ خواجه عتاب

"راجه رائ پتهورا چه په غصه کښ دَ حضرت خواجه په خلاف کوم الفاظ
دَ خُلے نه ویستلی وو۔ هغه خواجه صاحب ته را اورسیدل۔ چنانچه خواجه صاحب
هم په غصه کښ راغے۔ او د کاغذ په یوه پرزه ئے دا الفاظ اولیکل۔ او ورئے لیږل
"که من ترا به لشکر اسلام سپردم" یعنی که ته ما دَ اجمیر نه اوباسے که نه اوباسے۔
ما ته اونیولے او ژوندے مې دَ اسلام لښکر ته حواله کړے"۔

بیا په صفحه ۶۴ کښ لیکی" په سنه ۵۸۸ ھ کښ دَ "تراوړی" په میدان کښ
راجه پرتهوی راج دَ شهاب الدین غوری دَ لاسه شکست اوخوړلو۔ او نیولے
شو۔ او وژلے شو۔ او غرض دا چه په دے طریقه سره دَ حضرت خواجه پیش ګوئ پوره
شوله"۔ بیا دَ صفحه ۶۲ په دے پورتنی عبارت په حاشیه کښ لیکی :-
و ئیلے شی چه کومه ورځ حضرت خواجه په غصه کښ راغے۔ او رائ پتهورا ته
ئے اولیکل "چه ته ما اونیولے او ژوندے مې دَ اسلام لښکر ته اوسپارلے"۔ نو
په دغه شپه حضرت خواجه بزرګ په خوب کښ سلطان شهاب الدین غوری
ته په هندوستان دَ فوراً حملے کولو حکم ورکړلو۔ او ورته ئے دا هم اووئیل چه
دا یقینی به تا ته خدائ پاک ضرور فتح درکړی"۔

د دے عبارت خلاصه مطلب دا شو۔ چه دَ سلطان شهاب الدین
غوری دَ لاسه دَ رائ پتهورا دغه شکست او مرګ دا هر څه دَ خواجه صاحب

دَ قهراو غصے په وجه اوشول. که رائے پتهورا دا غلطے کړے نه وی او خواجه بزرګ یے غصه کړے نه وی. نو دَ ترائین په مقام باندے چه دَ رائے پتهورا دَلاس نه په سنه ۵۸۶ھ کښې شهاب الدین غوری شکست خوړلے وو. دوباره په سنه ۵۸۸ھ کښې به بیا سلطان شهاب الدین غوری حمله نه وے کړے. او رائے پتهورا به په کښې نه وے مړ. ددے بیان نه دا هم معلومه شوه چه دَ خواجه بزرګ او رائے پتهورا ترمینځه دغه خفګان دَ ترائن دَ اولنی جنګ سنه ۵۸۶ھ او دویم جنګ سنه ۵۸۸ھ په مینځنی زمانه کښې راغلے وو. لیکن سوال دا دے چه هرکله ددے مورخانو په قول حضرت خواجه په کال سنه ۵۶۱ھ کښې اجمیر ته راغلے وو. نو د سنه ۵۸۶ھ پورے په تیرو شوو پنځویشتو کالونو کښې چه خواجه بزرګ دَ اسلام تبلیغ کولو. نو په هغې راجه نه خفه کیده؟ او روغ جوړ پنځه ویشت کاله پس یے خفګان پیښ شو ـ حضرت خواجه بزرګ دَ رائے پتهورا نه په دے خوخفه نه شو چه دَ ترائن په مقام یے شهاب الدین غوری له شکست ورکولو. او دَ جهاد په دغه موقع یے دَ سلطان شهاب الدین سره هیڅ روحانی امداد اونه کړ ـ لیکن هرکله چه رائے پتهورا په خواجه صاحب دَ اجمیر نه دَ اوکښلو دباؤ وکړه نو ماله قهر ورغے. سلطان ته ئے په خوب کښې دَ حملے کولو حکم ورکړو. او په نتیجه کښې یے رائے پتهورا ختم شو. لاحول ولا قوة الا باالله العظیم. دا خومره غلط خیال دے او دَ حضرت خواجه په شان مبارک کښې څومره لویه بے ادبی ده. حاشا وکلا. حاشا وکلا دَ حضرت خواجه بزرګ ذات مبارک دَ داسے غلطو افسانو نه ډیر پاک دے.

ددے غلطو افسانو په سلسله کښې دَ ټولونه لویه خبره دا ده. لکه چه روستو به یے په تفصیل سره بیان کړو دَ رائے پتهورا او دَ سلطان شهاب الدین ترمینځه چه دَ ترائن په مقام اولنے جنګ کیدلو نو په دغه سنه ۵۸۶ھ کښې حضرت خواجه بزرګ دَ بغداد شریف نه دَ اوه میلونو په فاصله په

سنجان نومے مقام کښں دَحضرت نجم الدین عمر کبریٰ ابن محمد ابن عبداللہ (متولد سنہ ۵۰۴ھ متوفی سنہ ۶۱۸ھ) سره وو۔ حضرت نجم الدین کبریٰ دَحضرت غوث الثقلین محی الدین شیخ عبدالقادر جیلانی په مشرانو خلفاؤ کښں وو۔ مشهوره سلسله، سلسله کبرویه دوئ ته منسوبه ده۔ حضرت خواجه بزرگ په سلسله عالیه قادریه او سلسله کبرویه کښں دَ دوئ نه فیض حاصلولو او ظاهره ده چه په دغه نیته لا حضرت خواجه بزرگ برصغیر پاک وهند ته نه وو راغلے۔ او دَ تراءن په مقام دَ دویم جنګ (سنہ ۵۸۸ھ) په ورځو کښں حضرت خواجه بزرگ په اصفهان کښں وو۔ د دے نه دا اندازه لګول آسانیدلے شی۔ چه دَ پورتنئ افسانے تاریخی حقیقت څه دے؟

لکه چه مخکښں مونږه ورته اشاره کړے ده۔ چه د دے نمونے افسانے دَ حضرت خواجه بزرگ ذات مبارک ته نسبت کول نه ښائی۔ دَ هغې وجه دا ده۔ چه که بالفرض حضرت خواجه بزرگ په دغه نیته په اجمیر کښں موجود هم وے۔ او راۓ پتهورا دَ هغوئ په شان کښں بے ادبی او ګستاخی کړے وے۔ نو دغه بیا دَ دوئ ذاتی معامله ۔۔ جوړیدله۔ او په دغه صورت کښں راۓ پتهورا له سزا ورکولو به دَ ذاتی انتقام شکل اختیار کړے وے۔ حال دا چه مونږ خواجه بزرګ ته "نائب رسول" وایو۔ او دَ رسول پاک صلی اللہ علیه وسلم په تعریفونو او صفتونو کښں یو مبارک صفت دا دے چه هغوئ دَ هیچا نه هم ذاتی انتقام نه وو اخستے۔ بله دا چه حضرت خواجه بزرګ دَ حضرت اسد اللہ الغالب علی ابن ابی طالب کرم اللہ وجهه نمسے دے۔ او مونږ ته په صحیح روایتونو دا روایت رارسیدلے دے چه حضرت خواجه بزرګ په صورت او سیرت دواړو په هر لحاظ سره دَ دغه خپل جد امجد په صفتونو موصوف وو۔ او لکه چه روایت دے۔ چه په یوه موقعه حضرت علی رضی اللہ عنه په یو کافر ګذار اوکړو هغه کافر پریوتلو او دوئ یې په سینه کیناستل۔ او دَ هغه نه وژلو

ارادہ یئے فرمائیلہ چہ پہ دے کښې هغه کافر دَ دوئ پہ مخ مبارک توکانړی
گذار کړل. نو دوئ فوراً دَ هغه دَ سینې نه پورته شول او دَ هغه دَ مرگ نه یئے
لاس اونیول. چہ کافر تپوس اوکړو. نو دوئ اوفرمائیل. چہ اول م دَ
اسلام پہ خاطر وژلے اوس کہ دے وژنم. نو چونکہ تا ځما پہ مخ توکانړی گذار
کړی دی بے ادبی دے کړے دہ. نو هسے ستا دا مرگ ځما دَ ذاتی انتقامی جذبے
فعل اونه گڼړلے شی. نو دغه سیدنا علی ابن ابی طالب رضی الله عنه دَ صحیح
جانشین او نمسی حضرت خواجه بزرگ پہ شان کښې که بالفرض "راے پرتهوی
راج" بے ادبی هم کړے وی. نو حضرت خواجه بزرگ دَ هغه نه انتقام نه شو
اخستلے. دا یوه ډیره باریکه نکته دہ. او افسوس دے چہ عام مؤرخانو او
تذکرہ لیکونکو ورته فکر نه دے کړے. او دے نمونے نورے بے شمیره افسانے
ئے پہ حضرت خواجه بزرگ پورے تړلے دی. چہ پہ روحانی طور سره
دردناکے دی زړه ته تکلیف ورکوی. او پہ تاریخی طور سره غلطے دی.

دلته یو بلے نکتے ته هم اشاره کول مناسب گڼړم. او هغه دا دہ چہ
پہ روحانی او تاریخی دواړو اعتبارو نو سره دا خبره هیڅ اهمیت نلری. چہ حضرت
خواجه بزرگ کاله پیدا شوے دے. او کله ئے برصغیر پاک و هند ته تشریف
راوړے دے. بلکه کومه خبره چہ اهمیت لری. هغه دا دہ. چہ دَ هندوستان
پہ خاوره چہ هر څومره اولیاء دی. دے دَ هغوئ سلطان دے. حضرت
خواجه بزرگ "خواجه خواجگان" دے. سلطان الاولیاء والعارفین" دے
"هند الولی" دے او "نائب الرسول" دے. چہ کله خدائ ته منظوره شوه
چہ برصغیر پاک و هند کښې دے اسلام یو ژوندے طاقت وی. نو دغے
طاقت دَ سرپرستئ دَ پاره ئے حضرت خواجه بزرگ له دا یوه لویه مرتبه
ورکړه او دلته یئے را اولیږلو. او دغه دَ انوارو مرکز تر ننه ورځے پورے لا هغه
شان باقی دے. رو نبا نه دے. او دَ انوارو پلوشے ئے چار چاپیره

لاهغه شان خوریزی. ددے داسے مثال دے. لکه حضرت غوث الثقلین محی الدین شیخ عبدالقادر جیلانی قدس سرهٔ العزیز د سنه ۴۷۱ھ ترسنه ۵۶۱ھ ۵۶۲ د زمانے وو. لیکن مرتبه ئے د رسول پاک صلی الله علیه وسلم د اصحابو کرامونه رابه دیخوا د ټولو اولینو او آخرینو اولیاء ونه اوچته ده. خدائ پاک ډیر لوئ ذات دے. د هغه د ربوبیت په اسرار وهم هغه پخپله عالم دانا دے. په دے وجه مونږ له د حضرت خواجه بزرګ د ذاتی حالاتو. د هغوئ د تعلیماتو او د اسلام د پاره د خدماتو نه ځان واقف کول پکار دی لیکن ددے ټولو خبرو سره د اسلام د تعلیماتو د ادب کولو خیال اولحاظ هم پکار دے.

# دخواجه بزرګ دژوند حالات

برصغیر پاک وهند ته د حضرت خواجه بزرګ د تشریف راولو په دے مسئله باندے مونږه مخکښ د حضرت داتا ګنج بخش علیه الرحمه په تذکره کښې هم مختصراً بحث کړے دے. اودلته غواړو چه د خواجه بزرګ د ژوند مبارک حالات او واقعات په تاریخی او تحقیقی سره په تفصیل سره بیان کړو.

د حضرت خواجه بزرګ مبارک نوم حسن دے. "معین الدین" ئے لقب دے. ددے نه علاوه "حبیب الله. غوث المشائخ. قطب العارفین. هندالولی. عطائے رسول. نائب النبی. خواجهٔ خواجګان. سرکار غریب نواز هم د دوی مبارک القاب دی.

په ۱۴ تاریخ د رجب المرجب سنه ۵۳۷ھ په ورځ د دوشنبے په وخت د صبح صادق باندے د سیستان په علاقه کښې په سنجر نومے کلی کښې دے دنیا ته ئے تشریف راوړے وُو.

---

د والد ماجد نوم ئے "غیاث الدین حسن" وو. چه د خپل وخت یو عابد او زاهد انسان وو. او د ډیر قدر او عزت او مال او دولت خاونه

وو۔ دَ دوئ دَ نسب سلسله په خوارلسم پُښت کښې حضرت مولائے کائنات حضرت علی ابن ابی طالب کرم الله وجهه ته رسیږی شجره مبارکه ئے داده۔

حضرت خواجه معین الدین حسن[۱] ابن غیاث الدین حسن[۲] ابن سیّد کمال الدین[۳] ابن سید احمد حسین[۴] ابن سیّد طاهر[۵] ابن سید عبد العزیز[۶] ابن سید ابراهیم[۷] ابن امام علی الرضا[۸] ابن امام موسیٰ کاظم[۹] ابن امام جعفر صادق[۱۰] ابن امام محمد باقر[۱۱] ابن امام علی زین العابدین[۱۲] ابن حضرت سید الشهداء امام حسین[۱۳] رض ابن سیدنا علی المرتضیٰ رضوان الله تعالیٰ عنهم اجمعین۔

لکه چه مخکښې ذکر اوشو۔ حضرت خواجه بزرګ دَ سیستان په سنجر نومے کلی کښې پیدا شویدے۔ نن ورځ دَ سیستان علاقه په سیاسی طور په دوه حصو کښې تقسیم ده۔ یوه ایرانی سیستان دویمه افغانی سیستان دغه سنجر نومے کلے چه حضرت خواجه بزرګ پکښې پیدا شویدے۔ په جغرافیائی طور سره په افغانی سیستان کښې واقع دے۔ او دے کلی په نسبت سره دَ دوئ یو لقب معین الدین حسن سنجری دے۔

دَ حضرت خواجه بزرګ علیه الرحمة په القابو کښې یو مشهور لقب دے "چشتی" په دے نوم سره دَ دوئ دَ یادیدلو وجه داده چه دَ دوئ دَ طریقت او ارادت سلسله په اووم پیری کښې بره حضرت خواجه ابو اسحاق شامی چشتی ح ته رسیږی۔ او په دے لقب "چشتی" باندے دَ ټولو نه اول هغه یاد شوے وو۔ چنانچه دَ هغوئ نه روستو دَ هغوئ دَ مریدانو کومه سلسله راخوره شوے ده۔ هغوئ ټول دے خپل پیر طریقت دے نسبتی نوم سره دَ خپل نوم سره په مناسبت "چشتی" لیکی۔

دَ حضرت خواجه بزرګ دَ طریقت شجره داسے[۱] ده

دَ حضرت خواجه معین الدین حسن سنجری (له) حضرت شیخ عثمان هارونی[۲] ـ له۔ حاجی شریف ترمذی[۳] ـ له۔ حضرت مودود[۴] چشتی ـ له۔

---

[۱] دا حاشیه په بل مخ ملاحظه کړی همدارنګه حاشیه ۳ و ۴ هم په صفحه ۱۹۹ کښې دی۔

خواجه نصیرالدین محمود چشتی۔ له۔ خواجه ناصرالدین شیخ ابواحمد یوسف المعروف به شیخ ابدال چشتی۔ له۵۔ خواجه ابواسحاق شامی چشتی۔ له۔ ممشاد علو دینوری۔ له۔ خواجه ابوهبیره بصری۔ له۔ ابوحذیفه مرعشی۔ له۔ سلطان ابراهیم ابن ادهم۔ له۔ فضیل ابن عیاض۔ له۔ عبدالواحد بن زید۔ (متوفی سنه ۱۷۷ھ) له۔ امام حسن بصری۔ له۔ امیرالمؤمنین علی المرتضیٰ کرم الله وجهه:-

لکه چه مخکښې ورته اشاره اوشوه د چشتی لقب ابتداء د حضرت ابواسحاق شامی نه شوې ده۔ چشت د خراسان (موجوده افغانستان) په علاقه کښې یو کلی نوم دے۔ چه د مشهور ښهر هرات نه د دیرش کوس په فاصله کښې دے۔ خواجه ابواسحاق په اصل د شام وو۔ لیکن د خدائ د مخلوق د هدایت او ارشاد د پاره په دغه چشت نومې ځائے کښې ئے استوګن اختیار کړے وو۔ هغه ئے د خپلو روحانی فیوضاتو مرکز ګرځولے وو۔ او د لته ئے د طریقت او معرفت یو داسے خانقاه او مدرسه جاری کړے وه۔ چه د هغې نه د دین اسلام بے شمیره

---

له د حضرت خواجه عثمان هارونی د ولادت صحیح تاریخ نه دے معلوم۔ البته د پیراو برد عمر خاوند وو۔ په ۱۶ تاریخ د شوال سنه ۶۰۷ھ یا سنه ۶۱۷ھ کښې وفات شوے دے۔ مزار مبارک ئے د مکے مکرمے او جنت المعلیٰ په منځ کښې وو۔ علیه الرحمة والغفران۔

له د حوالے د پاره اوګورئ تذکرة الابرار والاشرار د اخوند درویزه صفحه ۱۲۸

له متوفی در یم رجب سنه ۵۸۶ھ۔

له متوفی سنه ۵۲۷ھ مزار هرات۔

له۵ په پښتنو قبائیلو کښې د درانی قبیلے مورث اعلیٰ حسن د ده مرید وو۔ دوئ پرے باندے خپل لقب ابدال ایښے وو۔ په دغه مناسبت بیا ورستو حسن په دوائ ابدال نامه مشهور شو۔ مشهور غازی بادشاه احمد شاه ابدالی د دے ابدالی قبیلے نه دے۔

بزرگان پوهتر شول. او د حقیقت او عرفان پیغام یې د څلور څاپیره مسلمانانو ته اورسولو. او د هغوی په برکت د دغه ورکوټې شان کلي نوم په ټوله دنیا کښې ژوندی پاتې شو. په دې اعتبار سره لفظ "چشتی" یو جغرافیائي نسبتي نوم دې. چه ابتدا ئې د سنه ۴۰۰ هـ نه روستو شوې دې.

د سیستان د علاقې یو بل نوم "سجستان" هم دے. (دا دواړه نومونه په حقیقت کښې یو څیز دے. صرف د ومره فرق دے. چه د علاقائي لهجو د اختلاف له مخې د لفظ سیستان حرف (ي) په حرف (ج) بدله شوید ه او سجستان لوستلې شوید ے) چنانچه د دے دویم نوم په مناسبت سره حضرت خواجه بزرگ رح د خواجه معین الدین سنجري، سنجري په نوم هم یادولې شي.

حضرت خواجه بزرگ رح په یو روایت د یو ولس کالو وو. او بل روایت د دولس کالو وو چه په سنه ۵۴۸ هـ یا سنه ۵۴۹ هـ کښې والد ماجد ئې وفات شو. په دے کښې دا دویم روایت په صحیح معلومیږي چه د والد ماجد د وفات په وخت د ده عمر مبارک دولس کاله وو. د روستو نورو واقعاتو نه یې تصدیق کیږي. په دے اعتبار د دوئ د والد ماجد د وفات کال سنه ۵۴۹ هـ دے.

یو مقاله نګار (حافظ محمد اسلام لیکلي دي. چه دوی په سنه ۵۴۴ هـ کښې په مدرسه کښې داخل کړے شول. لیکن د مدرسے نوم یې نه دے بنودلے چه څه وه. په دے اعتبار دا اوښلے شو چه دوئ د اوه کالو په عمر کښې مدرسے ته لیږلے شوے وو. هم دغه راوي روستو لیکي. چه په سنه ۵۵۰ هـ کښې واپس کور ته راغلل. د دے مطلب دا شو چه د والد ماجد د وفات نه روستو او په مدرسه کښې د شپږ کاله درس لوستو نه روستو واپس یې کور ته تشریف راوړے وو.

په دغه زمانه د افغاني سیستان سره نزدے علمي مرکزونه او مدرسے په بست. سبزه وار. غزني او هرات کښې وے. دا به معلوموله غواړي چه دوئ کومے یوے مدرسے ته تلي وو. بله دا چه په دے پوره ټولو علمي مرکزونو کښې

سادا تو خاندانونه آباد وو. په داسې عمر کښې یوې مدرسې ته لیږل شو داښائي چه په هغه علمي مرکز کښې به لا زماد دوئ د ضلع انو ساداتو کورنئ موجوده وه.

بیا چه د دوی عمر مبارک پنځلس کاله وو. په سنه ۵۵۲ھ کښې والد ماجد ئې وفات شو. علیه الرحمة والغفران. په دې سلسله کښې د ټولو تذکره لیکونکو د استقر روایت دے. چه د والد ماجد د وفات نه روستو دوئ ته یو باغ او یوه جرندکه په میراث کښې پاتے شول. په هغې به ئې گذاره کوله. او ټول کار به ئې په خپلو لاسو نو مبارکو کولو. د باغ خصمانه او د کښت او کار ژوندے شروع کړلو. په دغه منځ کښې یوه ورځ د دوئ باغ ته یو مجذوب فقیر حضرت ابراهیم قندوزی علیه الرحمة تشریف راوړلو. دوئ ورته هرکلے ووایه. د یوې ونې د سورې لاندې ئې کینولو. او انګور ئې ورته مخې ته کیښودل. فقیر کچکول را واخیسته. یوه وچه ټکړه ئې تړینه را اوکښله. پخپله خوله کښې ئې اوژویله. بیا ئې حضرت خواجه بزرګ ته ورپخوله کړه. هغه غړکه د حلق نه تیریدل وو. چه د حضرت خواجه بزرګ په زړه او خیالاتو کښې انقلاب راغے. او د الله پاک جلّ وعلیٰ شانه مینے او محبت د دوئ په زړه کښې جوش او وهلو. فقیر خولا پخپله لار ئې او وهله. او حضرت خواجه بزرګ باندې ئې دا اثر پریښودو. چه مال متاع هرڅه ئې خرچ کړل. په فقیرانو ئې تقسیم کړل. او په خدائ ئې توکل اوکړ. او د علم په طلب پسې د کوره روان شو.

مونږ چه په دې پوره بیان غور اوکړو نو دا اوښکاره شو. چه هرکله د حضرت خواجه بزرګ والد ماجد په سنه ۵۵۲ھ کښې وفات شوے دے. نو د حضرت ابراهیم قندوزی سره د دوئ ملاقات به یا هم په دغه کال سنه ۵۵۲ھ یا سنه ۵۵۳ھ کښې شوے وی. او د علم په سفر د دوئ د روانید لو نیټه هم دغه سنه ۵۵۳ اندازه کولے شو. چه دغه وخت به د دوئ عمر مبارک د شپاړسو کالو وو. او ځلمے هلک به وو. او هم د دغه ځلمی توب په زمانه

کښې په دَعلم په طلب روان شوے وو۔

دَ ټولو تذکرو دا متفقه روایت دے. چه دَ علم حاصلولو دَ پاره دوئ بخارا او سمرقند ته تشریف وړے وو. په بخارا او سمرقند کښې دوئ چه کومو عالمانو نه علم حاصل کړے دے. دَ هغوئ پوره نومونه نه دی معلوم۔ فقط دومره معلومه ده. چه دَ مولانا حسام الدین بخاری نه ئې بخارا کښې درس لوستلے وو۔ او قرآن مجید ئې په یادو یاد کړے وو۔ او په علم فقه . حدیث او تفسیر کښې ئې پوره مهارت حاصل کړے وو۔

په دے سلسله کښې حافظ محمد اسلام پخپله مقاله کښې لیکی. چه دوئ پنځه کاله په بخارا او سمرقند کښې درس لوستلے وو۔ په دے اعتبار سره چه دَ سنجر (سیستان) نه او سمرقند تر منځه ډیر اوږد مزل دے. لازمًا یو کال به ئې دَ بخارا او سمرقند په دے سفر کښې په لاره باندے تیر کړے وی. او په ۵۵۴ سنه کښې به هلته رسیدلے وی. او دَ یو بل روایت مطابق تر ۵۵۹ سنه پورے به ئې هلته درس لوستلے وی۔ او لکه چه مخکښې ذکر اوشو. د دغے نه وړاندے دَ ۵۴۲ سنه نه تر ۵۵۰ سنه پورے شپږ کاله ئې دَ سنجر په شاوخوا علاقو کښې په کومه یو مدرسه کښې هم درس لوستلے وو۔ او په دے حساب سره دَ دوئ عمر مبارک دولس کاله زمانه خالص دَ دینی علمونو په حاصلولو کښې تیره شوے ده۔

## بیعت او طریقت

حضرت خواجه بزرگ چه دَ دینی علمونو دَ حاصلولو او تکمیل نه فارغه شوے دے۔ او بیا ئې دَ خپل پیر طریقت نه بیعت او لاس نیوے کړے ده۔ په دے سلسله کښې چه په عامو تذکرو کښې کوم روایت دے. اول دلته هغه درج کوؤ۔ او بیا پرے روستو یو تحقیقی نظر اچول غواړو۔ چه په بعضے روایتونو کښې تضاد دے دَ هغے تطبیق راشی۔

په دے سلسله کښې موجوده روایت دا دے. چه هر کله حضرت خواجه بزرګ په سمرقند او بخارا کښې دَ علم دَ حصول نه فارغه شو. نو دَ هغه ځائ نه را واپس شو- او دَ خراسان (موجوده افغانستان) په لاره باندې په نیشاپور (ایران) باندے مخکښې عراق ته دَ تللو په نیت روان شو- دَ سلوک او معرفت په لاره کښې دَ رهنمائي حاصلولو او دَ پیر طریقت نه دَ لاس نیوے کولو اراده ئې کړے وه. په دغه منځ لاره کښې دَ ایران دَ نیشاپور نومے ښهر خواتر په هارون نومے کلی کښې ئې دَ حضرت خواجه عثمان هاروني سره ئې ملاقات اوشو- او دَ هغوئ په لیدلو ئې دا محسوسه کړله. چه دَ مقصود دَ کوم ګوهر په تلاش کښې چه دوئ روان شوي وُو- هغه هم دغه دے او په لاس راغے- څو ورځې ئې دَ حضرت شیخ په خدمت کښے تیرے کړے- ورځ په ورځ ئې ور سره دومره عقیدت زیا تیدلو- چه حضرت عثمان هاروني هم دَ دوئ دَ باطني حالاتو اندازه ولګوله- شفقت ئې پرے اوفرمایه- دَ دوئ وجود ئې پیر زیارت مبارک اوګڼړلو- او په شان دَ خپلو مریدانو په حلقه کښې ئې شامل کړلو.

حضرت خواجه بزرګ علیه الرحمة چه دَ خپل بیعت کولو دا واقعه څرنګ بیان کړیده- هغه دلته په دے غرض درج کولے شي- چه ددے نه په دا اندازه اولګولے شي- چه دَ کوم یو پیر طریقت مرید دَ خواجه خواجګان معین الدین حسن چشتي په شان عظیم الشان بزرګ وو. نو چه دغه پیر طریقت یعنے حضرت خواجه عثمان هاروني مرتبه به څومره اوچته وه.

حضرت خواجه بزرګ" فرمائي": په یو داسے صحبت کښې چه په هغې کښې لوئ لوئ معظم او محترم مشائخ کبار جمع وو- زه په پیر ادب سره دَ حضرت شیخ عثمان هاروني په خدمت کښې حاضر شوم. او دَ عاجزئ او نیاز مخ می په زمکه کیښودلو. حضرت مرشد حکم اوکړو چه دوه رکعته نمونځ اوکړه. ما فوراً دَ حکم تعمیل اوکړلو. بیا ئې اوفرمائیل مخ په قبله کښینه. ما په ادب سره قبلے ته مخ کړلو- او کښیناستلم.

بیا یې ارشاد اوفرمائیلو۔ چه د سورت بقره تلاوت اوکړه۔ ما په خلوص سره دا (دوه نیمے سپارے) سورت تلاوت کړلو۔ بیا یې اوفرمائیل۔ شپیته ځله "سبحان الله" اووایه۔ ما د رے حکم تعمیل هم اوکړلو۔ د دے مدارجو نه روستو حضرت مرشد قبله پخپله پاسیدله۔ اودریدله۔ اوځما لاس یې په لاس کښې اونیولو۔ آسمان طرف ته یې مخ کړو۔ اووے فرمائیل۔ "خدایه ما داستا بنده تا ته اوسپارلو۔" د دے تهولو مرحلو ختم کیدلو نه پس حضرت مرشد قبله یو خاص قسم له تهوڼۍ چه هغه ته "کلاه چارترکی" وائي۔ ځما په سر کیښودله۔ او خپله جُغه یې ماته په اوږ و واچوله۔ او بیا یې اوفرمائیل۔ کښینه! زه فوراً کښیناستم۔ بیا یې ارشاد اوفرمایه چه یو زر ځله "قل هوالله احد" سورت ووایه۔ ما دغه ختم اوکړلو۔ بیا یې اوفرمائیل چه څومره د مشائخو په طبقه کښې بس هم دا د یوے شپے ورځے مجاهده ده۔ لهذا ورځه لاړ شه۔ او د یوے شپے ورځے خلویښت ګڼے مجاهده اوکړه۔ چنانچه د هغوئ د ارشاد مطابق پوره یوه ورځ او شپه م د خلائ په عبادت، نمونځ او طاعت کښے تیره کړه۔ په صباله بله ورځ بیا حاضر شوم۔ او د عاجزۍ مخ م په زمکه کیښودلو۔ حکم یې راته اوفرمائیلو۔ چه کښینه۔ زه کښیناستم بیا یې ارشاد اوفرمائیله "چه پورته اوګوره۔ ما د آسمان په لوری پورته اوکتل۔ تپوس یې اوفرمائیله چه ترکومه پورے دِ نظر لګیږی۔ ما عرض اوکړو۔ تر عرش معلیٰ پورے۔ بیا یې راته عرض اوکړو۔ چه ښکته اوګوره۔ ما د زمکے طرف ته نظر اوکړو۔ بیا یې راته هم تپوس اوکړو۔ چه ترکومه ځایه دے نظر لګیږی۔؟ ما عرض اوکړو تر تحت الثریٰ پورے۔ بیا یې راته حکم اوکړو چه اوس بیا یو زر ځله د سورت اخلاص تلاوت اوکړه۔ ما د دے حکم تعمیل اوکړو۔ نو بیا یې راته اوفرمائیل۔ چه د آسمان طرف ته اوګوره او وایه چه ترکومه دِ نظر لګیږی۔ ما عرض اوکړو چه د حق سبحانه تعالیٰ د عظمتونو د حجاب پورے بیا یې راته اوفرمائیل چه سترګے پټے کړه۔ ما سترګے پټے کړے۔ بیا یې

ارشاد اوفرمایه۔ "سترگے پرانتوه"۔! ما سترگے پرانستے۔ بیا حضرت مرشد خپلے دواړه گوتے مبارکے څما سترگو ته مخامخ اونیولے۔ او وے فرمائیل۔ چه څه وینے۔؟ ما عرض اوکړو۔ اتلس زره عالمونه وینم۔ چه څما دَ خلے نه یے دا خبره واوریدله۔ نو اوئے فرمائیل۔ چه بس! اوس ستا کار پوره شو۔ بیائے یو ے خښتی طرف ته اوکتل۔ چه مخامخ پرته وه۔ او وے فرمائیل چه دا اوچته کړه۔ ما هغه خښته اوچته کړه۔ دَ هغے د لاندے څه اشرفئ پرتے وے۔ او وے فرمائیل۔ چه دا یوسه او په فقیرانوئے خیرات کړه۔ چنانچه ما دَ هغوئ دَ حکم مطابق عمل اوکړو۔

دا دے دَ حضرت خواجه بزرگ دَ پیر طریقت حضرت خواجه عثمان هارونی څه لږ شان حال چه د دے یو ے واقعے نه دَ هغوئ دَ اوچتے عرفانی مرتبے اندازه لگیدلے شی۔ او ورسره دا هم معلومیدلے شی چه هرکله دَ خواجه بزرگ دَ عرفانی مرتبے ابتداء دومره عظیم الشانه وه۔ نو چه روستو به دَ دوئ روحانی مرتبه کښ څومره ترقی شوے ده۔ او څومره اوچته به وه۔ قدس الله اسرارهم۔

# ضروری وضاحت

دَ خواجه بزرگ دا واقعه چه په مختلفو تذکرو کښ په پورتنی تفصیل سره بیان شوے ده۔ دَ پاره دے چه بعض ضروری وضاحتونه پیش کړے شو۔ په دے باندے یو تحقیقی نظر اچول ضروری گڼړو۔

(۱) په دے سلسله کښ دَ ټولو نه اولنئ خبره دا ده۔ چه حضرت خواجه بزرگ چه دَ خپل بیعت دا واقعه په څه طریقه سره بیان فرمائیلے ده۔ د دے نه بعض تذکره لیکونکو په غلطئ سره دا نتیجه اخیستے ده۔ چه حضرت خواجه بزرگ "کلمه" ته په دوه شپو او ورځو کښ دَ کمال

مرتبه حاصله شوې وه. نو په دغه وجه حضرت خواجه بزرګ به دخپل پیر طریقت نه پیر ز ر رخصت اخیستې وي. او هم د دې نمونې خیال او قیاس په وجه دکتاب "خواجه غریب نواز" مؤلف لیکلي دي. چه:-

"حضرت خواجه بزرګ فقط دوه نیم کاله دخپل پیر طریقت په خدمت کښ پاتې شوې وو."

لیکن واقعات دا دي چه د دې موجوده دور د مؤرخانو اوتذکره لیکونکو دا وینا صحیح نه ده. حضرت خواجه بزرګ چه دخپل مرشد قبله په خدمت کښ څومره موده تیره کړې ده. دهغې په حقله حضرت اخوند رویزه فرمائي[له]:- (دفارسئ نه ترجمه)

"نقل دي دخواجه معین الدین چشتي نه. چه هر کله په خدمت دشیخ عثمان هاروني کښ حاضر شوم. په هغه وخت کښ ئې زه دشیخ والي مرتبې ته اورسولم. لیکن دهغې نه روستو شل کاله زمانه م د حضرت مرشد قبله خدمتونه اوکړل. چنانچه دهغوئي جا نماز او بستره به م په اوږه پورته کړې وه. او دهغوئي په خدمت کښ به روان ووم."

(۲) حمد (عبدالحلیم اثر) مخدوم محترم او معظم جناب آغا سید عنایت علیشاه قادري چشتي پخپله یوه[له] مقاله کښ فرمائي:- (داردو نه ترجمه)

"خواجه بزرګ چه د حضرت خواجه عثماني هاروني په خدمت بابرکت کښ اورسیده بیعت ئې اوکړه. شیخ کامل په یو نظر سره درجې د کمال ته اورسولو. دهغې نه پس دخپل شیخ په خدمت کښ په سفر و حضر کښ ترشل کاله پورې پاتې شو"

د دې پورتنو دوه حوالونه علاوه په نورو ټولو تحقیقي تاریخونو او تذکرو کښې دا متفقه روایت درج دې چه د بیعت کولو نه پس خواجه بزرګ پوره شل کاله دخپل پیر طریقت په ملګرتیا کښ دعالم اسلام سیاحت اوکړو.

---

له مقاله "خواجه معین الدین حسن" صفحه ۲۰.

(۲) دوېمه خبره چه دَ هغې وضاحت ضروري دے. هغه دا ده. چه دَ پورتنې بيان نه معلومېږي. چه حضرت خواجه بزرګ چه دَ بخارا نه را روان شو. نو اګرچه بغداد ته راتللو. او په دغه اراده روان وو. ليکن په منځ لاره کښې دَ "ايران" په "نيشاپور" کښې دَ خواجه عثمان هاروني سره يې ملاقات اوشو. مريد شو. او بيا دَ مرشد قبله په ملګرتيا کښې يې شل کاله تير کړل.

د دے بيان سره به هغه بل بحث چه مخکښې تير شوے دے. هغه به هم راپه ياد کړو. چه حضرت خواجه بزرګ په سنه ۵۵۴ھ کښې بخارا او سمرقند ته اورسيده. او تر سنه ۵۵۹ھ يې هلته درس لوستلو.

د دے دواړو بحثونو په نتيجه کښې مونږه دا وايو چه خواجه بزرګ په سنه ۵۵۹ھ کښې دَ سمرقند او بخارا نه چه را روان شوے وي. نو په سنه ۵۶۰ھ کښې به نيشاپور ته راغلے وي. په سنه ۵۶۰ھ کښې به يې دَ خواجه عثمان هاروني نه بيعت کړے وي. او بيا تر سنه ۵۸۰ھ پورے به دَ هغوئ په خدمت کښې پاتے شوے وي.

ليکن د دے پورته دواړه خبرو سره مونږه دا دوه نورے خبرے هم په خيال کښې ساتل پکار دي. او هغه دا دي:-

(۱) يوه خبره دا ده. چه څه وخت خواجه بزرګ بيعت اوکړو. نو په پسے سمدستي روستو حضرت خواجه عثمان هاروني دَ دُنيائے اسلام په سياحت روان شوے دے. او دَ پوره لس کاله سياحت نه روستو بغداد ته راغلے دے.

(۲) دوېمه خبره دا ده. چه په مختلفو تذکرو کښې دا مشهور روايت بيان شوے دے. لکه څنګه مخدوم مکرم سيد عنايت علي شاه ضياء جعفري په خپله مقاله کښې ليکي:- (دَ اردو نه ترجمه)

"خواجه بزرګ د حضرت محی الدین شیخ عبد القادر جیلانی
په خدمت کښې حاضر شو- د هغوئ نه یې فیوضات حاصل
کړل- او د دعائے سیفي اذن یې د هغوئ نه واخیست"۔

د دې پورته نورو وایتونو په بناء که مونږ دا او منو چه خواجه بزرګ چه د
بخارا نه راروان شو- عراق (بغداد) ته تللو- لیکن په منځ لاره کښې
پاتې شو او په سنه ۵۶۰ھ کښې ئې د خواجه عثمان هاروني نه بیعت او کړو-
نو بیا د دې خبرې سره به لازماً دا هم منو چه دوئ د سنه ۵۶۱ھ نه روستو د
خپل مرشد قبله سره چه په سفر روان شول. نو لس کاله پس په سنه ۵۷۰ھ
په اول ځل بغداد ته به رسیدلے وو- مګر د دې خبرې منل دا مشکلات
پیدا کوی. چه بیا د حضرت خواجه بزرګ او حضرت میر میران غوث الاعظم
دستګیرؒ ملاقات ممکن کیدلے نه شی. ځکه چه حضرت غوث پاک په
سنه ۵۶۲ھ کښې وفات شوے دے۔

په دے وجه څما دا خیال دے- چه مختلفو مؤرخانو چه د بخارا نه د
خواجه بزرګ په سنه ۵۵۹ھ کښې راروانیدل ښودلی دی- نو دغه بیان خو صحیح
دے. لیکن دا بیان به یې صحیح نه وی. چه عراق (بغداد) ته تللو لیکن په منځ
لاره کښې په نیشاپور کښې پاتې شو. بلکه زیات صحیح به دا وی. چه حضرت خواجه
بزرګ د خپل کوم استاذ سره د سمرقند نه راروان شوے وی. او په سنه ۵۶۰ھ
کښې چه په دغه به د دوئ عمر مبارک ۲۳ کاله وو- د بخارا او هرات په
لاره به عراق ته رسیدلے وی. او دلته به یې د بغداد د مختلفو مشاهیرو
عالمانو نه د دینی علومو تکمیل کړے وی. او هم په دغه دوران کښې به یې د
حضور غوث پاک نه هم فیض حاصل کړے وی. او په خصوصیت سره
د "دعائے سیفي" اذن به یې ترینه اخیستے وی. او بیا چه په سنه ۵۶۲ھ کښې
حضور غوث پاک وفات شوے وی. نو هاله به دوئ د ایران نیشاپور ته راغلی وی۔

دغه وخت په دَ دوئ عمر مبارک ۲۵ کاله وو ۔ او دلته به ئې په سنه ۵۶۳ھ
کښې دَ حضرت خواجه عثمان هاروني نه لاس نيوے کړے وی ۔ په اصل کښې
دَ خواجه بزرګ او دَ غوث الاعظم دَ ملاقات دا مسئله يوه مشکله تاريخي
مسئله ده ۔ او ډير مؤرخان ئې په شک کښې اچولی دی ۔ دَ مثال په طور
مولانا عبدالحليم شرر لکهنوي مرحوم پخپل کتاب "خواجه معين الدين چشتي" کښې ليکي :

"بعض خلقو دا ليکلی دی ۔ چه حضرت غوث الاعظم شيخ عبد القادر
جيلاني سره دَ خواجه بزرګ ملاقات شوے دے ۔ مګر دا خبره ۔ علم
معلوميږي ۔ ځکه چه حضرت غوث الاعظم دَ دوئ بغداد ته دَ راتللو نه
مخکښې په ربيع الثاني سنه ۵۶۱ھ کښے وفات شوے وو ۔"

چنانچه هم د دے قسم تاريخي مشکلاتو حل کولو دَ پاره دغه توجيه چه مونږ
بيان کړله ۔ په غير د دے نه دا مشکله مسئله حل کيدلے نشي ۔ او نه د دے مشهورو
تاريخي روايتونو تطبيق راتللے شي ۔

ځمونږ دا خيال دے ۔ چه دَ خواجه بزرګ دَ بيعت کولو صحيح تاريخ هم دغه
سنه ۵۶۲/۶۳ دے او د دے نه مخکښې دوئ دَ حضور غوث پاک نه فيض حاصل کړے
وو ۔ هر کله چه حضور خواجه بزرګ په روحاني طور سره په برصغير
پاک و هند کښې دَ غوث الاعظم عبد القادر جيلاني جانشين هم دے ۔ نو ډيره
ممکنه ده ۔ چه دَ غوث پاک دَ وفات نه مخکښې خدائ جل وعلی شانه دا سے اسباب
جوړ کړي وی چه دوئ دے بغداد ته تشريف راوړے وی ۔ او دَ هغوئ نه دے
فيض حاصل کړے وی ۔ دَ دے تاريخي مشکلے مسئلے دَ حل کولو دَ پاره چه کوم امکاني
وجه مونږه پورته بيان کړه ۔ هم د دغے په بنياد مونږه روستو دَ خواجه
بزرګ دَ ژوند مبارک حالات په تاريخي ترتيب سره بيان کړي دی ۔ او دَ دوئ
دَ بيعت کال مونږه سنه ۵۶۲/۵۶۳ھ ګڼړلے دے ۔

# دبیعت نه روستو

حضرت خواجه بزرګ چه څه وخت د حضرت شیخ المشائخ خواجه عثمان هاروني علیه الرحمة نه لاس نیوه اوکړه. نو هغه نه څو ورځې روستو د دوی پیر طریقت حضرت خواجه هاروني د حج په سفر روان شو. په دے سفرکښ خواجه بزرګ د خپل پیر طریقت سره ملګرے وو. مکے شریفے ته لاړل حج ئے اوکړو. او بیا د هغه ځائے نه مدینے منورے ته لاړل. او د حضرت رسول مقبول محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم د روضے مبارکے زیارت او سلام ئے اوکړلو. بیا د ے ځائ نه بدخشان (موجوده سمت شمالي افغانستان) ته راغلل. او په دے هغوړشا علاقه کښ چه کوم اولیاء الله او مشائخ وو. د هغوئ سره ئے ملاقاتونه او صحبتونه اوشول. غرض دا چه پوره لس کاله ئے په دے سیاحت کښ تیر کړل. او په سنه ۵۷۲ / ۵۷۳ کښ په دویم ځل بغداد ته راغلل.

دا به معلومول غواړي چه په دے لس کاله زمانه کښ دوی د بدخشان نه علاوه د نورو کومو کومو علاقو سیاحت کړے دے. ځکه چه دا ډیره ممکنه ده چه هم په دے اولنی لس کاله سفرکښ دوئ د موجوده سمت شمالي افغانستان نه علاوه د افغانستان سمت مشرقي او وادئ پلیښور ته هم تشریف راوړے وی.

څه موده په بغداد کښ د قیام نه پس حضرت خواجه عثمان هاروني او د هغوئ په ملګرتیا کښ حضرت خواجه بزرګ بیا په سفر روان شول. او پوره لس کاله پس په سنه ۵۸۲ / ۸۳ کښ په دویم ځل بیا بغداد ته راغلل. د حضرت خواجه بزرګ مشر خلیفه حضرت قطب الدین بختیار کاکی علیه الرحمة یو کتاب لیکلے دے د هغے "دلیل العارفین" نوم دے.

په دے کښې دَ خواجه بزرګ حکایات او ملفوظات جمع کړی دی. په دغے کښې دَ خواجه بزرګ نه یو دا روایت دے لیکلے دے" چه زه دَ خپل مرشد قبله خواجه عثمان هارونی سره په "سیوستان" کښې وم. دَ یو درویش خواجه صدرالدین سره ملاقات اوشو".

دلته دَ دے حوالے ذکر کولو نه څه مونږ. غرض په لفظ "سیوستان" کښې دے. دَ پخوانو مسلمانانو جغرافیه لیکونکی لکه ابن حوقل بغدادی دَ ۳۶۷ھ دَ جغرافیائی نقشے نه معلومیږی. چه په دغه زمانه "سیوستان" دَ هغه علاقے نوم وو. چه دَ موجوده سکهر نومے ښهر نه مغرب او شمال طرفته تر بده هیله (ضلع ډیره غازی خان. میانوالی. ډیره اسماعیل خان بنول. کوهاټ. پیښور.) او تر طوران (موجوده کوټه ډویژن) پورے یے حدود رسیدلے وو. ددے "سیوستان" دَ مرکزی مقام نوم ابن حوقل "سدوسان" لیکلے دے. ابواسحاق اصطخری "سیوان" لیکلے دے. بشاری مقدسی (۳۷۵ھ) "سدوستان" لیکلے دے. په موجوده جغرافیه سندھ کښې دے علاقے نوم سهوان دے چه دَ شمالی سندھ (لاړ) علاقه ددے ځائ نه شروع کیږی.

ددے پورته وضاحت مطلب دا شو چه حضرت خواجه بزرګ دَ خپل پیر طریقت خواجه عثمان هارونی په ملګرتیا کښې دَ سابق صوبه سندھ هغه علاقه چه دَ دریائے سندھ نه مغربی غاړے ته ده. دَ دے سیاحت هم کړے وو. او ددے په بناء دا اوئیلے شو چه تر موجوده سکهر او سیوهن پورے دَ سیاحت په دوران کښې دوی په دَ وادی پیښور. وادی کرم. او بلوچستان دوره هم فرمائیلے وی. په هغه زمانه خراسان د موجود کوټه او قلات ډویژنونو دَ شمالغربی او مغربی ځه حصے هم نوم وو.

په سنه ۵۸۲ ـ ۸۳ھ کښې چه په دریم ځل بغداد شریف ته راغلل.

نو د لته دَخو ورځو تیر ولو نه پس حضرت خواجه بزرګ دَخپل پیر طریقت نه دَ بغداد شریف په مقام اجازت واخیستلو. یو ځل بیا یې دَعالم اسلام سیاحت شروع کړلو. او دَ ټولو نه اول دَ حج کذارلو په اراده روان شول. په دے سفرکښې دوی دَ دمشق (شام) په لاره حجاز ته او رسیدل. مکے معظمے ته لاړل حج یې اوکذاره. بیا مدینے منورے ته راغے دَپاک رسول دَروضے مبارکے زیارت یې اوکړو. او ددے ځائ نه بغداد ته را روان شو. په لاره کښې یې دَعلماؤ ومشایخو سره ملاقاتونه اوکړل. او په سنه ۵۸۴ھ کښې په څلورم ځل بغداد شریف ته راغے. بغداد شریف ته دَ دوئ دا هم هغه راتلل دی. چه موږ په مخکښې په تفصیل سره پورے بحث کړے دے. او په دے موقع باندِ حضرت قطب الدین بختیار کاکی علیه الرحمة دَ دوئ نه بیعت کړے وو.

دا پیره حضرت خواجه بزرګ تقریبًا دوه کاله په بغداد کښې اوسیدلے وو. اولکه چه مخکښې ورته اشاره شوے ده. دَ سنه ۵۸۶ھ په شاؤخوا کښې یې دَ بغداد سره نژدے دَ اووه میلو په فاصله په "سنجان" نومے مقام کښې دَ حضرت خواجه نجم الدین کبریٰ علیه الرحمة نه هم فیض حاصل کړے وو.

ددے ځائے نه چه دوئ روان شول. نو همدان ته لاړل. په دے سلسله کښې دَکتاب "اخبار الصالحین" صفحه ۲۲ او کتاب خزینة الاصفیاء جلد ۱ صفحه ۲۵۷ هغه روایت صحیح نه دے. چه حضرت خواجه بزرګ علیه الرحمة دَ همدان په مقام کښې دَ حضرت خواجه شیخ یوسف همدانی علیه الرحمة سره ملاقات کړے وو. ځکه چه هم په دغه کتاب "اخبار الصالحین" او نورو تذکرو کښې په وضاحت سره یې دا لیکلی دی. چه حضرت شیخ یوسف همدانی په سنه ۵۳۵ھ کښې وفات شوے دے. نو هر کله چه خواجه بزرګ په سنه ۵۳۷ھ کښې (یعنے دَخواجه یوسف همدانی دَ وفات نه دوه کاله پس)

ﻫ دا حاشیه په صفحه ۲۱۳ کښې ملاحظه کړئ.

پیدا شوے دے۔ نو دَدوئی دواړو دَ ملاقات امکان څرنګ کیدے شی۔؟

خواجه بزرګ دَ همدان نه بیا تبریز[له] ته راغے۔ و تلے شی. چه دلته یے دَ حضرت ابوسعید تبریزی علیه الرحمة سره ملاقات اوشو۔ یو څو ورځے یے دَ دوئ سره تیرے کړے۔ حضرت شیخ ابوسعید دَ خپل وخت مشهور ولی الله تیر شوے دے۔ په زرګونو مریدان یے وو۔ او ئے یا کسان پکښ ډیر مشهور او نامور بزرګان تیر شویدی۔ چه یو دَ هغو نه حضرت شیخ جلال الدین تبریزی علیه الرحمة و. روستو دغه حضرت شیخ جلال الدین تبریزی دَ حضرت شیخ شهاب الدین مرید شوے وو۔ او دَ هغه په نامور و خلیفه ګانو کښ حسابیږی

خواجه بزرګ بیا دَ تبریز نه اصفهان ته تشریف راوړلو۔ او دلته دَ تاج الدین محمود اصفهانی سره یے ملاقاتونه اوشول۔ دوئ سره یے د دغے نه وړاندے په بغداد کښ هم صحبتونه تیر شوی وو۔ داپورته نه ده معلومه چه په اصفهان کښ دوئ څومره ورځے تیرے کړے دی۔ بیا د دغه ځائ نه

له تبریز دَ ایران یو مشهور ښهر دے۔ چه دَ ترکے او ایران په سرحد باندے دَ بحیرهٔ کیسپین په مغربی غاړه واقع دے۔

[۲] حضرت شیخ ابو یعقوب یوسف همدانی دَ خپله وخت امام او بے مثله عارف وو۔ دَ همدان په خوا کښ په "بوزنجر" نومے کلی کښے اوسیده۔ په سنه ۴۴۰ه کښ پیدا شوے وو۔ دَ والد ماجد نوم یے ابو ایوب حسین ابن شعیب وو۔ دَ شیخ ابوعلی فارمدی مرید وو۔ د دغے نه علاوه دَ شیخ عبدالله جوینی۔ شیخ حسن سمنانی۔ او ابو اسحاق شیرازی نه یے هم فیض حاصل کړے وو۔ حضرت محی الدین عبدالقادر جیلانی په علم تصوف کښ دَ دوئ نه فیض حاصل کړے وو۔ مولانا عبدالرحمان جامی په خپل کتاب نفحات الانس کښ دَ خواجه یوسف همدانی د درے تالیفاتو نومونه ذکر کړیدی۔

(۱) "منازل السالکین" (۲) "منازل السائرین"

(۳) "زبدة الحیوٰة" (علیهم الرحمة والغفران)

نه یې "خرقان" ته تشریف راوړلو. دَ "خرقان" په شاوخوا علاقه کښې یې په وعظ، تبلیغ، او روحانی فیوضاتو خور ولو کښې روغ دوه کاله تیر کړل. او د دے ځائے نه بیا آسترا باد ته روان شول.

پورته چه کوم بیان اوشو. دَ هغې په تفصیل چه نظر واچوو. نو دا سے معلومیږی چه خواجه بزرگ دَ خرقان نه استرا باد ته په سنه ۵۸۸ کښې روان شوید ے. او که فکر اوکړو نو دا هم هغه کال دے. چه په دے کښې دَ "ترائن" په مقام دَ شهاب الدین غوری او راجه پرتهوی راج ترمنځه جنګ شوے وو. راجه پکښې مړ شوے وو. او مسلمانانو ته فتحه حاصله شوے وه.

حضرت خواجه بزرګ چه استر آباد ته تشریف راوړلو نو دلته یې د دے ځائے دَ مشهور کامل ولی حضرت ناصر الدین سره ملاقات اوشو. حضرت ناصر الدین دَ ډیر اوږد عمر خاوند وو. دغه وخت دَ هغوی عمر دوه پاسه شپږ شلے کاله وُو. او په دوه واسطو سره دَ حضرت بایزید بسطامی علیه الرحمة وو. په دے لحاظ دا یو لا قابل احترام هستی ده. حضرت خواجه بزرګ څه موده دَ دوی سره تیر کړه او فیوضات یې ترینه حاصل کړل.

دَ استر آباد نه چه خواجه بزرګ رار وان شو. نو دَ مختلفو علاقو دَ سیاحت نه روستو هرات ته راورسیده. دلته دَ حضرت خواجه عبد الله انصاری (متوفی سنه ۴۸۵ھ) مزار مبارک واقع دے. حضرت خواجه انصاری ډیر لوئے ولی دَ خدا ئے تیر شوے دے. حضرت داتا ګنج بخش هم دَ دوی نه فیض حاصل کړے وو.

حضرت خواجه بزرګ چه هرات ته راغے. دَ ورځے به باهر ګرځیدلو. او شپه به دَ حضرت خواجه انصاری مزار مبارک ته حاضریدلو. دلته به یې ټوله شپه په عبادت تیرو له. او دَ ماخوستن په اودس به یې سحار مونځ ګذارلو.

دوئ دلته څه موده تیره کړه. خوچه خلق پرے رامات شول. نو دهرات نه د سبزوار په لوری روان شول.

په سبزوار کښې د څه مودے تیرولو نه پس خواجه بزرګ بلخ ته تشریف یوړلو. او هلته ئے د حضرت شیخ احمد حضرویه علیه الرحمة په خانقاه کښې قیام اوفرمائیلو. په بلخ کښې یو مشهور نامور حکیم او فلسفی عالم وو. چه د حکیم ضیاء الدین فلسفی په نوم مشهور وو. هغه د خواجه بزرګ مرید شو. په لږو ورځو کښې ئے د هغه تربیت اوفرمائیلو. د خلافت خرقه ئے ورته ورکړلو او په بلخ کښې د څه مودے تیرولو نه پس حضرت خواجه بزرګ غزنی ته روان شو.

داسے معلومیږی چه غزنی ته دوئ په سنه ۵۹۱ھ کښې رارسیدلے وی. او چه د تاریخی واقعاتو سره ئے مقایسه اوکړو. نو دا هغه نیټه ده چه په دے نیټه حضرت شهاب الدین غوری الملقب په معز الدین محمد ابن سام غوری د دهلی. اجمیر. سرسوتی. سامانه. کهرام. هانسی. قنوج د فتح نه وزګار شوے وو. او ډیر لوئ مال غنیمت سره واپس غزنی ته راروان شو.

په غزنی کښې چه په دے زمانه کښې کوم اولیاء الله موجود دی. په هغے کښې د شیخ عبد الواحد برهان غزنوی نوم زیات مشهور دے. باکماله بزرګ وو. د د. په مریدانو کښې حضرت شیخ نظام الدین ابوالمؤید مشهور بزرګ دے. د شیخ جمالی کنبوه په روایت د دوئ سره د حضرت خواجه بزرګ ملاقات تیر شوے وو.

دا نه ده معلوم چه په غزنی کښې حضرت خواجه بزرګ څومره موده تیره کړے ده. البته د بعض نورو واقعاتو نه په قیاس دا اندازه لګولے شو چه دوئ په سنه ۵۹۱ یا ۹۲ھ کښې د غزنی نه د کابل په لاره باندے راروان شوے وو. او د دغے نه روستو د پیښور په لاره باندے لاهور ته ئے تشریف راوړے وو.

لکه چه مخکښې مونږه د داتا ګنج بخش په تذکره کښې پرے بحث

کړے دے. لاهور ته دَ حضرت خواجه بزرګ دَ راتللو نیټه کال سنه ۶۰۱هـ ښودلے شوے دے. او دا بیان دَ شیخ جمالی کنبوه دَ تالیف "سیر العارفین" دے. لیکن دَ شیخ جمالی په دے پور ته بیان چه نظر واچوو. نو دے نتیجے ته رسیږو چه لاهور ته دَ خواجه بزرګ دَ راتللو صحیح نیټه په حقیقت کښ سنه ۵۹۶هـ / ۹۷ کیدلے شی.

په دے کال چه دوئ دلته راغلل. نو دَ حافظ محمد اسلام دَ روایت مطابق ئے دلته لس میاشتے تیرے کړلے. دَ حضرت داتا ګنج بخش علیه الرحمة په مزار مبارک ئے اعتکاف او فرمائیلو. او د دغے نه پس بیا ملتان ته لاړل. یوڅه کاله ئے هلته تیر کړل. او په سنه ۶۰۰ / ۶۰۱هـ کښ دوباره لاهور ته راغلل. په دے اعتبار شیخ جمالی چه په سنه ۶۰۰ / ۶۰۱هـ کښ دَ حضرت خواجه بزرګ دَ لاهور راتلل بیان کړی دی. دا ئے په حقیقت کښ دَ حضرت خواجه بزرګ په دوئیم ځل لاهور ته دَ راتللو د واقعه بیان کړے دے.

د دے پورتنی تفصیل په رنړا کښ چه خواجه بزرګ په (سنه ۵۹۶ / ۹۷هـ) کښ په اول ځل دَ راتللو نه روستو لس میاشتے او په دوئیم ځل په (سنه ۶۰۰ / ۶۰۱هـ) دَ راتللو نه روستو تقریباً دره کاله په لاهور کښ تیر کړی دی. ویلے شو چه دوئ څه کم او زیات څلور کاله په لاهور کښ تیر کړی وو.

شیخ جمالی دا هم وائی. چه دَ شهاب الدین غوری دَ شهادت سنه ۶۰۲هـ دَ واقع په وخت کښ خواجه بزرګ په لاهور کښ وو. دَ حضرت شیخ حسین زنجانی (متوفی سنه ۶۰۶هـ) سره ئے صحبتونه لرل. او بیا دَ شیخ زنجانی علیه الرحمة نه ئے رخصت واخیستلو او دهلی ته روان شو.

هر کله چه دَ شیخ شهاب الدین غوری دَ شهادت نه روستو په دهلی باندے حضرت قطب الدین ایبک بادشاه شوے وو. نو دے مطلب دا شو چه حضرت خواجه بزرګ په سنه ۶۰۳هـ کښ دَ قطب الدین ایبک دَ بادشاهئ

په زمانه کښې دَ پټیالے په لاره باندے دهلی ته تشریف وړے وو.

ځمونږه داوینا چه خواجه بزرګ په سنه ۶۰۳ھ کښې دهلی ته تشریف وړے دے. ددے تائید دَ یو بلے واقعے نه هم کیږی. چه مونږه روستو دَ حضرت خواجه فرید الدین ګنج شکر په تذکره کښې بیان کړے دے. دَ هغې خلاصه داده. چه څه وخت حضرت خواجه شاه جلال الدین تبریزی. حضرت شیخ قطب الدین بختیار کاکی. او حضرت شیخ اوحد الدین کرمانی درے واړه دَ بغداد شریف نه راروان شول. ملتان ته دَ حضرت شیخ بهاؤ الدین ذکریا ځائ ته راغلل. دغه زمانه ملتان باندے دَ ناصر الدین قباچه حکومت وو. او دغلته دوئ ته معلومه شوه چه حضرت خواجه بزرګ دهلی ته تشریف وړے دے. دے درے واړو بزرګانو چه دلته څه ورځے تیرے کړے. نو حضرت جلال الدین تبریزی واپس غزنی ته لاړلو. حضرت اوحد الدین کرمانی دَ بلوچستان په لاره واپس بغداد شریف ته لاړلو. خواجه فرید الدین ګنج شکر چه په دغه نیته هلک وو هغه هم ورسره بغداد ته لاړه. او حضرت قطب الدین بختیار کاکی علیه الرحمة دَ خپل مرشد قبله خواجه بزرګ سلام له دَ لاهور په لاره باندے دهلی ته لاړلو.

په دے پورتنی بیان به دَ تاریخ په رڼا کښې غور اوکړو. سلطان شهاب الدین غوری په سنه ۵۷۲ھ تا سنه ۵۷۸ھ کښې "دبیل او ګجرات" فتح کړو. نو دَ ملتان. اوچ. دیول یعنی تمامی سنده دَ فتح نه روستو خپل سپه سالار "علی کرماخ" ئے په سنده باندے والی مقرر کړو. او بیا چه په سنه ۵۸۲ھ کښې ئے لاهور فتح کړو. نو علی کرماخ ئے دَ سنده نه را بدل کړو. دَ لاهور نائب الحکومة ئے کړو. او دَ هغه په ځائ باندے ئے "ناصر الدین قباچه" دَ سنده نائب الحکومت کړو. بیا چه دَ دهلی او اجمیر دَ فتح نه په سنه ۵۹۱ھ کښې راواپس شو. نو په دهلی باندے "قطب الدین ایبک" نائب الحکومت کړو.

او بیا چه سنہ ۶۰۱ھ کښ په پنجاب کښ د ګکهړ قبیلے بغاوت اوکړ او دغے شورش د ختم کولو د پاره پخپله راغے. او دغه شورش ئے ختم کړو او په سنہ ۶۰۱ھ کښ لاهور ته راغے نو "قطب الدین ایبک" ئے هم هغه شان بدستور د دهلی نائب الحکومت اوساته چه روستو په سنہ ۶۰۲ھ کښ د شهاب الدین غوری د شهادت نه پس قطب الدین ایبک د دهلی بادشاه شو. د ایبک د مرګ سنہ ۶۰۷ کښ د ایبک په ځائے چه شمس الدین التمش بادشاه شو. نو قباچه د خپلے خود مختارئ اعلان اوکړلو.

د دے تاریخی پس منظر په رڼا کښ چه په پورتنی بیان نظر واچوئے نو معلومه شی. چه دا خو صحیح ده چه د حضرت قطب الدین بختیار کاکی ملتان ته د تشریف راوړلو په نیټه په ملتان د ناصر الدین قبا چه حکومت وو. ځکه چه سنہ ۵۸۲ھ نه هغه دلته حکمران وو. لیکن د بحث خبره دا ده چه خواجه بختیار کاکی د سنہ ۶۰۲ نه روستو تشریف راوړے دے. او د انتیجه مونږ د دے نه اوباسو چه که حضرت خواجه بزرګ بختیار کاکی په سنہ ۶۰۰ ۶۰۱ کښ ملتان ته راغلے وے. نو حضرت خواجه بزرګ به ئے ملتان کښ لید لے وے. که په سنہ ۶۰۲ھ کښ راغلے وے. نو بیا به ئے په لاهور کښ لیدلے وے. په دے وجه لازماً به هم دا اوایو چه خواجه بختیار کاکی سنہ ۶۰۳ھ په آخر کښ ملتان ته راغلی وو. او د حضرت بهاء الدین ذکریا نه چه ورته معلومه شوی وی. چه حضرت خواجه بزرګ دهلی ته تشریف وړے دے. نو دوئ به ورپسے هم په دغه کال سنہ ۶۰۳ھ دهلی ته روان شوی وی.

په دے اعتبار د خواجه بختیار کاکی علیه الرحمة دهلی ته د رسیدلو کال سنہ ۶۰۴ھ کیدلے شی او هر کله چه خواجه بختیار کاکی علیه الرحمة دهلی ته اورسید نو د دوئ سره یو ځائے خواجه بزرګ یو کال نور په دهلی کښ فرمائیلے دے. بیائے په دهلی کښ خواجه بختیار کاکی علیه الرحمة پخپل ځائے

باندے قائم مقام پریښی دے۔ او دوئ په ۶۰۵ سنه کښې اجمیر شریف ته تشریف وړے دے۔ اجمیر شریف ته دَ خواجه بزرګ خواجه خواجګان معین الحق والملة والدین حسن سنجری چشتی اجمیری علیه الرحمة دَ تشریف راوړلو صحیح تاریخ دغه ۶۰۵ھ دے او په دے سلسله کښې دَ تاریخ فرشته چه کوم بیان دے هغه بالکل واضحه دے. البته په دے خبره افسوس دے۔ چه روستو مؤرخانو او تذکره لیکونکو دَ هغه دغه صحیح بیان دَ خپلو فرضی او غلطو روایاتو او افسانو په پردو کښې داسے پټ کړے دے۔ چه په ډیره ګرانه ورته فکر ورسیږی. دَ تاریخ فرشته مؤلف لیکی :-

حضرت خواجه معین الدین حسن چشتی دَ قطب الدین ایبک په زمانه اجمیر ته تشریف راوړلو. په دغه نیټه په اجمیر باندِ دَ قطب الدین ایبک دَ طرف نه. حضرت سید حسن مشهدی المشهور په خواجه خنګ سوار. دَ ښهر داروغه وو. هغه په ډیره ګرمجوشئ او حسن عقیدت سره دَ خواجه بزرګ استقبال اوکړو.

لکه چه مخکښې هم ورته اشاره شوے ده. دَ شیخ جمالی دا بیان چه خواجه بزرګ په ۶۰۲ سنه کښې په لاهور کښې وُو. او دَ هغے نه روستو دهلی ته روان شویدے. او دَ تاریخ فرشته دا بیان چه خواجه بزرګ دَ قطب الدین ایبک په زمانه کښې اجمیر ته راغلے وو. دا دواړه دومره واضحه دی چه دے په رڼړا کښې دَ موجوده دورِ دَ مؤرخانو او تذکره لیکونکو هغه بیانونه صریحًا غلط ثابتیږی کوم چه په ۵۶۱ھ سنه کښې اجمیر ته دَ خواجه بزرګ راتلل ښائی. او هر کله چه دا ثابته شوه چه دا روایات غلط دی. نو بیا دَ ۵۶۱ھ سنه نه تر ۶۰۰ سنه پورے دَ دے منځ زمانے کوم واقعات چه په حضرت خواجه بزرګ پورے تړلی شوی دی. او په افسانوی رنګ ورکړے شوید ے. هغه یقیناً په توله غلط دی. حضرت خواجه بزرګ په ۶ رجب دَ ۶۳۳ھ سنه دَ دے دنیا نه سفر اوکړو او په اجمیر کښې دفن شو. علیه الرحمة والغفران.

# دَ بحث او توجه خبرې

هر کله چه دا معلومه شوله چه حضرت خواجه بزرګ په سنه ۵۹۱/۵۹۲ کښې دَ غزنی نه لاروان شوې دے. او په سنه ۵۹۶/۹۷ کښې لاهور ته رسیدلے دے. نو ددے نه دا هم واضحه کیږی چه دَ سنه ۵۹۱/۵۹۲ نه تر سنه ۵۹۶/۵۹۷ پورې دَ غلۀ منځنۍ پنځۀ شپږ کاله زمانه یې دَ غزنی او لاهور تر منځه په کابل او وادۍ پېښور کښې تیره کړې ده.

روستو مونږ به دَ حضرت سید مبارک غزنوی علیه الرحمة په تذکره کښې په دے خبره بحث کړے دے. چه دَ حضرت سلطان شهاب الدین غوریؒ سره دَ ترائن" (سنه ۵۸۶) په اولنی جهاد کښې په شماره د ولس ۱۲۰۰۰ زره غازیان وو. او ورپسې (سنه ۵۸۸) په دویمه غزا کښې دوه لکهه غازیان وو. چه په ... کښې تاریخ صولت افغانی په روایت یو لکهه دولس زره دَ مختلفو پښتنو قبائیلو غازیان وُو. او چه په سنه ۵۹۱/۹۲ کښې شهاب الدین غوری دَ دهلی نه راواپس شو. نو دَ مختلفو پښتنو قبائیلو چه کوم غازیان ورسره وو. هغه یې دَ اباسیند نه قبلے غاړے ته دَ وادۍ پېښور په سمه. هشنغر. او قبائلی علاقو. سوات. باجوړ. مهمند. تیراه. اود کوه سفید. او کوه سلیمان په علاقو کښې آباد کړل. (یعنے دَ موجوده پېښور ډویژن او ډیره ډویژن دَ اضلاعو او ایجنسو په علاقو کښې یې خواره کړل.

ددے دوه تاریخی واقعاتو په رڼا کښې فکر او کړو نو دا سے معلومیږی. چه حضرت خواجه بزرګ چه دَ غزنی نه راروان شو. نو دَ کابل او دَ کابل نه راښکته دَ افغانستان په سمت مشرقی او دَ "مغربی پاکستان" دَ شمالی" او جنوبی وزیرستان په علاقو کښې یې دومره موده تیره کړې ده. اڼې بنوں. کوهاټ په لاره باندے پېښور ته په هغه لاره باندې راروسیدلے دے.

په کومه نیټه چه حضرت شهاب الدین غوری سره د پښتنو قبائلو غازیانو نه وادئ پیښور ته را رسیدلی وو. او بیا روستو د شهاب الدین غوری په مشرئ کښې او د حضرت خواجه خواجګان معین الدین حسن چشتی او حضرت سید مبارک غزنوی په رهنمائیے کښې د پښتنو غازیانو قبائل دلته آباد شوی دی.

مونږ ره دا خبره د یو خو داسے تاریخی وجوهاتو په بناء کوو. چه تر او سه پورے په دے بحث نه دے شوے.

(الف) یوه وجه دا ده. چه د چشتیه خاندان سره د پښتنو قبائلو تعلق ډیر زوړ دے. ځکښې د سنه ۴۰۰ھ د زمانے د یو پښتون بزرګ حضرت مدیح بابا یوسفزی بحث تیر شویدے چه دے د حضرت خواجه ناصر الدین احمد یوسف چشتی مرید وو. او هم دغه رنګ د دُرانی قام مشر نیکه احمد هم د دے شیخ احمد یوسف چشتی مرید وو. او د ده پرے بانډ خیل لقب ابدال ایښے وو. یا لکه حضرت شیخ اتو خویشګی شوریانی شو. چه د حضرت شیخ مودود چشتی مرید وو.

نو په داسے ورځو کښې چه پښتانه قبائل د جهاد نه را واپس شوی وو او پدے نوے زمکه (وادئ پیښور وغیره) آبادیدل. نو په دغه شان وخت کښې چه د دوئ د مشرئ شوے پیر خلے یعنے سلسله عالیه چشتیه آفتاب عالمتاب حضرت خواجه بزرګ به دلته راغلے وو. نو یقیناً چه دوئ به تر ینه ولاړ ځار یدل. او د اکید لے نه شي چه خواجه بزرګ به د دوئ سره ورځے نه وی تیرے کړے.

(ب) بله وجه دا ده چه مونږ له د حضرت خواجه بزرګ په طریقت کار بانډے نظر اچول پکار دی. حضرت خواجه بزرګ چه برصغیر پاک وهند ته راتلوان وو. نو لکه د عظیم دریاب په شان په قلاره. سکون او وقار سره راروان وو. او حقیقت هم دا دے چه دے د روحانیت او عرفان یو عظیم الشان

سمندر وو. دَ حضرت خواجه بزرگ په روستو ټول ژوند چه یو نظر اچوو. نو معلومه شي چه دَ دوئ عمر شل کاله ژوند دَ خپل پیر طریقت خواجه عثمان هاروني په ملګرتیا کښ او بیا په سنه ۵۸۴ھ کښ دَ هغوئ نه دَ جدا کیدلو نه پس تر سنه ۵۹۲ / ۹۳ھ یعنې وادئ پیښور ته دَ راَرسیدلو دَ زمانې پورې.

په بیله بیله علاقه ګرځیدلو کښ تیر شوے دے. او:

(۱) دَ خپل وخت مشاهیر و علماؤ سره ئے لیدل کړي دَ هغوئ نه ئے فیض حاصل کړے دے.

(۲) په هره علاقه کښ چه کوم نیکبخت خلق وو. او دَ هغوئ په قسمت کښ دا لیکلي وو. چه دَ حضرت خواجه بزرګ نه فیض حاصل کړي. هغه ئے دَ کمال درجے ته رسولي دي. او بیائے هم په هغه علاقه کښ دَ خپل نائب په طور مقرر کړیدي او پرینښي دي. لکه دَ بلخ دَ ضیاء الدین فلسفي او دَ اصفهان دَ سید تاج الدین محمود مثالونه څمونږ دَ وړاندے دي.

(۳) او بعض مریدان چه دَ ذاتي تربیت دَ پاره ئے دَ خپل ځان سره دَ هغوئ ملګري کول مناسب ګڼړلي دي. هغه ئے دَ ځان سره اخیستي دي. او دَ دے تائید دَ هغه روایت نه کیږي چه "څه وخت خواجه بزرګ دَ لاهور نه دهلي ته تللو نو څلویښت مریدان ورسره ملګري وو. په هره علاقه کښ چه کوم پخواني اولیاء تیر شوي وو. دَ هغوئ په زیارتونو کښ ئے اعتکاف فرمائیلے دے. لکه دَ هرات دَ خواجه عبدالله انصاري. دَ بلخ دَ احمد خضرویه او دَ لاهور دَ شیخ علي هجویري داتا ګنج بخش مثالونه څمونږ دَ وړاندې دي.

مونږ دَ خواجه بزرګ دے دِ عام طریق کار په رنړا کښ که فکر او کړو. نو وئیلے شو چه په وادئ پیښور کښ چه دَ سنه ۶۰۰ھ دَ زمانے کوم مشاهیر مشائخ بزرګان تیر شوي دي. او مزارات ئے موجود دي. لکه حضرت خواجه ماییج باباؒ دَ مردان یا خواجه شیخ عليؒ بن یوسف غزنوي المعروف په باباصاحب دَ چارسدے شول. نو هیره ممکنه ده. چه حضرت خواجه بزرګ دَ

دَ دوئ مزاراتو له راغلے وی. او دلته ئے اعتکاف فرمائیلے وی.

بلکه دا چه په وادئ پیښور کښې او قبائیلی علاقو کښې چه دَ خواجه بزرگ کوم پښتانه خلیفه گان دی. ډیره ممکنه ده. چه کوم پښتانه قبائل چه دَ دوی په موجودگی کښې دَ هندوستان دَ جهاد نه را واپس شوی وو. او دلته آباد یدل. دَ دوئ دا پښتانه خلیفه گان هم په دغه غازیانو کښې مقتدر کسان وو. چه دَ دوئ نه به ئے لاس نیوه کړے وی. دَ کمال درجے ته به رسولی وی. خلافت به ئے ورکړے وی. او بیا به ئے هم په دے خپلو قبائلو کښې دَ خپلو نائبانو او خلیفه گانو په طور مقرر کړی وی.

**الف** دَ حضرت خواجه بزرگ دَ دے قسم پښتانه خلیفه گان مونږ په دوه برخو ویشلے شو. یو هغه دی. چه خواجه بزرگ لا هندوستان ته تشریف نه وو وړے. دَ مغربی پاکستان. خراسان. طخارستان (افغانستان) ایران. عراق دوره ئے کوله. او په دغه منځ کښې دے پښتنو مشاهیر و دَ حضرت خواجه بزرگ نه بیعت کړے وو. خلافت ئے حاصل کړے وو. او چونکه هلته په هندوستان کښې جهاد شروع وو. نو دوئ دَ خواجه بزرگ په هدایت هندوستان ته ځان رسولے وو. او هلته شهیدان شوی وو. دَ دے نه دا هم معلومیدلے شی. چه په کومو ورځو په هندوستان کښې جهاد کیدلو. او خواجه بزرگ په دے پورتنو ملکونو کښې دوره فرمائیله. نو دَ هغے یوه فائده دا هم وه چه دَ شهاب الدین محمد ابن سام غوری دَ امداد دَ پاره ئے دَ خپلو مریدانو خلیفه گانو او عامو مسلمانانو لښکرے لیږلے. او دَ دے لوئ دلیل دا دے چه دَ محمد ابن سام غوری سره په اولنی جهاد کښې فقط دولس زره کسان وو. او دوه کاله پس په دویم جهاد کښې ورسره دوه لکهه دَ غازیانو لښکر موجود وو. چه په هغے کښې دَ خواجه بزرگ کنږ مریدان او خلیفه گان هم شامل وو.

دَ حضرت خواجه بزرگ هغه پښتانه خلیفه گان چه هندوستان

ته دَخواجه بزرګ دَ تللو نه وړاندې په جهاد ونو کښې شهیدان شوي دي.
دَ یو څو مشاهیر و بزرګانو نوم ونه دا دي.

(۱) حضرت شیخ احمد کابلي رحمة الله علیه چه په سنه ۵۸۶ھ کښې ئې خرقه دَ خلافت حاصله کړې وه. او په محرم سنه ۵۹۶ھ کښې په بنارس کښې شهید شوې وه.

(۲) حضرت شیخ احمد غلزئي چه په محرم سنه ۵۸۰ھ کښې ئې خرقه دَ خلافت حاصله کړې ده. او په ۱۸ ذي قعدة الحرام سنه ۶۰۳ھ کښې په قنوج کښې شهید شوې دے.

(۳) حضرت احمد خان دُرانی چه په صفر سنه ۵۸۰ھ کښې ئې خرقه دَ خلافت حاصله کړې وه. او په ۴ شعبان سنه ۵۹۰ھ په مقام دَ اجمیر په جهاد کښې شهید شوے وو.

(۴) حضرت یعقوب خان چه په ۱۴ ربیع الاول سنه ۵۸۷ھ کښې ئې خرقه دَخلافت حاصله کړې وه او په سنه ۵۸۹ھ کښې دَ ترائن او دهلي په جهاد کښې شهید شوے وو.

ب) دویم قسم دَ حضرت خواجه بزرګ هغه خلیفګان دي. چه دَ جهاد نه واپس شوي دي. او دَ مغربي پاکستان او افغانستان په علاقو کښې پاتې شوي دي. او مزارات ئې دلته موجود دي. چه په هغې کښې دَ یو څو مشاهیر و بزرګانو نوم ونه دا دي:-

(۱) حضرت خواجه سبحان کرښکي چه په سنه ۵۹۱ھ کښې ئې خرقه دَخلافت حاصله کړې ده. او په سنه ۶۱۲ھ کښې وفات شوے دے. مزار مبارک ئې دَ مهمند ایجنسي دَ شبقدر په علاقه کښې دے.

(۲) حضرت خواجه فقیر محمد علیه الرحمة چه په سنه ۵۸۸ھ کښې ئې خرقه دَخلافت حاصله کړې وه. او مزار مبارک ئې دَ خیبر ایجنسئ په جمرو د کښې دے. او په جمادي الآخر سنه ۶۱۱ھ کښې وفات شوے دے.

(۳) حضرت خواجه یادګار خُرم چه په سنه ۵۸۹ھ کښې ئې خرقه دَ خلافت حاصله کړې ده. په محرم سنه ۶۴۰ھ کښې وفات شوے دے. او مزار مبارک ئې په غزنی کښې دے.

(۴) حضرت خواجه سبز یادګاری چه په سنه ۵۸۱ھ کښې ئې خرقه دَ خلافت حاصله کړې ده. په ذی الحجه سنه ۶۴۵ھ کښې وفات شوے دے. او مزار مبارک ئې په قندهار کښې دے.

د دے نه علاوه دَ خواجه بزرګ بے شمیره خلیفه ګان نور هم دی. چه په مختلفو تذکرو کښې دَ دوئ دَ شپیته وُ خلیفه ګانو ذکر موجود دے. مونږ دلته دَ حضرت قطب الدین بختیار کاکی. حضرت عبد الله کرمانی ذکر مناسب ګنړو. لیکن د دغے نه وړاندے دَ یوے بلے خبرے وضاحت ضروری معلومیږی. هغه دا ده چه دَ تصوف او طریقت په اصولو کښې یوه قاعده ده. چه دَ هر یو پیر طریقت خلیفه ګان په دوه قسمه دی.

(الف) یو قسم ته "خلیفه اکبر" وائی. دَ هغے مطلب داوی چه دَ پیر طریقت دَ کمال ټولے درجے هغه ته حاصلے وی. او چه روسته هر څوموره مریدان دَ دغه پیر نه طریقت کوی. نو دَ خرقه خلافت ورکولو نه روستو یا وړاندے دَ هغه دَ تربیت کار دغه خلیفه اکبر ته حواله وی. په دے اعتبار سره خلیفه اکبر په حقیقت کښې دَ خپل پیر په ژوند باندے دَ هغه جانشین وی. او دَ خپل پیر دَ ټولو مریدانو سرپرست اعلیٰ وی. او هغه دَ روحانی رازونو امانت داروی.

(ب) او دویم قسم ته "خلیفه اصغر" وائی. د دے مطلب داوی. چه دَ خلافت خرقه ورته دَ خپل پیر دَ طرف نه ورکړے شوے وی. لیکن تربیت ئې "خلیفه اکبر" کړے وی. او بیا سره د دے نه چه خلیفه اکبر ئې تربیت کړے وی. لیکن بیعت ورته دَ خپل مرشد قبله نه حاصل وی. نو دَ ادب دَ وجے نه هغه دَ

خلیفه اکبر مرید نه شي ګڼلے کېدے.

البته که دَ مرشد قبله په ژوند خلیفه اکبر چا ته بیعت ورکړي. او بیا خلیفه اکبر اولګیږي. دَ برکت دَ پاره دغه خپل مرید دَ خپل مرشد قبله په حضور کښ پیش کړي. لکه چه حضرت قطب الدین بختیار کاکي خپل مرید خواجه فرید الدین شکرګنج دَ حضرت خواجه غریب نواز په حضور کښ پیش کړے وو. نو په دغه صورت کښ اګر که مرشد قبله دَ مهربانۍ په وجه دَ خپل خلیفه اکبر مرید له فیوضات ورکړي. بیا هم هغه مرید دَ خلیفه اکبر مرید ګڼلے شي. او دَ مرشد قبله فیوضات ئے خصوصي نسبت ګڼلے شي.

ددے وضاحت په رڼا کښ دَ حضرت خواجه خواجګان معین الدین حسن چشتي علیه الرحمة فقط یو خلیفه اکبر وو.

# حضرت قطب الدین بختیار کاکي علیه الرحمة

حضرت قطب الدین بختیار کاکي علیه الرحمة دَ ټولو پښتنو مورخینو په متفقه روایت سره په قام باندے سیّد افغان دے. او دَ بختیاري ساداتو دَ قبیلے نه دے. په تاریخ صولت افغاني کښ ددے بختیاري قبیلے ذکر په تفصیل سره موجود دے. چه دا قبیله په لویه کښ په مورث اعلی غرغښت ورګډه بیږي. دَ بختیاري قبیلے یو شاخ په ایران کښ اوسیدلو. چه نن ورځ هم په ایران کښ بختیاري قبیله یوه مقتدره قبیله ده. دَ دے قبیلے یوه کورنۍ دَ ماوراء النهر په اوش نومے علاقے کښ اوسیدل. او دغلته په ۲۲ تاریخ دَ رمضان المبارک ۵۴۸ھ کښ خواجه قطب الدین بختیار کاکي پیدا شو.

ابتدائي تعلیم ئے دَ مولانا ابو حفص نه حاصل کړے وو. دَ هغه ځائے نه اصفهان ته لاړلو. بیا بغداد ته. او هلته ئے دَ خواجه بزرګ نه بیعت

کړے وو۔ او خرقه دَ خلافت ئے حاصله کړے وه۔ بیا دَ هغوئ نه جدا شوے وو۔ دَ اسلامي دنیا سیاحت ئے کولو۔ اولکه چه وړاندے ورته اشاره شوے ده۔ په کوم وخت کښ چه خواجه بزرګ دهلي ته رسیدلے وو۔ دے هم هلته لاړلو۔ دَ هغوئ په خدمت کښ حاضر شولو۔ او بیا چه کله خواجه بزرګ دهلي نه تشریف یوړلو۔ نو دے ئے په دهلي کښ په خپل ځائ قائم مقام پریښودلو۔

سلطان قطب الدین ایبک او دَ هغه نه روستو سلطان شمس الدین التمش ورسره ډیر عقیدت لرلو۔ التمش ئے په خاصو م[illegible] انو کښ وُو۔ دَ دهلي شیخ الاسلام جلال الدین بیتالي ترینه بیعت کړے وو۔ قاضي حمید الدین ناګوري چه په اصل کښ دَ خواجه بزرګ خلیفه وو۔ هغه به دَ دوئ په خدمت کښ حاضر وو۔ دَ دهلي ټول لوئ واړه۔ امیران۔ عالمان او مشائخ ئے دَ حد نه زیات معتقد وو۔ دَ دوئ ډیر مریدان او خلیفه ګان وو۔ چه په دغه ټولو کښ خلیفه اکبر ئے حضرت شیخ الشیوخ فرید الملة والدین خواجه ګنج شکر علیه الرحمة وو۔ (چه روستو به ئے تذکره راشي۔)

حضرت قطب الدین بختیار کاکي علیه الرحمة دَ دهلي خواته په "مهرولي" نومے مقام کښ اوسیده۔ او هم هلته په څلورم تاریخ دَ ربیع الاول سنه ۶۳۳ وفات شو۔ او هم هلته ئے مزار مبارک جوړ شو۔

## حضرت سلطان شمس الدین التمش

په دوئ پسے پنځه میاشتے روستو یعنے په څوارلسم تاریخ دَ شعبان المعظم سنه ۶۳۳ھ دَ دوئ مخلص مرید سلطان شمس الدین التمش علیه الرحمة وفات شو۔ چه مزار مبارک ئے دَ قطب مینار سره متصل جوړ

شوی جماعت کښې دننه په شمالی حجره کښې دے۔ ساده جوړ دے۔ خواته ورسره نور قبرونه نشته دے۔ پورے پورے چت هم نشته دے۔ زه (عبدالحلیم اثر) ئے زیارت او سلام له ورغلے ووم۔ مزار مبارک ئے د فیوضاتو او انوارو مرکز دے۔ حضرت سلطان شمس الدین التمش علیه الرحمة د حضرت خواجه بزرګ نه هم فیض موندلے وو۔

## حضرت خواجه عبدالله کرمانی

د حضرت خواجه بزرګ علیه الرحمة په مشاهیرو خلیفه ګانو کښې حضرت خواجه عبدالله کرمانی د اوچتے عرفانی او روحانی مرتبے خاوند وو۔ د اسلام د تبلیغ د پاره بنګال ته تشریف وړے وو۔ (د موجوده بنګال) په "پیر بهوم" نومے ځائے کښې اوسیدلو۔ په سنه ۶۳۶ھ کښې هلته وفات شو۔ مزار مبارک ئے مرجع د خاص و عام دے۔ علیه الرحمة والغفران"

## د حضرت خواجه بزرګ تعلیمات

حضرت خواجه قطب الدین بختیار کاکی علیه الرحمة "دلیل العارفین" نومے یو کتاب لیکلے دے۔ چه په هغے کښې د خواجه بزرګ ملفوظات راجمع کړیدی۔ او د دوی پاکیزه ارشادات او تعلیمات ئے رانقل کړیدی۔

د خواجه بزرګ یو څو ارشادات عالیه دادی:۔

حضرت خواجه بختیار کاکی فرمائی چه خواجه بزرګ ډیر خوش خلقه انسان وو۔ د مینے نه ډک او نرم طبیعت مالک وو۔ عفوه۔ بخښنه صبر، شفقت۔ او پت مروت ساتل د دوی خاص صفتونه وو۔ د تعصب نه بالکل پاک وو۔ هم داوجه وه چه د هر مذهب او هر فرقے خلقو به د دوی قدر کولو۔ او په عقیدت سره به د دوی دربار ته راتلل۔

او په اولنی ملاقات کښې به پرې مین کیدل ۔ په ټول عمر کښې ما دا نده لیدلې چه چرته دوئ کوم یو چا ته قهر یا غصه کړې وی ۔

خواجه بزرګ فرمائي:-

(۱) د مؤمن معراج مونځ دے ۔ درے نه په غیر د الله تعالیٰ د قرب درجه نه شی حاصلیدلے ۔

(۲) مونځ د الله تعالیٰ یو امانت دے ۔ چه بندګانو ته یې سپارلے دے چنانچه په بندګانو دا واجب دی ۔ چه د پاک خدائي په دے امانت کښې هیڅ قسم خیانت او نه کړی ۔ او بله دا چه رکوع او سجده دے په صحیح طریقه سره ادا کوی ۔

(۳) متوکّل (یعنې په خدا ے توکل کوونکے ) په اصل کښې هغه څوک دے ۔ چه په غیر د خدای نه د بندګانو نه امداد نه غواړی ۔

(۴) بښې لاس د خوراک او مخ وینځلو د پاره دے ۔ او ګس لاس د استنجا د پاره دے ۔ بنده چه جماعت ته ننوزی ۔ پکار دا چه اول ښی پښه د ننه کړی ۔ او چه د جماعت نه باهر ته ځی ۔ نو اول دے ګسه پښه را بهر کوی ۔

(۵) په صحبت، مجلس، ناسته ولاړه کښې خامخا تاثیر وی ۔ که بد عمله سړے د نیکانو خلقو سره کښینی نو ډیره ممکنه ده ۔ چه دے هم نیک شی ۔ همغه شان نیک سړے که د نا کاره خلقو سره کښینی، پاسی، نو دے به هم ناکاره شی ۔ هرچا چه څه موندلی دی ۔ هغه یې د صحبت او مجلس نه موندلی دی ۔ د نیکو کارو خلقو سره د کیناستلو په برکت سړی ته نعمتونه په لاس ورځی ۔ د نیکانو خلقو سره کیناستل د نیک کار نه ډیر غوره دی ۔ او د بد کاره خلقو سره کیناستل د بد کار نه هم نا کاره دی ۔

(۶) ما د حضرت خواجه عثمان هارونی علیه الرحمة نه اوریدلی دی ۔ چه کوم سړی کښې دا درے خویونه موجود وی ۔ نو یو هغه شه چه هغه د

خدای پاک دوست دے۔

(الف) چه سخاوت ئې دَ سمندر دَ دریاب په شان سخاوت وی (یعنی عام وی دَ هرچا دَ پاره وی۔)

(ب) چه شفقت ئې دَ نمر په مثال وی (په وچه په لمده په سمه په غرو یو شان وی۔)

(ج) چه تواضع (عاجزی وخاکساری) ئې دَ زمکې په شان وی (هریو بار اودَ هرچا بار زغمی۔)

(۷) په گناه کولو تاسو ته دومره نقصان نه شی رسیدلے۔ څومره چه دَ یو مسلمان رورپه بے عزته کولو رسیدلے شی۔

(۸) په ټولو کښې بهتر وخت دَ بنده دَ پاره هغه دے چه زړه ئې پکښې دَ وسوسونه خالی وی۔

(۹) درویش هغه ته وئیل پکار دی۔ چه دَ هغه دَ دلبار نه څوک حاجتمند بنده تشه جولئ لاړ نه شی۔

(۱۰) دَ عارف (ولی دَ خدائ) مثال دَ نمر دے۔ ټوله دنیا پرے رو ښانه وی۔ او دَ دنیا هیڅ څیز دَ هغه دَ رو ښانائې نه محرومه نه وی۔

# حضرت شیخ المشائخ سیّد مبارک الغزنویؒ

(سنہ ۶۳۲ھ)

دَ حضرت شیخ شهاب الدین سهروردی علیه الرحمة دَ کومو خلیفه گانو مریدانو په برکت چه په برصغیر پاک او هند کښې دَ دین اسلام رڼا خوره شوې ده. په هغوئ کښې دَ دوی یو ممتاز خلیفه حضرت سید نور الدین مبارک الغزنوی علیه الرحمة وو. چه دے دَ حضرت شیخ الشیوخ شهاب الدین سهروردی خوریئے هم وو. او دَ پلار دَ طرف نه دَ نسب سلسله ئے حضرت زید ابن امام علی زین العابدین رضی الله عنه ته رسیدلے وه. په دغه مناسبت سره دَ دوی خاندان دَ غزنی دَ ساداتو په خاندان کښې په زیدی ساداتو مشهور ره ده.

په دغه زمانه کښې په غزنی باندے دَ حضرت سلطان شهاب الدین الملقب په معز الدین محمد ابن سام غوری حکومت وو. حضرت محمد ابن سام غوری دَ حضرت شیخ الاسلام والمسلمین شیخ شهاب الدین سهروردی علیه الرحمة سره عقیدت لرلو. او دَ هغوئ مرید وو. او هر کله چه دے نامور سلطان دَ دین اسلام دَ سرلوړئ دَ پاره غزاګانے کوُلے. نو په هغه مناسبت سره حضرت شیخ الاسلام په محمد ابن سام باندے خپل خصوصی لقب شهاب الدین ایښے وو. حضرت سلطان شهاب الدین غوری په سنہ ۵۳۰ھ کښې پیدا شوے. او په سنہ ۵۶۹ھ کښې بادشاه شوے وو. دَ طبقات ناصری (صفحه ۱۱۶ طبع کلکته) دَ روایت مطابق په سنہ ۵۷۱ھ کښې او تاریخ فرشته دَ روایت مطابق په سنہ ۵۷۲ھ کښې ئے ملتان فتح کړو. دَ ملتان په دے تاریخی غزا کښې دَ حضرت ملکیار غرشین علیه الرحمة هغه رجزیه نظم په هر لحاظ بلندے دَ یاد

ساتلو دے۔ چه دَ تاریخ په هر دور کښې دَ ملّت اسلامیه دَ مجاهدینو په زړه او روح کښې دَ الله تعالیٰ په حقله لاره اسلام کښې دَ جانثارئ او جانبازئ روح تازه کوی۔ فرمائی:

خښتن مومّل دے
اوس مو یرغل دے
هیواد دَ بل دے

غازیانو کورئ ✤ خښتن مومل دے
تورے تیرے کړئ ✤ دښمن مړے کړئ!
منګلے سرے کړئ ✤ خله به تښتو!

خښتن مومّل دے

که تینګ کړو زړونه ✤ پرے برے یُو نه
چه زمری یُو نه ✤ اسلام راښخه دے

خښتن مومل دے

غازیانو راشئ! ✤ ټول شاؤخوا شئ!
دَ شهاب پر ملاشئ! ✤ دُښمن موغوځ کړئ!

خښتن مومل دے

هم په دغه کال ۵۷۲ھ کښې ئے "اُچ" هم فتحه کړو۔ او خپل فوځی "علی کرماخ" ئے په سنده حکمران مقرر کړو۔ او واپس غزنی ته لاړه په ۵۷۵ھ کښې سلطان یو ځل بیا دَ غزنی نه پیښور ته کوچ اوکړ۔ پیښور ښهر او پنجاب مغربی ضلع ئے فتح کړے۔ او چه د دے علاقو دَ انتظام نه فارغ شو په ۵۷۷ھ کښې ئے په لاهور حمله اوکړه۔ په لاهور باندِ سلطان خسرو ملک غزنوی بادشاه وو۔ مقابله ئے اونه کړے شوه۔ قلابند شو۔ بیا ورغه اوکړه۔ خپل ځوئ یرغمل ورکړو سلطان شهاب الدین قلابندی او چتر کړه غزنی ته واپس شو او ټول حال ئے خپل رور سلطان غیاث الدین غوری ته بیان کړے۔

دَ پنجاب دَ کښتالے نه چه اوزګار شو او خسرو ملک هم ماتحتی او منله نو دَ ګجرات
دَ راجه او دَ قلعه الموت دَ ملحدانو دَ شورش ختم کولو په تابیا کښِ شو. دَ ۵۷۸ سنه
په ابتداکښِ دَ غزنی نه یو ځل بیا را او خوزیدلو. دَ وادی سنده په جنوب کښِ
دَ سمندر په غاړه مشهور تاریخی ښهر "دیبل" یے فتح کړو. او ورپسے هم په
دغه سنه ۵۸۲ کښِ یے دَ ګجرات دَ علاقے په دارالحکومت "انهلواړه" حمله
وکړله. او چه د دغے نه را واپس شو او په سنه ۵۸۲ کښِ یے لاهور فتح کړو.
نو "علی کرماخ" یے دَ سنده نه لاهورته رابدل کړو. دَ لاهور او ملتان
دواړو صوبو حکومت یے ورته حواله کړو. او دَ هغه په ځای په سنده
باندے یے "ناصرالدین قباچه" نائب الحکومت کړو.

په سنه ۵۸۵ کښِ سلطان شهاب الدین غوری دَ دهلی دَ
فتح کولو په غرض روان شو. دَ دهلی ته دَ رسیدلو نه وړاندِ دَ دهلی نه
شمال مغرب طرف ته دَ (۷۹) میلونو په فاصله باندے یو ښهر دے
چه دَ هغے نوم دے (هانسی، حصار) دلته یے دَ "راجه رائی پتهورا" دَ لښکر
سره اولنی مقابله او شوه. دَ جهاد په دے موقع دَ مسلمانانو په دے لښکر کښِ
چه کوم دوه مشهور اولیاء الله وو. یعنی حضرت شیخ نعمت الله ولی، او حضرت
شیخ میرحسین علیهم الرحمة. نو په دوی کښِ دغه اولنی بزرګ حضرت شیخ
نعمت الله ولی دَ هانسے نومے ښهر په خوا کښِ شهید شو. چه مزار یے د دے ښهر
په قلعه کښِ دننه شمال طرفته واقع دے. د دے بزرګ نه علاوه د دے ښهر په
غزا کښِ چه کوم نور بے شمیره اولیاء الله او عام مسلمانان شهیدان شوی
وو. او په یو شریک لوئی قبر کښِ یو ځای دفن کړے شوے وو. نن ورځے په
دغه مناسبت سره د دغه شهیدانو دے شریک او اجتماعی قبرته "ګنج شهیدان"
وائی. لکه چه دَ وادی پېښور په علاقه کښِ د دے نمونے "ګنج شهیدان" ته
"چهل ګزی" وائی. د دغه قسم یو "ګنج شهیدان" دَ هانسی ښهر قلعه نه باهر موجود دے.

دَهانسي او حصار دَ فتح نه روستو چه شهاب الدین غوري دَ دهلي په طرف مخ په وړاندې روان شو۔ او په سنه ۵۸۶ھ مطابق سنه ۱۱۹۰ء په ترایڼ مقام کښې دَ کفارو او مشرکانو په خلاف جهاد کښې حضرت سلطان شهاب الدین غوري پخپله زخمي شو۔ بلکه داچه دَ کفارو فوځ دَ یو لکه نه هم زیات وو۔ او دَ غازیانو لښکر فقط دولس زره کسان وو۔ بهرحال دَ مسلمانانو فوځونه راوتښتیدل۔ او مشکلات ورته پیښ شول۔ نو حضرت سلطان معزالدین محمد ابن سام غوري را اوګرځیدلو۔ دَ دهلي دَ فتح کولو دَ پاره یې دَ نوي سر نه تابیا شروع کړه۔ او په وطن کښې دَ غازیانو یو طاقتور لښکر یې په یو نیم کال کښې تیار کړو۔ دلته دا یاد لرل پکار دي۔ چه په سنه ۵۸۷ھ کښې چه دَ "راۍ پتهورا" سره دَ مسلمانانو کومه غزا شوې ده په عامو تاریخونو کښې دَ هغې مقام نوم "ترائن" او "تراوړي" لیکلې شوي دې۔ البته په تاریخ مخزن پنجاب جلد ۱ صفحه ۲۳ کښې دَ دې مقام نوم "ترورۍ" ذکر شوي دي۔ دا مقام دَ "سرهند" په علاقه کښې په دغه سړک آباد دې۔ چه کوم دَ کرنال نه تهانیسر ته راغلې دې۔ دغه تروړي نیمې مقام دَ کرنال نه اته میله شمال طرف ته او دَ تهانیسر نه پنځلس میله جنوب طرف ته واقع دې۔

غرض داچه هر کله حضرت شهاب الدین غوري دَ "تروري" دَ دې غزا نه راواپس شو۔ غزني ته اورسیدلو۔ او په ټول وطن کښې دَ عامو مسلمانانو عموماً پښتنو غازیانو دَ لښکر تیاره ولو په تکل کښې شو۔ نو ورسره بغداد شریف ته دَ حضرت شیخ الشیوخ شهاب الدین عمر سهروردي علیه الرحمة په خدمت کښې یوه عریضه اولیږله چه که حضرت شیخ الشیوخ مهرباني اوفرمائي۔ او دَ هندوستان په مرکز دهلي باندې دَ مخکښې ځله راتلونکې دویمې حملې او ویم جهاد په موقع پخپله تشریف راوړي۔ او دَ اسلام دَ غازیانو رهنمائي اوکړي۔ چه ستاسو په دعا او روحاني تصرفاتو په برکت مسلمانانو غازیانو ته کامیابي حاصله شي۔

چنانچه دَ حضرت معز الدین محمد ابن سام غوری د دے درخواست په جواب کښې حضرت شیخ الاسلام والمسلمین په کمال مهربانیُ سره په دے موقع باندے خپل لقب "شهاب الدین" په محمد ابن سام غوری باندے کیښودلو. او جواب ئے ورته راولیږلو. چه زه بخپله ځانی عاجزه شوے یم. دَ سفر کولو قابل نه یم او ځما خور دیے

## سید مبارک الغزنوی

ته ام هدایت او اجازت ورکړلو. چه دَ غزنی نه دَ مجاهدین اسلام دَ لښکر وسره او ځما دَ نورو بے شمیره مریدانو او خلیفه گانو سره په دے راتلونکے غزا کښې ستاسو سره شامل شی. دَ جهاد او تبلیغ فریضه ادا کړی. ځما نیکے دُعا گانے به درسره وی. او انشاءالله تعالیٰ دَ خدائے په فضل او کرم سره به فتح او نصرت ستاسو نصیب شی.

چنانچه حضرت سید مبارک الغزنوی علیه الرحمة دَ مجاهدین اسلام دَ یو لوئ لښکر او حضرت شیخ شهاب الدین سهروردی دَ بے شمیره خلیفه گانو او مریدانو سره دَ حضرت معز الدین محمد ابن سام غوری په ملګرتیا کښې راروان شو. او په دے جوړ دَ غازیانو د الښکر سرهند ته راورسیدلو.

د دے دویمے غزا دَ پاره چه دَ غازیانو کوم لښکر په د اپیره کارا روان شوے وو. په دے کښې دَ پښتنو دَ مختلفو قبیلو په زرگونو غازیان شامل وو. دَ تاریخ صولت افغانی دَ روایت مطابق دَ "تروړی، ترائن" په دے دویمه غزا کښې دَ حضرت سلطان شهاب الدین غوری او حضرت سید مبارک الغزنوی سره دَ غزنی. خلات. قندهار او پیښور. بلوچستان دَ پښتنو قبائلو یو لکھ دولس زره غازیان میړونه شامل وو. دَ تاریخ فرشته دَ روایت مطابق د دویم جهاد د پاره تیار شوی لښکر به دے وجه پښتانه غازیان په زیات تعداد کښې شامل کړے شوی وو. چه دَ "ترائن" په اولنی جنګ چه هر څو مره پښتانه میړونه وو. شوی په میدان جنګ

دَ سلطان شهاب الدین غوری سره هم کاب پلتے شوی وو۔ خپل ځانونه یې قربان کړی وو۔ شهیدان شوی وو۔ لیکن دَ ماتے کولو او تیښتے کولو بدنامی یې په ځان نه وه پورې کړے۔ او کله چه شهاب الدین غوری په میدان جنګ کښ زخمی شوے بیهوشه پروت وو۔ نو یو غلجی پښتون میړه دَ میدان نه سلامت را اوکښلے وو۔

بیا چه کله دَ دهلی دَ فتح نه په سنه ۵۹۱ھ کښ راواپس شول. نو حضرت شهاب الدین غوری اولګیده۔ دَ پښتنو قبائلو دغه غازیان یې په کوه سلیمان۔ کوه کسی۔ کوهستان ژوب۔ ډیره۔ بنون۔ کوهاټ۔ پېښور۔ هشنغر۔ سوات او باجوړ کښ آباد کړل۔ او دے آبادکارئ په دوران کښ هم دَ دوئ روحانی رهنمائی حضرت غازی سید مبارک الغزنوی علیه الرحمة کوله۔

دَ تاریخ مخزن پنجاب او تاریخ صولت افغانی د روایت مطابق په سنه ۵۸۸ھ مطابق سنه ۱۱۹۲ء کښ سلطان شهاب الدین غوری په هغه اولنی مقام "ترائن" "تروری" بانسے دَ کفار او مشرکینو په لښکر دویمه حمله اوکړه۔ دَ تاریخ هند دَ روایت مطابق دَ مسلمانانو مجاهدینو په لښکر کښ دَ انیا زره پیاده فوځ نه علاوه یولکه شل زره سواره وو۔ او دَ دوئ په مقابله کښ دَ کفار او مشرکینو لښکر دَ حد او حساب نه بهر وو۔

مګر دَ لوئ په مهربانئ. دَ حضرت شیخ الشیوخ شهاب الدین سهروردی رح دَ نیکو دعاګانو او دَ حضرت سید مبارک غزنوی ؒ دَ روحانی تصرفاتو په برکت مسلمانانو ته فتح او نصرت نصیب شو۔ دَ "تاریخ مخزن پنجاب" دَ روایت مطابق په زرګونو مشرکین قتل شول. او په مقابله کښ په زرګونو مسلمانان هم پکښے شهیدان شول او دَ هند وانو فوځونو ماتے اوکړله۔ دَ هندوانو مشر راجه "رائے پرتهوی راج" ژوندے اونیولے شو۔ او قتل کړلے شو۔ ورپسے بیا مخکال له په سنه ۵۸۹ھ ۱۱۹۲ کښ دَ هندوستان دارالحکومت دهلے فتح شو۔ او دَ اسلام بیرغ پرے اودرولے شو۔

دَ یو رتني تفصیل له مخه حضرت سید مبارک الغزنوی علیه الرحمة په سنه ۵۸۹ھ مطابق سنه ۱۱۹۳ء کښې دهلي ته رسیدلے وو. هم هلته آباد شو. دَ مولانا عبدالحق محدّث دهلوی دَ روایت مطابق دوئ په سنه ۶۳۲ھ کښې وفات شوی دی. او مزار مبارک ئې دَ مشهور "حوض شمسي" نمرخاته طرفته دے او مرجع دَ عام او خاص دے۔

په دغه کتاب (اخبار الاخیار) دَ محدّث دهلوی کښې دَ دوئ په تذکره کښې لیکي:-

حضرت سید مبارک الغزنوی دَ حضرت شیخ الشیوخ شهاب الدین سهروردی خلیفه وو. دَ دهلي روحاني پیشوا او شیخ الاسلام وو. دَ سلطان شمس الدین التمش په زمانه (سنه ۶۰۷ھ تا سنه ۶۳۲ھ) کښې دے. دَ "امیر دهلي" په لقب سره مشهور وو۔

په کتاب فوائد الفواد کښې لیکلي دی. چه یوه ورځ حضرت سید نور الدین مبارک غزنوی دا حکایت بیان اوفرمائیلو۔

چه شیخ نظام الدین ابوالمؤید دَ یرلوئ بزرګ تیر شویدے. یو ځل تر ډیرے مودے پورے باران اونه شو. خلقو دے مجبوره کړو چه دَ باران کیدلو دَ پاره دعا اوفرمائیے. حضرت ابوالمؤید منبر ته اوختلو او دَ باران دَ پاره ئې دعا اوفرمائیله بیائې آسمان ته پورته مخ کړو. او دا ئې اووئیل چه:-

"یا الله! که ته باران نه کوے. نوزه به په آبادئ کښې اوسیدل پریږدم"! دا ئې اووے. او دَ منبر نه کوز شو. دَ خدائ پاک په فضل کرم سره باران اوشو. ددے واقعے نه روستو حضرت سید قطب الدین چه سلام له ورغے. عرض ئې اوکړو چه مونږ له په تاسو باندے کامل اعتقاد لرو. او دا هم راته معلومه ده. چه تاسو ته په بارګاه خداوندی کښې دَ نیازمندئ درجه حاصله ده. مګر هغه وخت تاسو د اخبره ولے اوکړه چه که تا باران اونه کړو. نوزه په آبادئ

کښې استوګنه پریږدم" حضرت نظام الدین ابوالمؤید جواب ورکړو: چونکه ماته معلومه وه. چه هغه به ضرور باران کوي. ځکه مې دا خبره اوکړه.

د حضرت شیخ نصیر الدین محمود چراغ دهلوي قدس سرهٔ نه روایت دے. هغوئ فرمائي چه په غزني کښې یو بزرګ او سید وه. د هغه نوم و شیخ محمد اجل شیرازي. حضرت سید مبارک غزنوي ته په ابتدا کښې د دوئ نه فیض حاصل شوے وو. حضرت چراغ فرمائي. دا قیصه داسے وه چه په هغه زمانه د حضرت شیخ محمد اجل مرید لو کښې یو سوداګر وو. هغه خپل پیر له راغے. هغه خپل پیر له راغے او عرض ئے اوکړو چه ځما په کور کښې هلک پیدا شوے دے. دُعا ورته اوفرمائیے. حضرت شیخ ورته په جواب کښې اوفرمائیل بهتره به داوي چه صبا له چه زه د سحر نمونځ اداکړم. هغه وخت ته خپل ماشوم ځوي د ځان سره راوړه. او ځما بنې طرفته ئے ماته مخامخ کړه. حُسن اتفاق ته کوره. هم په دغه ورځ باندے حضرت سید مبارک غزنوي هم پیدا شوے وو. او د دوئ والد ماجد هم په دغه مجلس کښې حاضر وُو. چه دوئ دا خبره واورید له. نو دوئ په زړه کښې اوویل چه که خدائ ته منظور وي. صباله به زه هم خپل ماشوم په غیږ کښې راوړم. او د شیخ مخ ته به ئے وړاندے کړم. چنانچه په صبا باندے وختي راتللو کښې سوداګر معطلتیا اوکړه او د حضرت سید مبارک والد ماجد وختي را بیدارشو. راغے. په دے کښې مؤذن تکبیر اوکړو. نمونځ خلاص شو. او د سلام ګرځولو سره سم د سید مبارک والد ماجد د بنې طرف نه راغے. او دا خپل ماشوم ئے هغوئ ته وړاندے کړ. شیخ محمد اجل شیرازي علیه الرحمة د کمال په یو نظر ورته اوکتل. او خپل ټول فیوضات او برکتونه ئے ورته اوبخښل. وړلے شي چه بیا روستو هغه سوداګر راغے. نو حضرت شیخ ورته اوفرمائیل چه، "ځه فیوضات وو هغه خو سید زاده یوړل."

حضرت سلطان المشائخ نظام الدین اولیاء او حضرت شیخ المشائخ ناصر الدین محمود چراغ دهلوی دواړه پخپله ډیر لوئ بزرګان دی. دوی په ډیر خومره ادب او احترام د حضرت سید مبارک غزنوی تعریف کوی. د دے نه د حضرت سید علیه الرحمة د روحانی او عرفانی درجے اوچت والے معلومیږی.

د شهنشاه جلال الدین اکبر په زمانه کښې د دے حضرت سید مبارک غزنوی علیه الرحمة سهروردی په اولاد کښې یو بزرګ کرنال ته تشریف وړے وو. او دغلته د "صدر الصدور" په ممتازه عهدے بانده سرفراز وو. او د "سید صدر جهان" په معزز لقب به یادیدلو.

د حضرت سید مبارک الغزنوی علیه الرحمة اولاد د

"زیدی ساداتو"

داخاندان په برصغیر پاک او هند کښې د ډیر لوئ شهرت او عزت خاندان دے. او د تاریخ په هر دور کښې ئے د اسلام د سرلوړئ د پاره ډیر نمایاں خدمتونه کړیدی. او په خصوصیت سره په موجوده دور کښې د تحریک پاکستان کامیاب کولو د پاره د دے خاندان د نامور و افرادو خدمات د یاد ساتلو دی.

عزتمند جناب سید جلال حیدر زیدی پولیټکل ایجنټ د ملاکنډ ایجنسئ هم د دے نامور خاندان چشم و چراغ دے. او په رشتیا سره په اسلام او

مسلمانانو

مشین دے.

# حضرت شیخ سیّد عثمان، المعروف په لعل شهباز قلندر

(سنه ۵۳۸ھ تا سنه ۶۵۰ھ)

دَ برصغیر پاک او هند په پخوانو بزرګانو کښې دَ حضرت شیخ لعل شهباز قلندرؒ نوم ډېر مشهور دے. تقریباً څمو بزرګ دے ملک په هر کښې حصه کښې ایسے درویشان موجود دی. چه هغوئ ځان ته قلندری فقیران وائی. او خپل تعلق د دے حضرت لعل شهباز قلندر رسره ښائی.

دَ حضرت لعل شهباز خپل اصلی نوم سیّد عثمان دے. او لقب ئے شمس الدین دے. او دَ دوئ دَ والد ماجد نوم سیّد ابراهیم کبیر دے. او دَ نسب سلسله ئے په یوولسم پښت کښې حضرت امام جعفر صادق ته رسیږی.

دَ دوئ والد ماجد دَ مملکت ایران په اذربائیجان نومے علاقه کښې اوسیدلو. په دغه ملک کښې په کوم ښهر کښې چه دوئ اوسیدل. دَ هغې نوم "مروند" وو. د دغه ښهر دَ استوګنې په زمانه کښې دَ حضرت سید ابراهیم کبیر علیه الرحمة په کور کښې په سنه ۵۳۸ھ کښې یو نارینه فرزند پیدا شو. په دغه باندے عثمان نوم کیښودلے شو. په ابتدائی عمر کښې ئے قرآن مجید حفظ کړو. او دَ ظاهری علمونو دَ تکمیل نه روستو دَ باطنی علمونو په تکل کښې شو. او دَ حضرت بابا ابراهیم کربلائی نه ئے لاس نیوے اوکړو. او په طریقت او معرفت کښې دَ کمال حاصلولو نه پس دَ خپل مرشد دَ طرف نه دَ خلافت خرقه ورکړے شوه.

دَ سلسله عالیه قادریه په خصوصیتونو کښې یو لوئ خصوصیت دا دے. چه د دے طریقے کوم یو بزرګ ته درجه دَ کمال حاصله شی. نو هغه امر معروف شروع کړی. علاقه په علاقه ګرځی. خلقو ته دَ اسلام تبلیغ کوی. او دَ خدائی مخلوق دَ نیکئ او نیکوکارئ لارے ته راغواړی. چنانچه

هم ددغے قاعدے مطابق شیخ سید عثمان شمس الدین دَ آذربایجان (ایران) نه دَ دین اسلام دَ تبلیغ په اراده راروان شو۔ مکران ته راغے۔ او دلته چه په کوم کلی کښ استوګنه اختیار کړه۔ دَ هغے کلی نوم شهباز وُو. په دے شهباز نومے کلی کښ دَ څه مودے تیرولو نه پس راروان شو۔ او ملتان ته ئے تشریف راوړ۔ په دغه زمانه ملتان کښ حضرت شیخ الاسلام غوث العالم بهاء الدین ذکریا ملتانی دَ سهروردیه طریقے لوئ شیخ وو۔ حضرت سید عثمان شمس الدین په سهروردیه طریقه کښ دَ هغوئ نه بیعت اوکړ۔ دَ هغوئ دَ مریدانو په حلقه کښ داخل شو۔ او مرتبه ئے پته ئے ورته حاصله کړه۔ چه نن ورځ دَ غوث العالم په نامور وخلیفه ګانو کښ دَ دوئ نوم زیات بسکاره دے۔ او دَ خدائ پاک زیات مخلوق ته ترینه فیوضات رسیدلی.

هر کله چه دوئ ملتان ته دَ موجوده "قلات" په ویژن "مکران" نومے ملک دَ شهباز نومے کلی نه راغلی وو۔ په دغه مناسبت سره دَ "شهباز" نومے کلی قیمتی لعل (لعل شهباز) به ورته ویلے شو۔ بیا دا نوم دَ فارسئ ژبے دَ قاعدے مطابق دَ اضافتی نوم په حیثیت دَ لفظ لعل په کسره سره "لعلِ شهباز" دَ دوئ یو تعریفی نوم اوګرځیدلو۔ چه دغه نوم روستو دَ دوئ دَ مشهور لقبی نوم "شمس الدین" نه علاوه دویم لقبی نوم شو۔ او چونکه دوئ ټول عمر واده نه وُو کړے۔ مجرد ژوند ئے تیرولو۔ په دے وجه دَ دوئ دَ نوم سره دریم تعریفی نوم "قلندر" زیات کړے شو۔ لیکن خو مره دَ افسوس مقام دے چه نن ورځے ډیر کم خلق په دے نه خبر وی چه:-

(الف) دَ دوئ اصلی نوم عثمان دے۔

(ب) په نسب باندِ حسینی "سید" دے

(ج) اصلی لقب ئے "شمس الدین" دے۔

(د) تصوفی مسلک ئے قادری او سهروردی دے۔

(لا) او "لعل شهباز دَ دوئ اضافتي اونسبتي نوم دے۔ چه دَمکران دَ شهباز نومے کلي قیمتي لعل ورته ویلے شو۔ او په دے اعتبار دا یے یو تعریفي لقب دے۔

او دے صحیح معلوماتو په ځائ فقط دَ "لعل شهباز قلندر" په نوم خویئے هرڅوک پیژني۔ لیکن په دے سلسله کښ چه کوم ظلم کوُلے شي۔ هغه دا دے چه دَ دوئ تصوفي اوعرفاني مسلک قلندري گڼلے شي۔ حالانکه قلندري دَ دوئ دَ واده نه کولو په وجه خصوصي تعریف وو۔ او دَ غه دَ دوئ تصوفي او عرفاني مسلک نه وو۔ ځکه چه دَ دوئ دَ طریقت او معرفت لار قادریه او سهرورديه وه۔ چه دغه په هر حالت کښ دَ شریعت اسلام دَ ظاهري او باطني احکامو او فعالو دَ مکملے پابندئ۔ دیانتدارئ۔ پاکیزگئ او با شریعته ژوند تیرولو مسلک دے۔ او په دغه کښ دَ هغو ټولو کارونو هیڅ جواز او گنجائش نشته دے۔ کوم چه نن ورځ دَ قلندري طریقے په نوم کوُلے شي۔ البته دا به وایو چه دَ بزرگانو په نیک نوم باندِ چه کوم ناروا کارونه کولے شي۔ دا دَ هغے بد ترین مثال دے۔ آخر دَ قادریه طریقے یو بزرگ راسے کارونه څرنګ خوښولے شي۔ چه هغه سراسري دَ شریعت محمدي دَ احکامو واضحه مخالف وي۔

په کومو ورځو کښ چه حضرت سید عثمان شمس الدین قادري المعروف لعل دَ شهباز دَ مکران نه ملتان ته تشریف راوړلو۔ په دغه ورځو کښے شهزاده محمد دَ ملتان حکمران وو۔ دا شهزاده نیک سړے وو۔ دَ علم او ادب او عالمانو فاضلانو او بزرگانو، دِ بزرگیات قدردان، پالونکے۔ او عقیدت مند وو۔ د دے نیک زړي حکمران د دے قدردانئ په وجه دَ لرے لرے ملکونه عالمان او مشایخ، صوفیان، ادیبان او شاعران دَ ملتان ښهر ته راټول شوي وو۔ چه څه وخت حضرت سید شمس الدین عثمان تشریف راوړلو۔ نو دغه شهزاده دَ دوئ سره خصوصي عقیدت ښکاره کړ۔ دَ ځان سره یے

دَمبلمه په طور دیره کړ. او بیا یې دَا ستوګنې او دَ دوئ دَ مریدانو دَ ناستې ولاړې دَپاره یو خانقاه هم جوړه کړه.

په ملتان کښې دَ څه زمانې استوګنې نه روستو دَ سلطان ناصرالدین محمود په زمانه کښې په سنه ۶۴۹ھ کښې دوی دَ وادئ سند نه سیوهن نومې مقام ته تشریف راوړ. او دلته یې په هغه ځائ استوګنه اختیار کړله. چرته چه نن ورځ دَ دوئ مزار مبارک دے.

په سند ھ کښې دوئ ډیره لږه موده ژوندی پاتې شول. او بالآخر په ۲۱ یوویشتم دَ شعبان المعظم سنه ۶۵۰ھ کې یوسل دولس کالو په عمر کښې وفات شول. قدس سره العزیز. وعلیه الرحمة والغفران.

دَ دوئ دَ وفات نه روستو دَ دوئ مریدانو او خلیفه ګانو دَ وادئ سندھ په پورتنئ حصه کښې دَ امر معروف او تبلیغ اسلام سلسله جاری ساتله. او دَ قادریه طریقې روحانی مسلک له یې ترقي ورکړه. او دَ مسلمانانو تر منځه دَ روحانی تړون "قایم کولو دَپاره شاندار خدمات سرته اورسول. رحمة الله علیهم اجمعین.

## حضرت شیخ منهی قتال علیه الرحمة

دَ حضرت لعل شهباز قلندر په مشهورو مریدانو کښې حضرت شیخ ملهي قتال شیر وانی دَ ډیرے لوئ درجې خاوند تیر شوے دے. چه دَ دوئ مزار مبارک دَ ضلع ډیره اسماعیل خان په موضع دراېن کښې دے. او روستو دَ دوئ په اولاد کښې حضرت شیخ صدرالدین صدر جهان زنانه پیر لوئ بزرګ تیر شوے دے.

علیهم الرحمة والغفران.

# حضرت شیخ ابراهیم دانشمند ارمړ انصاري

(سنه ۶۶۰ هـ)

د پښتونخوا په علاقه کښې د بازید انصاري المعروف په "پیر روښان" نوم ډیر زیات مشهور دے. د ده شجره د نسب داسے ده - بازید انصاري، ولد عبدالله ولد محمد شیخ ولد بازید اول ولد شیخ محمود ولد شیخ سراج الدین ولد شیخ ابراهیم دانشمند ارمړ انصاري چه سلسله د نسب یې ابو ایوب انصاري ته رسیږي.

په دوی کښې د بازید انصاري المعروف پیر روښان د غه په اوومه پیړۍ کښې نیکه یعنی حضرت شیخ ابراهیم دانشمند علیه الرحمة په سلسله عالیه سهرورديه کښې د حضرت شیخ شهاب الدین سهروردي علیه الرحمة ماذون او خلیفه وو. او د بغداد شریف نه یې د خپل پیر په حکم سره څو نر. لا د مغربي پاکستان د ډیره اسماعیل خان د ویړن قبائلي علاقے "وزیرستان" ته تشریف راوړے وو. او په "کاني کرم" کښې یې استوګنه اختیار کړه. د دے علاقو د پښتنو قبائلو علمي او مذهبي روحاني رهنمائي یې کوله. او د کسي غر- کوه سفید- کوه سلیمان د ټولو غرونو په لمنو کښې یې د اسلام رڼا خوره کړله - په دے اعتبار سره د بغداد شریف دوه لویو پیرانو یعنې (۱) حضرت شیخ المشائخ غوث الاعظم دستګیر عبدالقادر جیلاني قدس سرہ (۲) او حضرت شیخ الشیوخ شهاب الدین سهروردي علیه الرحمة چه د دین اسلام کوم بیل کړے او روښانه مشال حضرت شیخ ابراهیم دانشمند له ورکړے وو. دوئ دغے په رڼا باندے د مغربي پاکستان د قبلیزو غرونو او میداني علاقو خوا ؤشا روښانه کړي - لکه چه څرنګ هم د دغه دوارو روحاني پیشوایانو د دوئم روښانه نمر یعنې حضرت غوث العالم شیخ بهاء الدین ذکریا ملتاني په ذریعه د ملتان

بهاولپور۔ سند ھ۔ او پنجاب په میدانی علاقو کښې چارچاپیره زمکه روښانه شوے وه۔ او د خدائے د مخلوق زړونه ئے د اسلام په رڼا مشرف کړی وو۔

پیغام یو وو۔ رہنما یو وه۔ او د یو مرکز بغداد نه راخوره شوے وه۔ ! مګر په دوه لاسونو ۔۔ ! یو لاس د شیخ ابراهیم دانشمند ارمړ وو۔ ! او بل لاس د شیخ بهاء الدین ذکریا قریشی وو۔

حضرت شیخ ابراهیم دانشمند په قام باندې انصاری وو۔ د پښتنو په ارمړ نوے قبیله کښې یوه وړه مګر مشهوره قبیله ده چه د هغې "برکی" نوم دے۔ په دے برکی قبیله کښې یو ښاخ دے۔ د هغې انصاری نوم دے۔ حضرت شیخ ابراهیم دانشمند علیه الرحمة د دے انصاری قبیلے دے۔

ارمړ قوم په اوچته پیړئ کښې په شل لویو قبیلو تقسیم دے۔ په دے کښې د یوے قبیلے او ښاخ ئے کانی کرم نوم دے[۱]۔ چه نن ورځ هم د دے قوم د نوم په مناسبت سره په وزیرستان کښې د یو مشهور ځائے نوم کانی کرم دے۔ دغه انصاری قبیله چه په حقیقت د برکی قبیلے یو وصلی ښاخ دے۔ د خپلو روڼو نه جدا شوے وه۔ او په کانی کرم کښے اوسیدله۔ په دے اعتبار سره حضرت شیخ ابراهیم دانشمند په قام برکے، ارمړ دے۔ لیکن استوګنه ئے د کانی کرم نوے بلے ارمړ قبیلے سره وه۔ او د موجوده شمالی او جنوبی وزیرستان او خوا وشا غره ایز او میدانی علاقو خلقو ته ئے د دین اسلام د احکامو ښودنه کوله۔ او د خدائے په یادو به ئے عمر تیره ولو۔ لکه چه مخکښې هم دا بحث تیر شوے دے۔ حضرت شهاب الدین غوری چه د سنه ۵۸۶ھ د ترائن په مقام د اولنئ حملے او جهاد نه روستو په غزنی کښې د مجاهدین اسلام نوی لښکر تیار کړو۔ او ورسره ئے بغداد شریف ته سوال جواب اولیږلو۔

---

۱ د حوالے د پاره ملاحظه کړی، «صولت افغانی» د زرداد خان ناغر او «حیات افغانی» د نواب حیات محمد خان توانه بحث د ارمړ۔ په حواله د کتاب «نسب نامه ارمړ» تالیف د میاں محمد عمر علیه الرحمة د چمکنو۔ (اثر)

اوډ حضرت خواجه شهاب الدین سهروردی علیه الرحمة نه یې دعا اوامداد اوغوښتلو. اوډ حضرت خواجه سهروردی ډ بې شمیره مریدانو او خلیفه ګانو په مشرئ کښې ډ مختلفو پښتنو قبائلو غازیان ډ سنه ۵۸۷ ھ ۵۸۸ ډ نیټه ډ ترائن نومے مقام دویم جهاد له رار وان شول. نو په هغې کښې ډ حضرت خواجه سهروردی دغه نامور خلیفه حضرت ابراهیم دانشمند هم ډ وزیرستان ډ مشهورو قبیلو دوړ، وزیر، محسود، بیټنی او په خصوصیت سره ډ ارمړ قام ډ یو لوئ لښکر سره روان شو او ډ ترائن په مقام ډ سنه ۵۸۸ھ په دغه جهاد کښې شامل شو.

بیا چه په سنه ۵۹۱ھ کښې ډ دهلی. اجمیر او قنوج ډ فتح نه روستو ډ پښتنو غازیانو قبائل ډ حضرت سلطان شهاب الدین غوری علیه الرحمة سره ډ حضرت سیّد مبارک غزنوی په روحانی رهنمایئ کښې رار وان شول. اودغه قبائل یې په وادئ پیښور. سمه. سوات باجوړ کوهستان وغیره کښې آباد ول. نو په هغې کښې ډ ارمړ قوم څه حصه خلق یې ډ وادئ پیښور ډ ضلع او تحصیل پیښور په جنوب مشرقی حصه کښې آباد کړل. چه ترننه ورځې ډ دے قام درے کلی ډ ارمړ په نوم باندے دغه علاقه کښې موجود دی.

ددې نه علاوه ددے ارمړ قوم څه حصه خلق هلته په دهلی کښې ډ قطب الدین ایبک سره پاتے شو. او بیا روستو ډ قطب الدین ایبک په مشرئ کښې په بهار. بنګال (مغربی) ګجرات. او بند هیل کهنډ کښې یې جهادونه اوکړل. حضرت شیخ ابراهیم دانشمند علیه الرحمة په دې جهادونو کښې شامل وو. څه موده پس په دکن کښې او وروستو په بنګال کښې ارمړ قبیلے ریاستونه هم جوړ کړي وو. ډ دې نه څه نیټه پس چه حضرت محمد بختیار خلجی بنګال فتح کړلو.

نوحضرت ابراهیم دانشمند دَخواجه شهاب الدین سهروردی دَنوحوخ ۔۔ته کانو سرهٔ دَاسلام دَدعوت اوتبلیغ دَپاره بنګال ته تشریف یوړلو۔

هلته پاتے شو۔ اوهم هلته وفات شو۔ د دے حضرت شیخ خواجه ابراهیم دانشمند ارمړچه په اصل دَ قبائلی علاقے وزیرستان دے۔ مزار مبارک ئے دَمشرقی پاکستان په ،، سونارګاؤں ،، کښې دے۔
اوپه سنه ۶۶۰ھ کښې وفات
شوے دے۔علیه الرحمة
والغفران۔ دَدوئ دَخوئ
شیخ سراج الدین
تذکره به
روستو
راشي



# حضرت شیخ الاسلام بهاء الدین ذکریا ملتانی

## (سنه ۶۶۶ھ)

دَ حضرت شیخ الاسلام غوث العالم بهاء الدین ذکریا لقب یې ابو محمد ابوالبرکات دے۔ دَ والد ماجد نوم یې وجیه الدینؒ ولد کمال الدینؒ علی شاه قریشی دے۔ دَ دوئ کورنئ په قریشو کښې دَ بنی اسد قبیلې پورې تړاو درے۔

دَ حضرت شیخ ذکریا علیه الرحمة نیکه یعنے حضرت کمال الدین علی شاه قریشی اسدی. دَ مکے معظمے نه ملتان ته تشریف راوړے وو۔ او دلته آباد شوے وو. دے پخپله زمانه کښې یو لوئ بزرګ او روحانی پیشوا وو۔ او هم په دغه وجه عام خاص ټولو خلقو ته یې ډیر زیات قدر۔ عزت او احترام وو۔

دَ حضرت کمال الدین صاحب ځوئ حضرت وجیه الدین صاحب هم لکه دَ خپل پلار پشان بزرګ سړے وو۔ او په دینداری او پرهیزګاری کښې یې ثانی نه لرلو۔ ډیر دَ او چتو اخلاقو خاوند او عزتمند بزرګ وو. دوئ چه دلته آباد شول نو دَ ملتان دَ یو بل بزرګ عالم حضرت مولانا شاه حسام الدین دَ لور بی بی سره دَ وجیه الدین صاحب نکاح اوشوه. او دَ دغه پاکے بی بی په غیږ کښې په سنه ۵۵۳ھ مطابق سنه ۱۱۶۹ء کښې په مقام دَ قلعه "کوټ کرور" حضرت بهاء الدین ذکریا ملتانی پیدا شو۔

روایت دے چه دَ دوئ عمر دولس کاله ته اورسید لا نو بیا یې قرآن مجید یې حفظ کړ او هم په دغه منځ کښې دَ دوئ والد ماجد حضرت وجیه الدین علیه الرحمة وفات شو۔ رحمة الله علیه:۔

دَ خپل والد دَ وفات نه روستو هم په دغه کم عمر کښې او دَ یتیم والی په حال کښې حضرت بهاء الدین دَ دینی علمونو حاصلولو دَ پاره

روان شو۔ خراسان ته راغے پد غه زمانه باندے خراسان دَ علم او فضل مرکز وو۔ دوئ ترا او وَه کالو پورے دَ خراسان دَ عالمانو او بزرګانو نه فیض حاصل کړو۔ دَ ظاهری او باطنی محاسنو او معارفو دَ تکمیل نه روستو ماوراالنهر مشهور علمی مرکز بخارا ته لاړو۔ ټول ظاهری علمونه ئے هلته دوباره په درس اولوستل۔ دَ اجتهاد مرتبه ئے حاصله کړه۔ او پیر لوئ شهرت ئے بیا اوموندلو۔ وئیلے شی چه دَ بخارا دَ سفر نه مخکښ دَ پنځلسو کالو په عمر کښ یعنے په هلکوالی کښ بیا دوئ دینی علمونه خلاص کړی وو۔ او شاګردانو ته به ئے درس ورکولو۔ او دغه بے مثله علم آوازه دومره تر لرے لرے پورے خوره شوه۔ چه بے شمیره خلق پرے راماتے شو۔ دا اهم روایت دے۔ چه روزانه به شپیته، اویا کسان ترینه چاپیره ناست وو۔ او دَ دینی علمونو درس به ئے حاصلولو۔

دَ بخارا دَ قیام نه روستو حج له ئے تشریف یوړلو۔ پنځه کاله ئے مدینه منوره کښ تیر کړل۔ او هلته ئے دَ پیرو عالمانو او بزرګانو نه ظاهری او باطنی فیض حاصل کړو۔ په دغه دوران کښ ئے دَ حضرت شیخ کمال الدین محمد یمنی نه دَ احادیثو کتابونه اولوستل۔ او دَ هغوئ نه ئے په علم حدیث کښ سند حاصل کړو۔

دَ هغه ځائ نه بیا شام او بیت المقدس ته لاړو۔ دَ پیغمبرانو علیهم السلام زیارتونه ئے اوکړل۔ او دَ هغه ځائے نه بیا بغداد ته راغے۔ د دے ځائ دَ مشائخو او بزرګانو زیارتونه ئے اوکړل۔ او دلته ئے دَ حضرت شیخ شهاب الدین عمر سهروردی علیه الرحمة نه لاس نیوے (بیعت) اوکړو۔ دَ لاس نیولے په وخت کښ دے دومره درجے دَ کمال ته رسیدلے وو۔ چه فقط اولس ورځے ئے دَ خپل پیر طریقت په خدمت کښ تیرے کړے۔

دَ سهروردیه طریقے دَ اورادو او وظائفو او باطنی شغلونو ټول منزلونه

ئے ترسرہ کړل ۔ او په اولسمه ورځ ورله هغوئ دخپل خلافت خرقه ورکړله مأذون ئے کړلو ۔ او بیائے ورته او فرمائیل چه :-
"ملتان ته لاړ شه ۔ او هلته د خدائی مخلوق ته د اسلام د حق دین او مذهب د تعلیماتو تبلیغ شروع کړه ۔ چه د خدائی مخلوق د گمراهئ نه بچ شي ۔ او د اسلام صفا او حقے لارے ته په صدق سره راواړوی"
چنانچه د خپل پیر طریقت حضرت شهاب الدین سهروردی په حکم سره چه دوئ ملتان ته تشریف راوړلو ۔ نو په دغه سفر کښې د ضلع بنون او ډیره اسماعیل خان ترمنځه د "پیزو" نومے مقام سره نزدے په اوچت غره باندے چله اوکښله ۔ او د سلوک او عرفان منزلونه ئے رالنډ کړل ۔ نن ورځے دغه غر د دوئ د مبارکو قدمونو په برکت سره "کوه شیخ بهاالدین" نامه باندے مشهور دے ۔ چه روستو دا نوم مخفف شوے دے ۔ او "کوه شیخ بودین" ورته وئیلے شي ۔ تر متبرک او تاریخ غر نن ورځے د ډیره اسماعیل خان ډویژن یو صحت افزا کر مائی مقام دے ۔
بیا دغه "کوه شیخ بدین" نه چه را روان شول ۔ نو ملتان ته ئے تشریف راوړلو ۔ او دلته ئے استوګنه اختیار کړه ۔ بیشکه د دوئ نه وړاندے هم په ملتان کښې د خدائ نیک بندګان موجود وو ۔ لیکن د روحانی فیوضاتو کومه سرچشمه چه د دوی په تشریف راوړلو سره پدے ملک کښې جاری شوله ۔ د هغے د شرف او بزرګئ مثال نشي پیدا کیدلے ۔ تردے حده چه نن هم د دوئ په مبارک وجود یواځے ملتان څه چه ټول مغربی او مشرقی پاکستان ګل او ګلزار دے ۔ او د دوئ د روحانی انوارو په رڼا د برصغیر پاک او هند ټول علاقے روښانه دی ۔
حضرت شیخ عبدالحق محدث دهلوی په خپل کتاب اخبار الاخیار کښې لیکی :-
حضرت بهاء الدین شیخ ابو محمد ذکریا ملتانی قدس سره په هندوستان کښے

رئیس الاولیاء وو- په ظاهری علمونوکښ فاضل عالم وو- اوډ روحانیت اوعرفان په کشف کرامت - اوډ مشاهداتو په احوال اومقاماتوکښ کامل وو. ډاکثر و اولیاء الله سلسلے ډ دوئ نه شروع شوی دی. خلقوته یې ډ حق دین اسلام هدایت اوفرمائیلو اوډ کفر نه ډ ایمان په طرف ډ گنهگارئ نه ډ نیکوکارئ په طرف اوډ نفسانی خواهشاتو ډ پیروئ نه ډ روحانیت په طرف یې رااوبلل - ډ خدائے مخلوق ته یې لویه فائده اورسیده - اودے ډ پیر لوئ شان اوبزرگئ خاوند وو.

ډ حضرت شیخ عبدالحق دا پورتنے بیان بالکل رشتیا دے. ډ حضرت شیخ غوث عالم بهاء الدین ذکریا علیه الرحمة نه چه کوم فیض ځمونږ په دے ملک کښے خورشوے دے. اوځمونږ دا مملکت پاکستان (مشرقی اومغربی) ډ هغوئ ډ روحانی رنړا روښانه شوے دے. اوډیو " روحانی ترون " شکل یې اختیارکړے دے. هغه ډ دوئ ډ هغه مذهبی او اسلامی خدمتونو برکت دے چه خپل ژوند نه مبارک کښے یې ډ اسلام ډ تعلیم تبلیغ اوتربیت ډ پاره کړیدی. اوچه کله دوئ وفات شول نو ډ دوئ نه روستو ډ دوئ ډ روحانی فیوضاتو دغه سلسله ډ دوئ صلبی (نسلی یعنے خپل اولاد ځامنو اومسو) او روحانی اولاد (یعنے مریدانو اوخلیفګانو) جاری اوساتله. علیهم الرحمة والغفران

حضرت غوث العالم شیخ الشیوخ ابومحمد بهاء الدین ذکریا ملتانی علیه الرحمة په سنه ۶۶۶ھ کښ په اووم تاریخ ډ صفر المظفر وفات شو- ډ وفات تاریخ یې ډ دے جملے نه خیژی

عاشق صادق
۶۶۶ھ

په کتاب اخبار الاخیار کښ ډ دوئ ډ وفات سنه ۶۶۱ھ اوپه ځنے نورو تذکروکښے سنه ۶۶۵ھ ذکر شویده. لیکن ځمونږ ډ دغه مخکښ روایت زیات صحیح معلومیږی. روضه مبارکه یې په ملتان ښهرکښے ده- اوزیارتګاه ډ خاص اوعام ده- قدس سره :-

# دَدین اسلام اشاعت

دَحضرت شیخ الشیوخ ابو محمد ذکریا ملتانی علیه الرحمة په وعظ او نصیحت کښې ډیر زیات جذب، کشش او اثر وو۔ چنانچه هم د دغې په برکت سره دَ سنده، ملتان او لاهور په خواؤ شا علاقو کښې په زرګونو زرګونو کفار او مشرکان۔ بلکه روغ قومونه او قبیلې په دین اسلام مشرف شول۔ دَ دوئ تعلیم او تربیت او دَ اسلام د اشاعت طریقه داوه۔ چه هر هغه سړے خواه که هغه به هندو وو۔ که مسلمان چه دَ حضرت شیخ په خدمت کښې به حاضر شو۔ نو هغه ته دَ تبلیغ کولو په طریقه او طرز کښې به څه فرق نه وو۔ ایکې یو شان تعلیم او پیغام به وو۔ چه هغه به یې ورته ورانډې کولو۔ یعنې دا چه دَ اوچتې روحانی او عرفانی درجې حاصلولو هدایت به یې ورته کولو۔ او دَ اسلامی تعلیماتو چه کوم روح دے۔ هغه به یې ورته وړاندې کولو۔ په دے شان چه:-

(الف) عامو خلقو ته به یې مذهبی درس ورکولو۔ غیر مسلم به دَ دوئ د تبلیغ په اثر دین اسلام ته راوړیدل۔ اسلام به یې قبلولو۔ او مسلمانانو به توبه ایستله۔ او بے عیبه پاکیزه ژوند تیره ولو ته به جوړیدل۔

(ب) او دَ حق طالبان او دَ طریقت مریدان به یې دَ علم او عرفان په فیوضاتو سرفرازه کړول۔

دَ حضرت شیخ رحمة الله علیه خپل حالت داؤ چه: څرنګ به دَ یو غیر مسلم په کلمه توحید لا اله الا الله محمد رسول الله ویئیلو او دَ مسلمانیه وَ دَحد نه زیات خوشحالیدلو۔ نو هو بهو هم دغه شان به دَ یو مسلمان په توبه ارښکلو او دَ پاکیزه ژوند تیرولو په وعده او اراده کولو باندے هم خوشحالیدلو۔ دوئ به فرمائیل چه زیات ضروری څیز دَ مسلمانانو دَ اخلاقو او اعمالو پاکیزګی ده۔ چه دَ مسلمانانو عملونه نیک شی۔ او اخلاق یې پاکیزه شی۔ بیا پخپله چه

چه غیر مسلم ورته کوری نو دهغوی به هم اسلام ته زړونه ماتله کیږی.
مینه به یې ورسره پیدا کیږی. او اسلام به قبلوی. او چه د مسلمانانو خپل
اعمال ښه نه وی. اخلاق یې پاکیزه نه وی، نو نور خلق به د دوی نه څه
عبرت واخلی.

(ج) د حضرت شیخ د تعلیم او تربیت بله طریقه دا وه. چه د شریعت او طریقت
د تعلیماتو سره به یې د هغوی د اقتصادی حالت ښه کیدلو هم خیال
ساتلو. او د زراعت او د تجارت د کار او کسب ښود نه او هدایت به یې هم ورته
کولو. چنانچه د ملتان په شا وخوا علاقو کښې کومې شاړې او بنجړې زمکې وې.
او ځنګلونه وو. خپلو مریدانو ته به یې د دغه شړو. بنجړو. او ځنګلونو د صفا
کولو او په هغې کښې د کر کرونده کولو حکم ورکولو. د نهرونو کنستلو. د اوبو د
کوهیانو جوړولو او ملک آباد کولو هدایت به یې ورته کولو. چه ملک آباد شی.
رزق او روزی یې فراخه شی. او د خدائ مخلوق پرې ښاد او آباد شی.

چنانچه د دوی د دې مبارک تعلیم او هدایا تو په برکت ملتان او د هغې
خوا ؤ شا علاقې سرسبزې او آبادې شولې. خلق یې دیندارہ او نیکو کار شول.
او په دې شان سره عام خلق په مادی او روحانی دواړه قسمه نعمتونو باندې
سرفرازه شول. د دوی د تبلیغ په برکت ډیر لوئ لوئ هندوانو او راجګانو دین
اسلام قبول کړے وو. او د دوی په مریدانو کښې شامل شوی وو. یعنی د دوی
د روحانی فیوضاتو نه عوامو او خواصو ته یو شان فائده اورسیدله.

لکه چه مخکښې ورته اشاره اوشوه. حضرت شیخ رحمة الله علیه
به خپلو مریدانو ته د دنیاوی کار و بار ترک کولو. یا په کوټ کښې کیناستلو.
یاد نیا ته شا کولو تعلیم نه ورکولو. بلکه هغوئ ته به یې د خپل اقتصادی او معاشی
حالت ښه کولو د پاره د زراعت او تجارت او د حلال رزق ګټلو د پاره د حلال کسب
او کار کولو ترغیب ورکولو او په دې شان سره د مسلمانانو د دین او دنیا دواړو د بهترئ

د پاره خپل نیک کوششونه یې جاري ساتلي وو۔

## اولاد او خليفه ګان

د حضرت شیخ بهاء الدین ذکریا علیه الرحمة د یو ځوی نوم شیخ صدر الدین عارف وو۔ چه د خپل والد ماجد د وفات نه روستو د هغوی سجاده نشین شوے وو. بیا د هغه د ځوی نوم ابوالفتح رکن الدین رکن عالم وو۔ چه د دے شیخ عارف د وفات نه روستو په ګدۍ ناست وو۔ دوی پلار او ځوی دواړه د حضرت شیخ ذکریا مریدان وو۔ علیهم الرحمة والغفران:-

## حضرت صدر الدین عارف

د حضرت شیخ ذکریا د ابزرګ ځوی شیخ صدر الدین په سنه ۶۲۱ھ کښ پیدا شوے وو۔ او د خپل والد بزرګوار نه یې تعلیم او تربیت موندلے وو. د قرآن مجید سره یې زیاته مینه لرله۔ ځکه په عارف نامه مشهور شوے وو۔ دے پیرلوئ فاضل عالم وو۔ درس به یې ورکولو په علم صرف کښ "تصریف جدولي" نوم کتاب د دوی تالیف دے۔ د دوی ملفوظات ارشادات او تعلیمات په کتابی شکل کښ د کنوز الفوائد په نوم سره د دوی یو مرید شیخ ضیاء الدین راجمع کړیدی۔ د دوی په ممتاز و مریدانو او خلیفه ګانو کښ یو د ده خپل ځوی ابوالفتح رکن الدین رکن عالم وو۔ بل شیخ حسام الدین المعروف په جمال ملتاني (متوفی سنه ۶۸۷ھ) وو۔ چه په بدایون کښ اوسیده۔ او بل شیخ احمد کبیر بخاری علیه الرحمة وو چه د حضرت مخدوم جهانیان والد ماجد وو۔ علیهم الرحمة والغفران۔ حضرت شیخ صدر الدین په سنه ۷۰۹ھ کښ وفات شوے دے۔ او مزار مبارک یې په ملتان کښ دے۔

## حضرت شیخ رکن الدین رکن عالم

حضرت شیخ رکن الدین رکن عالم په سنه ۶۴۹ هـ کښې پیدا شوے وو۔ دَ
خپل نیکه حضرت شیخ بهاء الدین مرید او دَ خپل پلار صدر الدین عارف
خلیفه وو۔ دَ خپل پلار دَ وفات نه روستو په گدۍ کیناست۔ دَ خپلے زمانے
نامور بزرگ وو۔ دَ حضرت شیخ بهاء الدین اولیاء او دَ دوی ترمنځه ډیره پر
خلوص محبت وو۔ دَ دوی په نامورو خلیفه گانو کښې شیخ وجیه الدین سنامی
(متوفی سنه ۷۳۸ هـ) حضرت حمید الدین حاکم او حضرت شیخ مخدوم جهانیان
جهان گشت زیات مشهور دی۔ په سنه ۷۳۵ هـ کښې وفات شوے دے۔ او مزار
مبارک یې په ملتان کښې دے۔ چه دَ دنیا په عالیشان عمارتونو کښې شمارلے شی۔
د دے نه علاوه دَ حضرت شیخ ابو محمد بهاء الدین ذکریا نور کوم مشهور خلیفه گان
وو۔ په هغوی کښې یو څو بزرگانو نومونه دلته ذکر کول مناسب گڼو

## حضرت میر حسینی سادات

دَ حضرت شیخ ذکریا علیه الرحمة مرید او خلیفه وو۔ دَ "نزهة الارواح" نومے
کتاب مؤلف دے۔ چه دَ علم تصوف په بهترینو او معتبرو کتابونو کښې شمارلے
شی۔ دَ حضرت شیخ ذکریا علیه الرحمة دَ وفات نه روستو یې دَ هغوی دَ ځوی
او سجاده نشین حضرت شیخ صدرالدین نه هم دَ خلافت خرقه حاصله
کړے وه۔ په سنه ۷۱۸ هـ کښې وفات شوے دے۔ علیه الرحمة والغفران۔

## حضرت شیخ فخر الدین عراقی

دَ حضرت شیخ بهاء الدین ذکریا علیه الرحمة په مشاهیرو خلیفه گانو کښې
دَ حضرت شیخ فخر الدین عراقی علیه الرحمة نوم دَ یادولو دے۔ دَ حضرت شیخ ذکریا
دَ خدمت شرف یې حاصل کړے او دَ دوی په تربیت او سرپرستۍ کښې یې دَ
علوم ظاهری او باطنی فیضان حاصل کړے وو۔ دَ خپل وخت فاضل عالم
او کامل روحانی پیشوا وو۔ دَ حضرت شیخ عراقی کتاب چه "لمعات" نوم یې

نوم یې دے. دَ علم شریعت او طریقت بهترین کتاب دے.

دده پوره نوم شیخ فخر الدین ابراهیم دے. دَ پلار په نوم کښې یې اختلاف دے. په یو روایت کښې بزرجمهر ابن عبد الغفار ایجوالقی دے او په بل روایت کښې شهریار ابن عبد الغفار دے. دغه شان یو روایت دا دے چه حضرت شیخ بهاء الدین ذکریا یې سکه ماما وو. او بل روایت دا دے چه حضرت شیخ شهاب الدین عمر سهروردی یې ماما وو. دَ همدان په شا و خوا کښې په ملکجان نومې کلی کښې په سنه ۶۰۰ ھ کښې پیدا شوے وو. دَ اوولس (۱۷) کالو په عمر کښې دَ معقول او منقول علومو دَ تحصیل نه چه فارغ شو. نو په بغداد کښې دَ حضرت شیخ شهاب الدین مرید شو. دَ خپل پیر په صحبت کښې ډیر کالونه په عبادت او ریاضت کښې تیر کړل. حضرت شیخ شهاب الدین ورله عراقی تخلص کیښودو. او هندوستان ته دَ تللو هدایت یې ورته وکړو. ملتان ته راغے دلته د حضرت شیخ بهاء الدین ذکریا نه یې خلافت حاصل کړو. حضرت شیخ ذکریا ورته خپل لور بی بی په نکاح ورکړه. پنځه ویشت [illegible] ان کښې پاتې شو. بیا عدن ته راغے. دَ هغه ځائ نه حج ته لاړ. دَ بیت الله الحرام او مدینه منوره زیارتونه یې اوکړل. دَ هغه ځائ نه روم ته لاړ. دَ شیخ محی الدین ابن عربی دَ خلیفه شیخ صدر الدین سره یې څه موده تیره کړه. دلته یې دَ ابن عربی کتاب "فصوص الحکم" مطالعه کړو. او دَ هغې په مثال یو بل کتاب "لمعات" یې تالیف کړو. په آخر کښې دمشق (شام) ته راغے او په سنه ۶۸۸ ھ کښې دلته وفات شو. مزار مبارک یې دَ دمشق محله صالحیه کښې دے. دَ حضرت شیخ محی الدین محمد ابن عربی او شیخ اوحد الدین کرمانی مزارات هم دلته دی. رحمة الله علیهم

## حضرت خواجه فرید الدین گنج شکر

دَ حضرت شیخ الشیوخ ابو محمد بهاء الدین ذکریا ملتانی په ممتازو خلیفه گانو کښې

دَحضرت خواجه فرید الدین مسعودگنج شکر نوم زیات مشهور دی
شیخ فرید الدین لکه چه په چشتیه طریقه کښې دَحضرت خواجه
قطب الدین بختیار کاکی علیه الرحمة خلیفه وو . نو هم دغه شان
عالیه سهروردیه کښې دَحضرت شیخ بهاء الدین ذکریا ملتانی هم خلیفه
(دَ دوی تذکره به روستو په تفصیل سره راشی .)

# حضرت خواجه سراج الدین ارمړ

دَحضرت خواجه بهاء الدین ذکریا علیه الرحمة په مشهورو او نامتو
خلیفه گانو کښې دَحضرت شیخ سراج الدین ارمړ نوم دَ یاد ولو دے .
روستو په مشرقی پاکستان کښې یې دَ اسلام تبلیغ او اشاعت او جهاد
کړے دی . دده والد ماجد حضرت شیخ ابراهیم دانشمند او حضرت خواجه
بهاء الدین ذکریا ملتانی دواړه پیر باټیان وو . (روستو به یې تذکره راشی)

# حضرت سلطان طیّب سهروردی

حضرت سلطان طیّب په اصل کښې دَ سابق صوبه سنده دَ علاقے او سید
وو . دَ هغه ځائی نه دَ سابق صوبه مغربی پنجاب ، هرنده (موجوده ضلع
ډیره غازی خان) علاقے ته په (۶۳۵ھ) کښې راغے . دلته یې استوگنه اختیار
کړه . بیا ملتان ته لاړو . او دَ حضرت خواجه بهاء الحق والملة والدین شیخ ذکریا
ملتانی مرید شو . درجه دَ کمال او خرقه دَ خلافت یې حاصله کړه . صاحب دَ
کشف او کرامت وو . ډیر روحانی قوم خلق یې مریدان شول . او ډیره خدائی مخلوق
یې دَ اسلام حلقے لارے ته راوړلو . روستو دده دَ ځوئ نوم سلطان یوسف وو . دَ
هغه دَ ځوئ نوم سلطان طیب ثانی وو . دَ هغه دَ ځوی نوم دوست محمد وو .
دَ هغه دَ ځوئ نوم پناه علی وو . چه دَ حضرت پناه علی رحمة الله علیه په

نوم باندے یو کلے دَ "بستی پناہ علی" پہ نوم سرلا پہ دے ہیرہ غازی خان کښې موجود دے۔ دَ حضرت سلطان طیب علیہ الرحمۃ پہ خاندان کښې داچہ پوره تہ یې نومونہ یاد شول۔ ټول دَ خپل وخت مشاهیر بزرگان تیر شوی دی۔ دَ حضرت سلطان طیبؒ دَ وفات صحیح تاریخ رانہ نہ دے معلوم شوے۔ علیهم الرحمۃ والغفران۔

## حضرت شیخ حسن افغان سہروردی۔

حضرت شیخ عبدالحق محدث دهلوی پخپل کتاب اخبار الاخیار کښې دَ دوئ پہ حقلہ دالاندینی حالات درج کړیدی۔ فرمائی:۔

حضرت شیخ خواجہ حسن افغان دَ حضرت شیخ بهاءالدین ملتانی پہ مرید انو کښې دے۔ محبوب الٰهی شیخ نظام الدین اولیاءؒ ددۀ پہ حقلہ بیان فرمائی۔ چہ شیخ حسن افغان صاحب دَ ولایت او بلند پایہ بزرگ وو۔ یوه ورځ پہ یوه کوڅہ تیریدلو۔ اذان یې واوریدلو۔ جماعت تہ ورننوتلو چہ اقامت اوشو۔ امام راغے مخکښې شو۔ خلقو ورپسې نیت اوتړلو۔ چہ نمونځ اوکړ ادا کړے شو۔ خلق لاړل۔ او جماعت خالی شو نو حضرت خواجہ حسن افغان ورپاسیدۀ۔ دَ امام خوا لہ ورغے او ورتہ یې اووئیل چہ جناب مولانا صاحب یو عرض درتہ کوم۔ څہ وخت چہ تہ پہ لمانځہ اودریدلے نو ما هم درپسې نیت اوتاړلو۔ هسے خو تہ پہ مصلیٰ ولاړ وے۔ لیکن پہ فکر او خیال کښې دے نور نور څہ کړنیدل شروع شول۔ دَ نمونځ خیال دے دَ زړۀ نہ اووتلو۔ پہ تصور کښې روان شوے۔ دهلی تہ اورسیدلے۔ هلتہ دے سوداګری شروع کړه۔ پہ بازار کښې کرځیدلے یو غلام (مریئے) دے پہ بیہ واخیست دَ هغہ ځائی نہ راروان شوے بل بنهرلہ راغلے۔ بیا دَ هغہ ځائی نہ راروان شوے ملتان لہ رااورسیدے۔ چونکہ ما درپسې نیت تړلے وو۔ نو زۀ هم دَ ناکامہ درپسې روان ووم۔ پریشان سرګردان دے ځایئ نہ تر دهلی

دربیے کرځیدم. انصاف دارہ! آخر دیته به څوک نوښخ او وائي۔ ؟

په تاریخ صولت افغانی کښې لیکی چه خواجه حسن افغان د مغربی پاکستان د قبائلی علاقے نه ملتان ته تلے وو۔ او بیا هم هلته په ملتان کښې د خپل پیر سره پاتے شوے وو۔ هلته اوسیده۔ او هم هلته وفات شو. تاریخ وفات یې معلوم نه دے۔

۔ علیه الرحمة والغفران۔

## حضرت شیخ جلال الدین بخاری

د حضرت شیخ بهاء الدین ذکریا په مشاهیرو
خلیفه ګانو کښې حضرت شیخ
جلال الدین حسن
المعروف میر سرخ
بخاری زدیات
مشهور دے.

(اچه روستو به یې تذکره راشی ؛)

# حضرت خواجه بابا فرید شکر گنج علیه الرحمة

(سنه ٦٧٠ھ)

دَحضرت خواجه خواجگان بابا فرید الدین گنج شکر نوم مبارک "مسعود" وو. القاب یې "شیخ فرید الملة والدین" "شیخ فرید الدین" "شیخ فرید" "شیخ فرید الحق" "گنج شکر" "شیخ الاسلام" او "شیخ الشیوخ" دی. بلکه د دے نه علاوه شپیته نور القاب یې هم مشهور دی. دَ دوی دَ نسب سلسله دَ حضرت عمر فاروق رضی الله عنه سره لګیږی. دَ بعض مؤرخینو داخیال دے. چه دے په قام سیّد وو. بهرحال په دے خبره دَ ټولو اتفاق دے چه په اصل او نسب باندے "قریش" وو. او دَ والد ماجد نوم یې حضرت شیخ جمال الدین سلیمان ابن شعیب علیه الرحمة په زمانه کښ دَ افغانستان نه هندوستان ته راغلی وو. او دلته دَ اسټوګنے نه پس تر یره موده پورے دَ "لاهور" قاضی وو. حضرت شیخ عبد الحق محدّث دهلوی پخپل کتاب کښ دَ دوی تذکره دَ نورو اولیاء وسره کړے ده. او دَ دوی دَ اوچتے روحانی او عرفانی درجے ستاینه یې کړے ده.

"لاهور" کښ دَ څه موده قیام نه روستو دَ دوی والد ماجد حضرت شیخ سلیمان علیه الرحمة ملتان ته راغے. او دلته په "کهیتوال" نومے یو کلی کښ په سنه ۵۸۲ھ کښ حضرت شیخ فرید علیه الرحمة پیدا شو. لا ماشوم وو. چه پلار یې وفات شو. مور بی بی یې سبق ته کښینولو. ذهن یې ډیر ښه وو. په کم عمر کښ یې قرآن مجید حفظ کړلو.

مشهور پښتون مؤرخ زرداد خان ناعمر پخپل کتاب "صولت افغانی" کښ لیکی:- چه هرحضرت خواجه قطب الدین بختیار کاکی علیه الرحمة دَ بغداد شریف نه دَ (۱) حضرت شیخ اوحد الدین کرمانی (۲) امام شهم

جلال الدین تبریزی په ملګرتیا کښې راروان شول. او دَ مغزني پاکستان قدیم ترین ښهر ملتان ته اورسیدل. نو دلته یې دَ حضرت غوث عالم شیخ بهاء الدین ذکریا ملتانی" سره ملاقات کړے وو. په دغو ورځو کښې په ملتان باندے دَ ناصر الدین قباچه حکومت وو. (دلته دا یاد لرل پکاردي چه ناصر الدین قباچه دَ سلطان قطب الدین ایبک دَ وفات نه ۶۰۷ سنه روستو دَ ملتان خود مختار حکمران شوے وو.) او تر ۶۳۲ سنه پورے یې په حیثیت دَ خود مختار حکمران حکومت وو. چه بیا هم په دغه کال ۶۲۴ سنه کښې سلطان شمس الدین التمش ورله شکست ورکړ. ددے پورتني بیان نه دا معلومیږي چه حضرت خواجه قطب الدین بختیار کاکی علیه الرحمة دَ ۶۰۲ سنه نه روستو ملتان ته راغلے وو. او دلته ورته بیا دا معلومه شوے دلا چه خواجه بزرګ دَ لاهور نه دهلی ته تشریف وړے دے. (مخکښې دَ خواجه بزرګ په تذکره کښې ددے خبرے په حقله په تفصیل سره بحث تیر شوید ے.)

هرکله چه حضرت بابا فرید شکر ګنج په دغو ورځو کښې په ملتان کښې علم حاصلولو. دَ حضرت غوث العالم شیخ بهاء الدین ذکریا ملتانی په دیره (خانقاه) کښې یې دَ حضرت قطب الاقطاب خواجه بختیار کاکی علیه الرحمة سره ملاقات اوشو. او په سلسله عالیه چشتیه کښې یې تر ینه لاس نیوے اوکړ و. څه نیټه پس چه حضرت قطب الدین بختیار کاکی علیه الرحمة دهلی ته تشریف یوړلو. حضرت شیخ جلال الدین تبریزی غزني ته لاړ. او حضرت شیخ اوحد الدین کرمانی قدس سره واپس بغداد شریف ته تللو حضرت شیخ فرید الدین ګنج شکر هم دَ هغوی په ملګرتیا کښې دَ قندهار په لاره باندے بغداد شریف ته لاړلو. هلته یې دَ حضرت شیخ شهاب الدین سهروردی دَ ملاقات شرف حاصل کړ. او په

بغداد شریف کښې په دغه نیټه چه کوم نور مشاهیر بزرګان موجود وو۔ د هغوی نه یئ هم فیوضات حاصل کړل۔ چه په هغوی کښې د حضرت شیخ سیف الدین باخرزی علیه الرحمة نوم د یاد ولو دے۔

په بغداد شریف کښې د څه موده عمر تیرولو نه روستو د هرات په لار ملتان ته راغے۔ د لته د غوث العالم بهاء الحق والملة والدین ذکریا ملتانی علیه الرحمة په صحبت کښې تر ډیره عمره باقی پاتے شو۔ او د ملتان دا قیام یئ د دے خپل پیر طریقت سرکار د پخ دوستی بلکه د رشته دارئ باعث اوګرځیده۔

د طریقت او عرفان په سلسله کښې کوم مجاهدات او ریاضتونه چه دوی کړی دی۔ د هغے بیان په الفاظو کښې نه شی کیدلے۔ یو ځله بابا فرید علیه الرحمة د ملتان نه دهلی ته تلے وو۔ چه په چشتیه طریقه کښې د خپل پیر طریقت حضرت قطب الدین بختیار کاکیؒ سلام وکړی۔ د خوش بختئ نه په دغه موقع حضرت خواجه خواجګان معین الدین حسن سنجری، چشتی، اجمیری علیه الرحمة هم دهلی ته تشریف راوړے وو۔ چه هغوئ د حضرت شیخ فرید بابا د حالاتو نه خبر شول۔ نو د ډومره سخت ریاضت نه یئ منع کړ۔ او بیا یئ په پیر شفقت او مهربانئ سرکار د خواجه قطب الاقطاب بختیار کاکی او خپل ځان ترمنځه اودره ولو۔ او د واړو پیرانو حضرت فرید بابا ته توجه اوفرمائیله۔ او روحانی برخے یئ ورله ورکړے۔ او د خلافت خرقه یئ ورته اوبخښله۔

د تصوف او روحانیت په دنیا کښې د حضرت بابا فرید ګنج شکر د روحانی مرتبے او خلافت مثال نه پیدا کیږی۔ په دوه وجهو سره:۔

الف | یوه وجه دا ده چه حضرت بابا فرید علیه الرحمة د حضرت غوث العالم شیخ الاسلام بهاء الدین ذکریا ملتانی مرید هم دے۔ او د هغه د پیر

او دَ هغه دَ پیر طریقت حضرت شیخ شهاب الدین سهروردی نه یې براه راست فیض حاصل کړے دے. او مرید یې دے.

ب: بله دا چه قطب الاقطاب خواجه بختیار کاکی علیه الرحمة مرید هم دے او دَ هغه دَ پیر طریقت حضرت خواجه خواجګان خواجه غریب نواز مرید هم دے. او دَ هغوئ نه یې براه راست فیض حاصل کړے دے.

هر کله چه حضرت شیخ شهاب الدین سهروردی او حضرت خواجه معین الدین حسن چشتی اجمیری دواړو دَ حضرت شیخ المشائخ غوث صمدانی. قطب ربانی. محبوب سبحانی شهباز لامکانی شیخ عبد القادر جیلانی رضی الله عنه دَ فیوضاتو څخه حصه موندلے ده. نو دَ بغداد - ملتان. اجمیر درے واړو روحانی مرکزونو دَ فیوضاتو نه ډکه حولئ بروکے چه دغه شیخ فرید العصر. فرید الدین. ګنج شکر ئن دَ مغربی پاکستان په خاوره هغه عظیم الشانه روحانی سرچشمه ده. چه ژوند بخښونکے هم ده. او روح پالونکے هم ده.

حضرت خواجه ګنج شکر په دهلی کښ دَ خلافت حاصلولو نه پس څه زمانه په هانسی نومے ښهر کښ و وبیا دَ هغه ځائ نه راروان شو. او دَ پنجاب دَ ضلع منټګمری اجودهن نومے کلی ته تشریف راوړ - دغه کلی نوم دَ دوئ دَ اوسیدلو په برکت سره په پاک پټن نامه باندے مشهور شو - او دَ روحانی انوارو دے مرکز ته دَ اسلام رڼړا دَ علاقے تر لرے لرے ګوټو نو پورے خوره شوه. او ځای په ځای دراتله دانه جماعتونه دینی مدرسے او دَ روحانیت او عرفان دَ حصول خانقاهونه جوړ شول. چه دَ "الله اکبر" او لا اله الا الله ط په خوږ وکلمو کانړی. بوټی. او بنیادم دَ یو الله او حق دین دَ اسلام په لوری رامات شول. دَ دوئ په بابرکت صحبت او درس کښ مشاهیر و عالمانو او بزرګانو خپلے جولئ دَ علم او

او عرفان دَ فیوضات ... ډکې کړلے۔ او دَ ملک په هر لوری خوارۀ شول۔ او دَ اسلام په لاره کښې یې جهاد ونه او کړل۔ غزاګانې یې او کړلے۔ او دَ اسلام دَ سرلوړئ دَ پاره یې خپل سر ونه قربان کړل۔

حضرت خواجه فریدالدین ګنج شکر علیه الرحمة خپل ټول ژوند دَ اسلام په خدمت کښې صرف کړو۔ او دَ نسل۔ نسب۔ قومیت۔ ملک او وطن دَ امتیاز نه په غیر دَ خدائ پاک ټول مخلوق ته یې دَ خدائ دَ حق دین اسلام دعوت او پیغام او رسولو۔ او په ډیر زیات تعداد کښې عوام او مشرکان او دَ مشرکانو مذهبی مشران او حکمرانان په دین اسلام مشرف شول۔

دَ حضرت خواجه فریدالدین ګنج شکر په خانقاه کښې به هر وخت دَ علم ظاهری او باطنی په زرګونو طالبان او مریدان دیره وو۔ دَ دوئ نه علاوه نور عام مسلمانان میلمانه او مسافر به هم ډیر راتلل۔ دَ هغوئ دَ پاره په شامدام لنګر جاری وو۔ په سوونو منونو غله به پخیدله۔ مګر پخپله بابا فرید به دَ اوربشو ډوډئ هم په مړه ګیډه نه خوړله۔ روایت دے چه دَ دوئ په لنګر کښې هر څو مره خادمانو چه به کار او خدمت کولو۔ هغه څه معمولی عام خادمان نه وو۔ بلکه دَ خدائ پاک داسے نیک بندګان وو۔ چه هیڅ یو کس په هیڅ وخت کښې هم دَ خدائ دَ یاد ونه غافله وو۔

حضرت شیخ فریدالدین ګنج شکر اګرچه په قادریه۔ سهروردیه۔ او چشتیه ګنړو طریقو کښې مجاز او ماذون وو۔ لیکن دَ سلسله عالیه چشتیه نسبت پرے غالب وو۔ پدے اعتبار سره داوئیلے شو چه حضرت خواجه خواجګان معین الدین حسن چشتی اجمیری چه دَ رشد او هدایت کومه شمع بله کړے وه۔ دَ هغې شمعے نه دامشال روښانه شوے وو۔ او دَ دوئ په برکت دَ اسلام په انوارو دَ پاک و هند ډیر هیوادونه تر ننه پورے روښانه دی۔

دَ حضرت خواجه فرید الدین گنج شکر کرامات ډیر زیات او مشهور دی. دوی دَ خپل پیر خواجه قطب الدین بختیار کاکی علیه الرحمة ملفوظات او ارشادات په یو کتاب کښې راجمع کړیدی چه دَ هغې "فوائد السالکین" نوم دے. د دے کتاب دَ مطالعے نه دَ دوی دَ پاکیزه ژوند او پاکیزه اخلاقو اندازه لګیدلے شی. دَ دوی لوئ تعریف دا وو. چه ډیر صبرناک او خوش خلقه وو. او دَ خپلو ښو او نیکو اخلاقو په وجه دَ هرچا به ورسره مینه وه.

حضرت خواجه فرید الدین مسعود گنج شکر به دے شان سره دَ پاکیزه ژوند تیره ولو او دَ خدائ مخلوق ته دَ دین اسلام دَ ظاهری او باطنی تعلیم ورکولو نه پس په پنځم تاریخ دَ محرم الحرام سنه ۶۷۰ھ کښې وفات شول. علیه الرحمة والغفران.

دَ دوی دَ وفات تاریخ دَ دے جملونه راخیژی. چه په حقیقت کښے دا دواړه جملے دَ دوی دَ خصوصی تعریفونو ترجمانی هم کوی. (۱) یوه جمله ده (سخی) (۲) دویمه جمله ده (دیانت‌دار)
۶۷۰ ۶۷۰

په کتاب اخبار الاخیار کښې دَ دوی دَ وفات تاریخ سنه ۶۶۴ھ لیکلے شوے دے. لیکن دغه اولنی تاریخ سنه ۶۷۰ھ زیات صحیح معلومیږی.

دَ حضرت خواجه گنج شکر دَ تاریخ وفات په ورځ یعنے په پنځم تاریخ دَ محرم الحرام باندے هر کال دَ دوی په مزار باندے دَ عقیدتمندانو لویه میله وی. چه په هغې کښې دَ پاک وهند دَ هرے حصے نه مسلمانان راجمع کیږی. او دَ دے عظیم الشان "روحانی ترون" ښکلے منظر دَ هر مسلمان زړه او روح تازه کوی.

# اولاد او خلیفه ګان

دَ حضرت خواجه فرید الدین مسعود گنج شکر پنځه ځامن وو. خواجه نصیر الدین. خواجه بدرالدین سلیمان. خواجه شهاب الدین. خواجه

نظام الدین. خواجه یعقوب. د اینځه وارو دوی مریدان وو. او د مرتبې او بزرګۍ خاوندان تیر شوی دی. په دوی کښې حضرت خواجه شیخ بدرالدین سلیمان د خپل پلار د وفات نه پس د خپل مشر ورور او کشرانو رونړو وروړو په اتفاق سره د پلار د ګدۍ باندې کښیناست. د چشتیه طریقې باکماله پیر وو. خواجه نظام الدین د کفارو سره په یو جهاد کښې شهید شوې وو. چه روستو ئې لاش او نه موندلې شو. څلورم ځوئ خواجه یعقوب علیه الرحمة په مرتبه د ابدالو کښې وو. چه "مردان غیب" ورته وائي. په دې وجه د دوی قبر هم معلوم نه دې. په پاک پتن کښې فقط د دوی د دوه مشرانو ځامنو خواجه نصیر الدین او خواجه بدرالدین زیارتونه موجود دی. علیهم الرحمة والغفران.

د حضرت خواجه ګنج شکر خلیفګان او مُذونان ډاو وه زره نه زیات وو. چه په هغوی کښې د یو څو مشاهیر و خلیفګانو مختصراً تذکره دلته د تبرک په طور کولې شي.

## (۱) حضرت خواجه علاءالدین صابر کلیریُ

د حضرت خواجه ګنج شکر د یو مشهور خلیفه نوم خواجه علاءالدین صابر کلیری دې. د حضرت خواجه ګنج شکر خوریې او ځوم هم وُو. د دوی نه د سلسله "چشتیه صابریه" په نوم یو لویه سلسله خوره شوې ده. چه روستو په دې کښې حضرت شیخ عبدالقدوس ګنګوهی هیر لوئ بزرګ تیر شوې دې. د وسطی هند د چشتیه سلسلې اکثر بزرګان په دې صابریه طریقه کښې دی. د وادۍ پیښور مشهور روحانی رهنما حضرت شیخ مولانا عبدالوهاب المعروف "اخون پنجو بابا" په دې "صابریه" سلسله کښې مشهور بزرګ تیر شوې دې. (د حضرت خواجه صابر ولادت په سنه ۵۹۲ھ او وفات په سنه ۶۹۰ھ کښې وو.)

## (۲) حضرت خواجه نظام الدین اولیاء دهلوی

د حضرت شیخ الشیوخ په خلیفه گانو کښې حضرت نظام الدین اولیاء ډیر زیات مشهور بزرګ تیر شوی دی. خپل نوم ئې محمد بن احمد ابن علی بخاری دی. او القاب ئې ډیر دی. لکه سلطان المشائخ، نظام المشائخ، نظام الدین اولیاء. محبوب آلهی، وغیره شول. په درګاه آلهی کښې محبوب او مقرب وو. برصغیر پاک او هند د دوئ د فیوضاتو نه ډک دی. د دوی نیکه خواجه علی او ورنیکه خواجه عرب دواړه د بخارا نه راغلی وو. څه موده په لاهور کښې وو. بیا بدیوان ته لاړل. هلته آباد شول. د خواجه محبوب الهی پیدائش هم بدیوان کښې شوی دی. د خپل وخت فاضل عالم وو. د دینی علمونو حصول د پاره دهلی ته راغلی وو. اصول. فقه. تفسیر. حدیث وغیره علمونه ئې د لته حاصل کړی وو. د علم ادب مشهور کتاب مقامات حریری او علم حدیث ئې په دهلی کښې د مولانا صدر ولایت شمس الملک نه حاصل کړی وو. او د حضرت خواجه شهاب الدین سهروردی مشهور کتاب عوارف المعارف او د علم عقائد مشهور کتاب ،، تمهید ابی شکور رسالمی " ئې په پاک پټن کښې د خواجه فرید گنج شکر نه لوستلی وو.

روستو چه د خواجه فرید الدین گنج شکر نه ئې بیعت او کړ او خرقه د خلافت ئې حاصله کړه. دهلی ته راغے. او بیا څه موده پس په دهلی کښې ،، غیاث پور" نومې مقام ته راغے. او بیا روستو چه په ور چارشنبې یوولسم تاریخ د ربیع الاول ۷۲۵ھ وفات شو. نو هم په د ،، غیاث پور" کښې ئې مزار شریف ورپه شو. (د ولادت تاریخ ئې ۶۳۶ھ د حضرت خواجه محمد المعروف نظام الدین اولیاء نه د چشتیه نظامیه په نوم باندې بره لویه سلسله جاری شوې ده.

برصغیر پاک و هند کښې عمومًا او په خصوصیت سره د وسطی هند.
جنوبي هند نه علاوه د موجوده مشرقي او مغربي پاکستان د چشتیه طریقې
بزرګان په دے سلسله عالیه نظامیه کښې دے. د مثال په طور مغربي
پاکستان د شمال مغربي علاقو د ټولو نه زیات مشهور بزرګ حضرت
پیر سید علي ترمذيؒ المعروف پیر بابا هم د دے سلسلے بزرګ دے.
په دے اعتبار سره د حضرت فرید الدین شکر ګنج د سلسلے د دواړو
شاخونو "صابریه" "نظامیه" بزرګان د پاکستان په هر کوټ کښې خواره
دي. او د دوي د فیض د لوئ ابلسین نه بے شمیره ولے او نهرونه دي چه
جاري شوي دي او د دے وطن د خلقو روحاني تندے ئے ماته کړے ده.

(۳) حضرت مولانا بدرالدین اسحاق

حضرت مولانا بدرالدین اسحاق د حضرت علی ابن اسحاق دهلوی
ځوی وو. او د حضرت خواجه فرید الدین شکر ګنج خلیفه او ځوم هم
وو. د خپلے زمانے په بزرګانو کښې په زهد - پرهیزګارئ فقر او عشق کښې
بے ثاني نه لرلو. فاضل عالم وو. د "اسرار الاولیاء" په نوم یو کتاب د ده
تالیف دے. زیارت مبارک ئے د پاک پټن د بخواني جامع مسجد په صحن کښې
دے. د وفات تاریخ ئے نه دے معلوم. علیہ الرحمة والغفران.

(۴) حضرت شیخ جمال الدین احمدؒ

حضرت شیخ جمال الدین احمد فاضل عالم وو. خطیب وو. د نسب
سلسله ئے حضرت امام ابوحنیفه رضي الله عنه ته رسیدلے. د شیخ
الشیوخ فرید الدین ګنج شکر ممتاز خلیفه وو. په هانسي حصار کښې
اوسیده. د ظاهري او باطني کمالاتو جامع وو. د حضرت ګنج شکر ور سره
د ومره بے حده مینه وه. او هم د دغه بے دریغه مینے په وجه دولس کاله
ئے د دے خپل مرید سره په هانسي کښې تیر کړي وو. او بیا چه دے

دے (اجودھن) موجودہ پاک پټن ته راغے. نوچه څوک به یې مرید کولو. نو هغه به یې د مرید کولو نه اول حضرت شیخ جمال الدین احمد ته اولیږلو. چه لاړ شه. هغه ته ځان وښایه. او د هغه نه اجازت واخله کړ هغه اجازت اوکړو هلته به دے مرید کړم. خواجه گنج شکر به فرمائیل. جمال ,,جمال ما است" جمال څمونږ جمال دے. کله ناکله به یې دا هم فرمائیل. "غوه ام غوارم کېچه ستا نه گرد چا پیره طواف اوکړم" د دے نه د شیخ جمال د مرتبے او چتوالے معلومیږی. د خواجه شیخ جمال مزار مبارک اگرچه نن ورځ د برصغیر پاک په هندوستان نومے حصه کښں دے. لیکن هر کله چه دے د بابا فرید جمال دے. په دے وجه د بابا فرید د تذکرے سره د هغه د "جمال" تذکره کول لازمی وو. علیه الرحمة والغفران.

(۵) حضرت شیخ عارف علیه الرحمة

حضرت شیخ عارف د اوچ بهاولپور او سید ونکے د حضرت خواجه گنج شکر مرید شو. د خپل پیر بے حد لاخا متونه یې کړی وو. روحانی استقامت یې نصیب شوے وو. د خلافت خرقه او د مریدانو نیولو اجازت ورته حاصل شوے وه. د خپل پیر په حکم سیوستان (شمالی سنده) ته تلے وو. هلته یې د خدائ مخلوق ته روحانی فیوضات رسول. هم هلته وفات شو. تاریخ یې نه معلوم. علیه الرحمة.

(۶) حضرت سید امام علی لاحق شهید سیالکوټی

د حضرت سلطان علاء الدین غوری علیه الرحمة په زمانه کښں په سیالکوټ باندے جهاد شوے وو. په دے جهاد کښں د حضرت خواجه فرید الدین گنج شکر مشهور مرید او خلیفه حضرت سید امام علی لاحق د خپلو رونړو او مریدانو سره شامل شوے وو. د دوئ د رونړو نومونه دا دی. سید امام ناصر الدین سید میران برخوردار

اولنے جنګ په مقام دَ چالند هر شوے وو. دلته حضرت سید امام ناصرالدین شهید شو. مزار مبارک یَے په چالند هر کښې دے۔ وروستو دویم جهاد دَ پسر ور په مقام اوشو. دلته حضرت سید میران برخور دار شهید شو. مزار مبارک یَے دلته جوړ کړے شو. وروستو څلورمه غزا په "آدم دراز" نومے ځای کښې اوشوله. دلته دَ غازیانو سر لښکر حضرت عزیل غازی او نور بے شمیره مسلمانان شهیدان شول. درے ټولو شهیدانو دَ پاره یو لوئی قبر او کښلے شو. په هغه کښې او سپارلے شول. چه د غه "ګنج شهیدان" ترننه ورځے د غلته موجود دے او بے شمیره شهیدانو شریک زیارت دے۔ وروستو آخری غزا او جهاد خاص په سیالکوټ ښهر باندے اوشوه. حضرت سید امام علی لاحق رحمة الله علیه په دے کښې (په سنه ۶۸۲ھ) کښې شهید شو. او بیا په کومه ورځ چه دَ ښهر قلعه فتح کیدله. او غازیان په دروازه ورننوتل. نو رسا په دروازه کښې حضرت میران محمد فتح المعروف سید سُرخ شهید غازی علیه الرحمة دَ شهادت مرتبه حاصله کړه۔ دَ حضرت میران محمد شهید مزار مبارک دَ سیالکوټ دَ دروازے دننه موجود دے۔ او دَ حضرت سید امام علی لاحق شهید مزار مبارک دَ ښهر نه باهر شمال طرف ته دے۔ چه پوخ زیارت پرے حضرت شیخ شاه دوله ګجراتی سهروردی علیه الرحمة جوړ کړے دے. دَ دوئی په مزار مبارک باندے دَ زیارت یعنے پنجشنبے په ورځ او دَ دواړو اخترونو او عاشورے په ورځ لویه میله وی. علیه الرحمة والغفران۔



# تعلیمات اوارشادات

په آخر کښې دَ حضرت خواجه فرید الدین گنج شکر علیه الرحمة دَ تعلیماتو او ارشاداتو په لړ کښې دَ دوئ يو څو زرين اقوال درج کولے شي. فرمائي:- (۱) څومره چه دَ خپل ظاهر نه واقفیت لري. دَ هغے نه زیات دَ خپل باطن نه ځان خبر داره اوساتئ.

(۲) دشمن له په نیکه مشوره ورکولو باندے شکست ورکړئ. او دوستان بخپلو بنوا خلاقو او تواضع کولو په ځان مین کړي.

(۳) بنیادم له پکار دي چه دَ خپل نفس علاج اوکړي.

(۴) فقیران دَ عشق خاوندان دي. او عالمان دَ عقل خاوندان دي. په دوئ کښې کامل سړے هغه دے چه عشق او عقل دواړه لري.

(۵) خپله معامله خالص دَ ایکي یو الله سره ساتي. ځکه چه بے دَ الله تعالیٰ نه هر څوک چه دي. هغه ټول په راکړه کښې دي. ستا نه به څه غواړي. فقط یو الله تعالیٰ داسے ذات دے. چه هغه ورکوونکے دے. هر چاله ورکړه کوي. او دَ ټولو نه لویه خبره دا ده چه خدائ پاک چاله څه ورکړي. دَ دنیا هیڅ طاقت ترینه هغه نشي اخیسے. تر څو چه پخپله خدائ ئے ترینه وانه خلي.

(۶) په درویشئ او فقیرئ کښې هیڅ داسے مقام نشته. چه هغه دَ خوف او امید دواړو نه خالي وي. چه هم دَ خدائ نه امید لري هم ویره.

(۷) دَ خدائ او بنده ترمنځه ترټولو نه لویه پرده دنیا ده. (دَ دنیا مینه ده)

(۸) دَ خدائ پاک نه په ویرید لو خپل زړونه ژوندي کړئ.

(۹) دَ هر چا ډوډئ مه خورئ. بلکه په هر چا ډوډئ خوروئ.

(۱۰) که دَ شمن هر څومره ستاسو نه خوشحاله په نظر راځي. لیکن پام

لیکن پام کوئ چه غافله نړے نه شي -!

(۱۱) چه چالد څه ورکوئ نو ځان دَ منځ نه اوباسئ - او خپل ځان ته مه غاوره کیږه. یعنے په دے مه غاوره کیږی. چه زه چاله ورکړه کوړلے شم. بلکه دا خیال کوئ چه زه خو په منځ کښې فقط دَ یو سبب، وسیلے او ذریعے په مثال یم. اصلي ورکوونکے خو الله تعالیٰ دے.

(۱۲) که عزت غواړئ نو دَ عدل او انصاف نه کار واخلئ.

(۱۳) که آرام او سودګی غواړئ نو دَ هیچا سره هم حسد مه کوئ.

(۱۴) که خلقو ته دَ علم قدر او قیمت معلوم شي. نو دَ دنیا نور ټول کارونه به پریږدی - او په علم حاصلولو پسے به ولګیږی.

(۱۵) دَ مومن زړه دَ پاکے زمکے پشان دے. که په دیکښے دَ مینے او محبت تخم اوکرلے شي. نو دَ هغې نه قسما قسم نعمتونه پیدا کیږی.

(۱۶) کوم سړے چه هر څو مره دَ خدائے نه غافل وی. هم هغه هومره به دَ دنیا په لانجو کښې مبتلا وی.

(۱۷) په قیاس او اټکل خبرے کوول نه دی پکار - او دَ خپل زړه نه دَ شیطان دَ لوبو کوډ اکے جوړول نه دی پکار یعنے هغه خبرے کوول پکار دی چه دَ علم او عقل په کنډه پوره او دَ خدائ په نزد برابرے وی.

٭ ٭ ٭

# حضرت جلال الدین

# ابو البرکات حسن میر سرخ بخاری

ولادت ــــــــ په بخارا کښې سنه ۵۹۵ھ

وفات ــــــــ په بهاولپور کښې سنه ۶۹۰ھ

د حضرت شیخ المشائخ ابو البرکات جلال الدین الملقب په جلال اعظم میر سرخ بخاری خپل اصلی او مخصوص نوم حسن دے "ال الدین" یې خاندانی لقب دے. او "جلال اعظم" او "میر سرخ" یې ذاتی القاب دی. او چونکه په بخارا کښې پیدا شوے وو. پدے وجه د دوی د نوم سره لفظ د "بخاری" لیکلے شی د نسب سلسله یې حضرت امام علی نقی رضی الله عنه ته رسیږی. شجره یې دا سے ده.

ابو البرکات سید جلال الدین حسنؒ المعروف په میر سرخ بخاری.
ابن سید علی ابو المؤیدؒ، ابن سید ابو علی جعفرؒ. ابن سید ابو الفتح صفی الدین محمدؒ. ابن سید ابو محمد ناصر الدین محمود اصغرؒ. ابن سید ابی یوسف وابو محمود شیخ المشائخ احمد قتالؒ. ابن سید ابو احمد شهاب الدین عبد اللهؒ.
ابن سید ابی عبد الله علی اصغر الملقبؒ په اشتر ابن سید ابو علی، جعفر المرتضیٰ الملقب په خلیل الله ثانی او جعفر ثانی ابن الامام ابو الحسن ثالث محمد علی نقی رضی الله عنهم اجمعین.

## ضروری وضاحت

په دے پورتنی شجره کښې چه هر خو مره نومونه ذکر شوی دی هر یو نوم په حقله په اختصار سره څنے ضروری وضاحتونه دلته سلسله وار درج کولے شی. د پاره د دے چه په مختلفو تذکرو او شجره نسبونو کښې چه کوم فرق موجود دے یا اشتباهات دی هغه رفع شی او فائده یې عامه شی.

له د پېښور ښهر د بخاري ساداتو په شجره کښې اونورو عامو تذکرو کښې دا
نوم فقط "جلال الدين مير سرخ بخاري" ليکلے شوے دے۔ حالانکه دغه د دوئ
القاب دي۔ اصلي نوم ئې نه دے۔ د باجوړ د بخاري ساداتو په شجره کښې د دوئ
اصلي او محضه نوم "حسن" درج دے۔ او د سيد افتخار علي شاه نقوي بخاري
مرحوم په تاليف "تحفة السادات" کښې او د اوچ بهاولپور د مشهور تذکره ليکونکي
خواجه فيض محمد مرحوم په شجره کښې د دوئ نوم داسے ليکلے شوے دے، "مخدوم
سيد جلال الدين حيدر سرخ پوش بخاري" (په حواله د مکتوب د سيد غلام
شبير بخاري د لاهور پنجاب) او د سيد غلام حسن کاظمي د مظفر آباد آزاد
کشمير په يو مکتوب کښې د دوئ نوم "حسين" درج دے۔ ليکن حمونږ د تحقيق
مطابق د باجوړ د بخاري ساداتو د شجرے روايت زيات صحيح دے۔ ځکه مونږ ه هم
دلته د دوئ نوم حسن درج کړلو۔

۲ه د دے شجرے دويم نوم دے "علي ابو المؤيد" د قبائلي علاقے باجوړ د بخاري
ساداتو په شجره کښې دا نوم "سيد ولي محمد" درج دے۔ او د اوچ شريف
بهاولپور په شجره کښې دا نوم "سيد محمود اصغر" درج دے۔ ليکن د پيښور ښهر
د بخاري ساداتو د شجرے او د سيد غلام حسن کاظمي د مکتوب مطابق مونږه
دا نوم "سيد علي ابو المؤيد" درج کړلو چه دا زيات صحيح روايت دے۔ مزار
مبارک ئې په بخارا کښې دے۔ او په ۵۷۵ھ کښې وفات شوے دے۔

۳ه د دے شجرے دريم نوم دے۔ "سيد ابو علي جعفر" د اوچ د ساداتو په شجره
کښې دا نوم داسے درج دے۔ "سيد جعفر" او د باجوړ د ساداتو په شجره کښې هم
دا نوم سيد جعفر درج دے۔ ليکن د کوجر ګړهئ د بخاري ساداتو د شجرے
مطابق د دوئ پوره نوم سيد ابو علي جعفر دے۔ مزار مبارک ئې په بخارا
کښې دے۔ او په ۵۷۵ھ کښې وفات شوے دے۔

۴ه د دے شجرے څلورم نوم "سيد ابو الفتح صفي الدين محمد" دے۔ د باجوړ

پینبور ښهر کوجر وکړهئ بهاولپور به تولو شجرو کښې دَ دوئ نوم "سید محمد" درج دے. لیکن دَ دوئ پوره نوم سید ابوالفتح صفی الدین محمد دے. مزار مبارک یئے په بخارا کښې دے. او په سنه ۵۱۹ھ کښې وفات شوے دے.

۵ د دے شجرے پنځم نوم "محمود" دے. دَ قبائلی علاقے باجوړ دَ بخاری ساداتو په شجره کښې دا نوم "سید ولی محمد" درج دے. او دَ اوچ شریف بهاولپور په شجره کښې دا نوم سید محمود اصغر درج دے. دَ ضلع مردان دَ کوجر وکړهئ دَ بخاری ساداتو په شجره کښې دا نوم صرف "سید محمود بخاری" درج دے. چنانچه په دے سلسله کښې دَ باجوړ دَ شجرے روایت صحیح نه دے. او دَ دوئ پوره نوم "ابی محمد ناصرالدین محمود اصغر" دے. اصغر ورته په دے بناء وئیلے شی. چه دَ دوئ دوه[2] رونړه وُو. دَ یو نوم علی وو چه هغه په "سید علی اکبر" نامه یادیدلو. او دَ دوه نوم محمود وو. چونکه دے کشر وو. په دغه مناسبت سره په محمود اصغر نامه یادیدلو. دَ دوئ کنیت ابومحمد دے. او لقب یئے ناصرالدین دے. په سنه ۳۷۰ھ کښې پیدا شوے دے. او په سنه ۴۶۷ھ کښې وفات شوے دے. مزار مبارک یئے په بخارا کښې دے. دَ والدے ماجدے دَ طرف نه شجره دَ نسب یئے دا سے ده. سید محمود اصغر بن زینب بنت سید مرتضیٰ بن سید محمد بن سید مظهر بن سید ابوالفضل محمد.

۶ د دے شجرے شپږم نوم سید ابویوسف وابومحمود شیخ المشائخ احمد قتال" دے. دَ دوئ اصلی نوم احمد دے. کنیت یئے ابویوسف او ابومحمود دے. او قتال یئے لقب دے. دَ باجوړ او کوجر کړهئ په شجرو کښے دا نوم "سید احمد کبیر" درج دے. او دَ اوچ په شجره کښې دا نوم ابویوسف احمد درج دے. لیکن پوره نوم یئے هغه دے کوم چه مونږ پورته اولیکلو. دَ والدے ماجدے نوم یئے سکینه بنت سید محمد بن سید مظهر بن سید ابوالفضل محمد دے. حضرت شیخ احمد قتال په سنه ۳۲۰ھ کښې پیدا شوے. او په سنه ۴۱۲ھ کښې وفات شوے

وفات شوے دے۔ مزار مبارک ئے په بخارا کښې دے۔
۴ د دے شجرے اووم نوم "سید ابواحمد شهاب الدین عبد الله" دے۔ د
پیښور ښهر د بخاری سادات و په شجره کښې دا نوم داسے درج دے: "سید
عبد الله جعفر" د باجوړ په شجره کښې دا نوم داسے درج دے۔ "سید
عبد الله جعفر ثانی"۔ د غه شان د اوچ شریف او کوجر کهی په شجره
کښې دا نوم داسے درج دے" سید عبد الله" په دے سلسله کښې د پیښور او
باجوړ د واړو روایت صحیح نه دے۔ ځکه چه جعفریه حقیقت کښې د سید
عبد الله د نیکه نوم دے۔ بلکه څرنګه چه موښ په پورته تصریح اوکړه
د دوئ اصلی محضه نوم عبد الله دے۔ اسم کنیه ئے ابواحمد دے۔ او لقب ئے
شهاب الدین دے۔ د والدے ماجدے نوم ئے خدیجه بنت سیّد مظهر بن
سید ابوالفضل محمد شریف فاضل دے۔ په سنه ۲۹۱ھ کښې پیدا شوے
دے۔ او په سنه ۳۵۲ھ کښې وفات شوے دے۔ مزار مبارک ئے د عراق
په سامره نومے ښهر کښې د خپل نیکه د مزار مبارک خواته دے۔ د
دوئ دوه ځامن وو۔

(۱) سید محمد نازوک علیه الرحمة چه د دهٔ اولاد په بنی نازوک نامه
یادیږی۔ د دهٔ پنځه ځامن وو۔ سید عیسیٰ۔ سید ابوالغنائم عبد الله
سید محمد۔ سید علی۔ سید یحییٰ۔
(۲) او د دویم ځوئ ئے سید ابویوسف احمد قتال نوم وو چه مخکښې ئے
ذکر اوشو۔ دے نه دا معلومه شوه چه بخارا ته هم دغه حضرت سید
ابویوسف احمد قتال راغلے وو۔
۵ د دے شجرے اتم نوم دے۔ "سید ابوعبد الله علی اصغر الملقب په
اشتر"۔ د کوجر کهی د بخاری سادات و په شجره کښې دا نوم "علی اشکر" درج
دے۔ او د اوچ په شجره کښې "علی اصغر" درج دے۔ په دے دواړو بیانونو

کښې چه کوم فرق دے. دَ هغې وضاحت دا سے دے. چه دَ دوئ خپل نوم "علی" دے. اصغر ئې تعریف دے. "ابوعبد اللّٰه" ئې کنیت دے. او "اشتر" ئې لقب دے. دَ والدے ماجدے نوم ئې دے. زینب بنت سید ابوالفضل محمد شریف فاضل بن سید ابوالقاسم علی نقیب قُم (ایران) بن سید محمد بن سید حمزه مشهود بن سید احمد السُرخ بن سید محمد بن سید اسماعیل ابن سید محمد الارقط بن سید عبد اللّٰه باهر بن امام زین العابدین علی بن سید امام حسین رضی اللّٰه تعالیٰ عنهم اجمعین. حضرت سید علی اشتر په سنه ۲۵۷ھ کښې پیدا شوے دے. او په سنه ۳۲۱ھ کښې وفات شوے دے. مزار مبارک ئې په سامره (عراق) کښې دَ خپل پدر بزرگوار خواته دے. د دهٔ څلور ځامن وو. محمد. جعفر. اسماعیل. عبد اللّٰه. په دوئ کښې حضرت سید اسماعیل دَ وادئ سنده دَ بهکر نومے ښهر دَ ساداتو نیکه دے. او هر کله چه حضرت میر سُرخ بخاری علیه الرحمة بهکر ته تشریف راوړلو. او هم دے ساداتو په کور نئ کښې ئې واده کړے وو.

۵۹ دے شجرے نهم نوم "سید جعفر" دے. دَ باجوړ، پیښور او کوجر کړهئ دَ بخاری ساداتو په شجرو کښې دا نوم دا سے درج دے. "سید جعفر ثانیؒ" او دَ اوچ شریف بهاولپور په شجره کښې دا نوم دا سے درج دے. "سید جعفر ثانی تواّب. زکی". دَ دوئ اصلی نوم جعفر دے. ابوعلی ئې کینت دے. جعفر ثانی. جعفر المرتضیٰ. جعفر التوّاب. جعفر زکی. خلیل اللّٰه ثانی ئې القاب دی رضی اللّٰه عنه

(فائده) دَ ملتان او پیښور دواړو په شجرو کښې دَ جعفر ثانی او علی نقی تر منځه دَ امام حسن عسکری نوم نشته دے. فقط دَ باجوړ دَ شجرے دا روایت غلط دے. په دے سلسله کښې دَ کوجر کړهئ په شجره کښې چه کوم وضاحت دے هغه دا مسئله صفا کوی. او هغه دا دے چه دَ حضرت امام علی نقی

درے ځامن وو. (۱) امام حسن عسکری. حسین. جعفر ثانی چه په دوئ
کښې دغه دریم کشر ځوئ سید جعفر ثانی دَ حضرت میر سرخ بخاری علیه
الرحمة نیکه دے. رحمة الله علیهم اجمعین.

حضرت ابوالبرکات سید جلال الدین حسن میر سرخ بخاری علیه الرحمة
په ۵۹۵ھ کښې په بخارا کښې پیدا شوے وو. بیا دَ بخارانه یې دَ خلو یشتو
کالو په عمر کښې په ۶۳۵ھ کښې دَ وادئ سنده بهکر نومے ښهر ته تشریف
راوړلو. او هم دلته یې استوګنه اختیار کړله. څه موده پس د دغه ځائ نه
ملتان ته راغے. او دَ حضرت شیخ الشیوخ حضرت بهاء الدین ذکریا نه یې په
سلسله عالیه سهروردیه کښې لاس بیوے وکړه. لکه چه وړاندے ذکر
شوے دے. حضرت ابو محمد شیخ بهاء الدین ذکریا دَ حضرت شیخ شهاب الدین
عمر سهروردی علیه الرحمة ممتاز خلیفه وو.

حضرت سید جلال الدین میر سرخ بخاری ته خپل مرشد کامل
دَ خلافت خرقه ورکړے وه. دے دَ ظاهری او باطنی دواړو علومو
ډیر لوئ فاضل عالم او دَ ډیرے اوچتے روحانی مرتبے او کمالاتو خاوند وو.
او دَ خپل وخت په جلیل القدر بزرګانو کښې دَ دوئ دَ علمی او روحانی
مرتبے او چتوالے منلے شوے وو.

دَ بهکر دَ استوګنے په زمانه کښې یې په ۶۵۴ھ کښې دَ دغه ښهر دَ یو
مشهور بزرګ حضرت سیّد بدرالدین علیه الرحمة دَ کشرئ لور
بی بی سره نکاح او شوه. حضرت شیخ عبد الحق محدّث دهلوی په خپل
کتاب اخبار الاخیار کښې لیکی: چه حضرت میر سرخ بخاری ته دا دے
نکاح زیرے دَ حضرت رسول مقبول صلعم دَ طرف نه ورکړے شوے وو.
دَ واده کولو نه څه نیټه روستو دوئ بهکر نه په کډه بانده په
۶۵۷ھ کښې دَ بهاولپور اوچ نومے ځائ ته راغلل. او دلته یې استوګنه

اختیار ؒ ا ے۔ په اوچ شریف کښې چه دوی په کومه محله کښې استوګنه اختیار کړې وه۔ هغه ترننه ورځې په محله بخاریان سره مشهوره ده۔

دلته د اخبره هم یاد لرل پکار دی. چه دبهاولپور دغه اوچ نومې مقام ډیر بختور ځاي دے. دلته د سیدانو دوه کورنئ اوسیږی.

(الف) یوه د بخاری سادا تو کورنئ ده۔ چه مورث اعلیٰ ئے هم دغه حضرت میر سرخ بخاری دے.

(ب) دویمه د ګیلانی سادا تو کورنئ ده۔ چه په خصوصیت سره د حضرت غوث الاعظم میران محی الدین عبدالقادر جیلانی رضی الله عنه د مشری ځوئ حضرت سید الوهاب علیه الرحمة د نسل ځنے دی. او د ے په مناسبت د خپل نوم سره سید ګیلانی عبدالوهابی لیکی. په دے خاندان کښې هم ډیر لوئ لوئ بزرګان تیر شوی دی. علیهم الرحمة.

د حضرت میر سرخ بخاری علیه الرحمة د ځامنو په شمیره او تعداد کښې اختلاف دے۔ چه دلته ورته اشاره کول مناسب ګنړو۔

(الف) د مفتی غلام سرور لاهوری په تالیف "تاریخ مخزن پنجاب (سنه ۱۲۹۴ھ) کښې لیکلی دی۔ چه د دوئ درے ځامن وو۔ سید محمد کبیر[۱]۔ سید احمد کبیر[۲]۔ سید بهاء الدین[۳]۔

(ب) شیخ عبدالحق محدث دهلوی په خپل کتاب " اخبار الاخیار" کښې د دوئ دوه ځامن یاد کړی دی۔ (۱) محمد. (۲) احمد۔

(ج) د پیښور ښهر د بخاری سادا تو په شجره کښې د دوئ د څلورو ځامنو نومونه درج دی۔ (۱) محمد غوث (۲) احمد کبیر (۳) معصوم علی (۴) جعفر۔

(د) د اوچ شریف د بخاری سادا تو په شجره او د مخدوم سید غلام شبیر بخاری د تره سید افتخار علی شاه نقوی بخاری مرحوم په تالیف " تحفة السادات" کښې د دوئ د پنځو ځامنو نومونه درج کړی دی۔ (۱) سید علی۔

(۲) سید جعفر (۳) سید محمد غوث (۴) سلطان سید احمد کبیر (۵) سید معصوم.

د دے پورتنو روایتونو په اختلاف چه فکر اوکړو. نو دے یو څو نتیجو ته رسیږو. (۱) چه د تاریخ مخزن پنجاب په روایت کښی چه د دریم ځوئ نوم سید بهاء الدین یاد شوے دے. نو دغه ئے د دریم ځوی نوم نه دے. بلکه د سید احمد کبیر لقب دے. ځکه چه د سید محمد کبیر د نوم سره په طور د لقب باقاعدے شیخ صدر الدین ذکر شوے دے. هم دغه شان د سید احمد کبیر د نوم سره کلمه د بهاء الدین په طور د لقب استعمال شویده.

(۲) بله خبره دا ده چه په کتاب اخبار الاخیار کښی ذکر شوے نوم "محمد" او په تاریخ مخزن پنجاب کښی ذکر شوے نوم "محمد کبیر" او د پیر پور - اوچ بهاولپور او د باجوړ د بخاری ساداتو د شجرو نوم "محمد غوث" دا درے واړه په حقیقت کښی د یو سړی نوم دے. وضاحت ئے داسے دے. چه د ده اصلی نوم "محمد" دے. او غوث - کبیر - صدر الدین ئے تعریفی القاب دی.

(۳) بله دا چه په اخبار الاخیار او تاریخ مخزن پنجاب کښی د حضرت سید جلال الدین میر سرخ بخاری فقط د وه مشرانو ځامنو نومونه یاد شوی دی. او د پیر پور اوچ باجوړ د بخاری ساداتو شجرے چونکه خاندانی یاد داشتونه دی. په دے وجه په دے کښی د ده ټولو ځامنو نومونه راغلی دی.

(۴) بله خبره چه ځمونږ د پاره د غور او بحث قابله ده. هغه د هغے فرق په مقابله ده. چه د حضرت میر سرخ د ځامنو د نومونو په ترتیب کښی په مختلفو تاریخی کتابونو او تذکرو کښے په نظر راځی. په اختصار سره وضاحت کول ئے ضروری ګنړو.

د پیر پور په شجره کښی د دوی د ځامنو نومونه په دے ترتیب لیکلی شوی دی. محمد - احمد - معصوم - علی - جعفر - او د اوچ بهاولپور په شجره کښی د پیر پور د شجرے نه برعکس دوه قسمه فرق موجود دے. اول د نومونو په ترتیب کښی فرق دے. چه هغه داسے دے. علی - جعفر - محمد - احمد - معصوم. دویم دا چه د دے کښی

دَ پیښور دَ شجرے پو نوم "معصوم علی" دوه تو لے شوے دے. یو ه تو له علی. بله معصوم. په دوئ کښې علی دَ تولو نه دَ مشری او پر وښې څوی نوم ښودلے شوے دے. او معصوم دَ تولو نه دَ کشری پنځم څوئ نوم ښودلے شوے دے. او چ دَ شجره نسب دے بیان چه روستو کوم تاریخی مشکلات پیدا کړی دی. دَ هغې په اکثر تذکره لیکونکی او مؤرخان په اضطراب کښې پریوتلی دی. دَ مثال په طور دَ اوچ دا شجره نسب چه مفتی غلام سرور لاهوری (۱۸۷۲ء) په لاس ورغلے دہ. نو دے په بناء هغه پخپل کتاب خزینة الاصفیاء جلد ۲ صفحه ۲۸ کښې لیکلی دی. چه دَ حضرت میر سرخ بخاری دوه ځامن علی او جعفر و رسره دَ بخارا نه راغلی وو. او څه زمانه په هند (پاکستان) کښې دَ اوسیدلو نه روستو واپس بخارا ته لاړل. بیا ورپسے هم د دے خزینة الاصفیاء په جلد ۲ صفحه ۳۸ کښې او په سیر العارفین (ص ۱۵۵) او تاریخ فرشته (ص ۶۸۲) کښې چه حضرت میر سرخ بخاری دَ حضرت بدرالدین بهکری یوه لور به نکاح کړے وه. او چه هغه وفات شوه نو بیا ئے دَ هغوی بله لور په نکاح کړه. او د دے بیبیانو نه ئے پرله پسے درے ځامن اوشول. دَ اولنۍ بی بی نه بهاءالدین او محمد غوث او دَ دویمے نه احمد کبیر.

په دے پورته بیانونو کښې په خصوصیت سره دَ مفتی غلام سرور په بیانونو کښې چه کوم فرق دے هغه ډیر عجیبه دے. ځکه چه یو خوا ته دے پخپل کتاب مخزن پنجاب کښې دَ حضرت میر سرخ بخاری دَ ځامنو نومونه په دے ترتیب سره لیکی. محمد. احمد. بهاءالدین او بل خوا ته په خزینة الاصفیاء کښې هم دغه نومونه په دے ترتیب سره لیکی. بهاءالدین. محمد. احمد لیکن څرنګ چه مونږ وړاندے دَ حضرت داتا ګنج بخش په تذکره کښې تصریح کړے ده. چه دَ زمانے په لحاظ سره خزینة الاصفیاء دَ مفتی غلام سرور اولنۍ دَ سنه ۱۲۸۲ھ دَ زمانے تالیف دے. او مخزن پنجاب ئے دَ سنه ۱۲۹۲ھ دَ زمانے روستنۍ تالیف دے. په دے وجه دَ حضرت میر سرخ بخاری دَ ځامنو هغه ترتیب دے

او صحیح هم دے کوم په مخزن پنجاب کښ یئے محمد. احمد. بهاء الدین درج کړے دے. ځکه چه دا ترتیب د حضرت شیخ عبدالحق محدث دهلوی د کتاب اخبار الاخیار د بیان کړی ترتیب مطابق دے. او لکه چه په پورته په نزدے کړښو کښ مونږه واضحه کړے ده.
بهاء الدین د حضرت میر سرخ بخاری د دریم ځوئ نوم نه دے. بلکه د حضرت احمد کبیر لقب دے.

دے پورتنو بیانو نو چه کوم تاریخی مشکلات پیدا کړی دی. هغه دا دی. چه که مونږه په دے روایتونو اعتماد او کړو. نو د دے مطلب به دا شی چه د خزینة الاصفیاء د پورتنی روایت مطابق دا نتیجه به اخیستل غواړی چه حضرت میر سرخ بخاری درے ودونه کړی وو. یو یئے په بخارا کښ کړے وو. چه د هغے نه یئے علی او جعفر دوه ځامن پیدا شوی وو. هغه ورسره د بخارا نه بهکر ته راغلی وو. او د لته د ځو ورځو قیام نه پس بیرته بخارا ته تلی وو. (حالانکه نواب صدیق حسن خان پخپل کتاب الفرع النامی صفحه ۸۱ کښ لیکی چه د حضرت میر سرخ بخاری یو ځوئ چه د هغه علی نوم وو. هغه ورسره په سنه ه کښ اوسید ه.) او بیا د هغے نه روستو حضرت میر سرخ بخاری حضرت بدر الدین بهکری د دوه لونړو سره پرله پسے ودونه کړی وو چه د هغے نه درے ځامن پیدا شوی وو.

لیکن حقیقت د غه شان نه څرنګ چه بیان شوے دے. په دے کښ یو خو اته په اصلی واقعاتو کښ خلط ملط راغلی دے. او بل خوا ته بعض حقائق نظر انداز شوی دی. خبره دا ده چه:-
(الف) په دے سلسله کښ د پیښور د بخاری ساداتو د شجره نسب بیان صحیح دے. چه د حضرت میر سرخ بخاری د مشرانو ځامنو نومونه علی الترتیب محمد او احمد دی. د دے تائید د اخبار الاخیار نه د باجوړ د بخلوی ساداتو

او دَ کوجر کړهٔ ئ دَ بخاري ساداتو دَ شجره نسبو نو نه کيږي. دَ دوي دوه مشران ځامن محمد او احمد دي. دا دے تائيد دَ اخبار الاخيار نه دَ باجوړ دَ بخاري ساداتو او دَ کوجر کړهي دَ بخاري ساداتو دَ شجره نسبو نو نه کيږي. دَ دغه دواړو مشران ځامن محمد او احمد دي دَ حضرت سيد بدرالدين بهکري دَ مشرې لور بي بي نه يعنے دَ مير سرخ دَ اولني تهبر نه پيدا شوي وو. او معصوم علي او جعفر ئے علي الترتيب دريم او څلورم کشران ځامن وو. او دَ حضرت بدرالدين دَ دويمے لور ياد مير سرخ دَ دويم تهبر نه پيدا شوي دي. حضرت سيد جلال الدين مير سرخ بخاري په سنه ۶۳۵ھ کښې بهکر ته راغلے وو. دَ اولني واده نتيجه ئے هم دغه سنه ۶۳۵ھ متعين کولے شو چه دغه وخت دَ دوي عمر څلويښت کاله وو. بيا چه دا تهبر ئے وفات شو. نو دَ حضرت سيد بدرالدين دَ دويمے لور بي بي سره ئے په سنه ۶۵۴ھ کښې نکاح کړے وه. او بيا هم دا دے. بي بي نه ئے دوه ځامن معصوم علي او جعفر پيدا شوي وو.

په اصل کښې په بخارا کښې دَ حضرت مير سرخ بخاري دَ واده کولو او بيا ورسره دَ دغه ځائې نه دَ دوه ځامنو علي او جعفر دَ راتللو سوال ځکه نه پيدا کيږي. چه دَ اخبار الاخيار روايت بالکل صاف دے. چه دَ بهکر دَ سيد بدرالدين دَ لور بي بي سره دَ واده کولو زيرے ورته حضرت نبي کريم عليه التحية والتسليم ورکړے وو. او دَ بخارا نه بهکر ته دَ دوئي دَ راتللو اصلي باعث هم په حقيقت کښې دغه وو.

## حضرت سيد محمد غوث کبير بخاري

دَ حضرت سيد جلال الدين حسن المعروف په مير سرخ بخاري دَ مشر ځوئ حضرت سيد صدرالدين محمد غوث کبير بخاري څلور ځامن وو. (۱) ابوسعيد (۲) ابوالغيث (۳) شمس الدين (۴) سيد ابوالکرم دا پورتنے روايت دَ کتاب "تحفة السادات" دے. دَ باجوړ دَ بخاري ساداتو

په شجره کښې دده دویم ځوئ نوم "سید غوث" لیکلے شوے دے. چه دا روایت زیات صحیح معلومیږی. دَ پیښور ښهر دَ کریم شاهی بخاری سادا تو کورنئ دده حضرت سید محمد غوث اولاد دے.

دد غے نه علاوه دَ قبایلی علاقے باجوړ (مالاکنډ ایجنسی پښاور ډویژن) په مختلفو حصو کښې چه بخاری سادا تو کوم خاندانونه دی. هغه هم دده حضرت سید محمد غوث کبیر اولاد دے. دده حضرت سید غوث کبیر دَ دویم ځوئ دَ حضرت سید غوث علیه الرحمه په اولاد کښې بنکته په اووَمه پیړی کښې یو کسے وو. چه دَ هغه حضرت سید ابراهیم نوم وو. هغه دَ ملتان نه باجوړ ته راغلے وو. او دَ هغه نه بیا دَ باجوړ دَ بخاری سادا تو سلسله خوره شوے ده.

(روستو به دده سید ابراهیم تذکره راشی.)

## حضرت سید احمد کبیر بخاری

دَ حضرت سید جلال الدین حسن میر سرخ بخاری دَ دویم ځوئ حضرت سید بهاء الدین سلطان احمد کبیر بخاری دوه ځامن وو. (۱) حضرت سید جلال الدین حسین المعروف په مخدوم جهانیان جهان گشت. او دویم حضرت مخدوم شیخ صدر الدین محمد راجن قتال علیهم الرحمة.

دَ حضرت مخدوم جهانیان تذکره به روستو په تفصیل سره راشی. او دَ دوئ دَ ورور حضرت مخدوم قتال نوم دَ پیښور ښهر په شجره کښې داسے لیکلے شوے دے. "شیرجان قتال" په کتاب رود کوثر (ص ۴۶) کښې دا نوم "سید راجو قتال" درج دے. په تاریخ مخزن پنجاب جلد ۲ صفحه ۳۳۴ کښې دا نوم "سید راجن قتال درج دے. او په کتاب مناقب الولایت دَ حامد گنج بخش (ص ۲) کښې هم دا نوم "راجن کتّال" درج دے. البته دَ سید غلام حسن کاظمی په قلمی یاداشتونو کښې دا نوم داسے لیکلے دے" دیوان

سید محمد صدر الدین شاہ راجو قتال" یعنی نوم یو دے. فقط دَ علاقائی لهجو دَ اختلاف په وجه په تلفظ کښې ئې اختلاف راغلے دے. په سنه ۸۲۷ھ کښې وفات شوے دے. او مزار مبارک ئې په دهلی کښې دے. نور لا تذکره په ئې روستو دَ مخدوم جهانیان دَ تذکرے په ضمن کښې راشی.

په بعض تذکرو کښې دَ حضرت سید احمد کبیر دَ یو بل دریم ځوئ سید صدر الدین ذکر هم شوے دے لیکن دغه صحیح نه دے. دَ پیښور په شجره کښې دا دَ دریم ځوئ نوم نه دے. بلکه لکه چه پورته ورته اشاره او شوه صدر الدین دَ حضرت سید راجن قتال لقب دے. چه په مکتوبات دَ سید اشرف جهانگیر سمنانی کښې دَ دوئ دا لقب په ډیر وضاحت سره ذکر شوے دے.

## (وفات)

حضرت میر سرخ بخاری علیه الرحمة په سنه ۶۹۰ھ مطابق سنه ۱۲۹۴ء کښې وفات شوے دے. مزار مبارک ئې په اوچ بهاولپور کښې دے. او مرجع دَ عام او خاص دے.

## (خلفاء او مریدان)

دَ حضرت سید جلال الدین میر سرخ بخاری علیه الرحمة په مریدانو کښې حضرت سید شرف الدین شاه ولایت متوفی سنه ۷۳۹ھ مشهور بزرګ تیر شوے دے. چه دَ هندوستان دَ مشهور ښهر (امروهه) دَ ساداتو مورث اعلیٰ دے. روستو هم دَ دے شاه ولایت په اولاد کښې په اووم پشت کښې یو بل ئے تیر شوے دے. چه دَ هغه نوم وو.

## حضرت سید محمد علیه الرحمة

دغه حضرت سید محمدؒ ډیر لوئ عالم وو. په علوم ظاهری او باطنی دواړو کښې دَ لوئ مرتبے خاوند وو. ډیره موده ئې دَ شهنشاه جلال الدین اکبر په دربار کښې دَ "میر عدل" یعنی قاضی القضاة په عهده باندے ئے فرائض ادا کړی وو. په آخر عمر کښې دَ صوبه سنده

نائب الحکومت (گورنر) مقرر کړے شو۔ سنده ته يې تشريف راوړلو۔ او په مرکزی مقام سکهر کښې يې د سنده د حکمران په حيثيت سره استوګنه اختيار کړه۔ د تاريخ معصومی د روايت مطابق حضرت سيّد محمد عليه الرحمة په ۱۱ تاريخ د رمضان المبارک سنه ۹۸۳ھ سنده ته راغلے وو۔ چه روستو هم دلته وفات شو۔ مزار مبارک يې په سکهر کښې دے۔

عليه الرحمة والغفران۔



# اولیائے مشرقی پاکستان

| | |
|---|---|
| حضرت شیخ شرف الدین توامہ | حضرت شیخ جلال الدین تبریزی |
| حضرت شیخ راجا بیابانی | حضرت شیخ مولانا عطاء |
| حضرت شیخ عثمان اخی سراج | حضرت شیخ علاء الحق |
| حضرت بدر عالم زاہدی | حضرت سراج الدین صدیقی |
| حضرت نور قطب عالم | حضرت پیر قتال |

حضرت سلطان شمس الدین

| | |
|---|---|
| حضرت سلطان مبارک شاہ | حضرت سلطان علاء الدین علی شاہ |
| حضرت سلطان الیاس شاہ | حضرت سلطان غیاث الدین اعظم شاہ |

# دَ مشرقی پاکستان اولیاء الله

په مشرقی پاکستان کښې دَ اسلام رڼا چه دَ کومو اولیاء الله وُ. مشائخو. عالمانو او مسلمانانو بادشاهانو په ذریعه خوره شوې ده. په هغوئ کښې دَ حضرت سلطان بختیار خلجی. حضرت ابراهیم دانشمند ارمړ. حضرت مخدوم شاه محمد غزنوی - حضرت خواجه عبد الله کرمانی - حضرت سلطان غیاث الدین عوض خلجی. حضرت علی مردان خلجی. حضرت شیخ رکن الدین سمرقندی. او حضرت سلطان ارطغرل علیهم الرحمة تذکره مخکښې بیان شوې ده. دَ حضرت سلطان بختیار خلجی او دَ هغه دَ پسماندګانو نه روستو په دې زمکه باندې کنړا او پرله پسې اسلامی حکومتونه قایم شول. چه دَ دغه مسلمانانو بادشاهانو او دَ هغوئ په زمانه کښې دې ملک ته راغلو عالمانو. صوفیانو او روحانی پیشوایانو په برکت دَ اسلام رڼا دې ملک په کوټ کوټ کښې خوره شوله. په هغه زمانه کښې څرنګ چه په دکهن. ګجرات او جانپور کښې طاقتور او مستقل اسلامی حکومتونه قایم شوی وو. په بنګال (مشرقی پاکستان او مغربی بنګال) کښې هم دغه شان مضبوط اسلامی حکومتونه قایم شوی وو. او دَ اسلام دَ تبلیغ. تعلیم. او اشاعت دَ پاره باقاعده انتظامات شوی وو.

## :- حضرت سلطان شمس الدین :-

په دې سلسله کښې دَ بنګال دَ کوهنومے علاقے دَ یو نامور سلطان حضرت شمس الدین علیه الرحمة نوم دَ یاد ولو دے. چه علاوه دَ بادشاهئ او حکمرانئ نه پخپله زمانه کښې دَ خدائ پاک ډیر نیک بنده او تقوی دار بزرګ وو. حضرت سلطان شمس الدین او دَ دهلی مشهور بادشاه سلطان علاء الدین خلجی دواړه همعصر وو. سلطان شمس الدین دَ بنګال دَ زمکے په بادشاهانو کښې اولوالعزم بادشاه تیر شوے دے. دے نامور بادشاه دَ اسلام ډیر خدمتونه

کړی دی۔ دَ سلهټ په علاقه کښې هم د دۀ په زمانه کښې اسلام خور شوے وے۔
او دَ بنګال او آسام ټولے علاقے سره دوباره په مکمل طور سره هم دۀ فتح کړے
وے او په خپل اسلامی حکومت کښې ئے شامل کړے وے۔ دَ ۶۹۸ھ نه
تر ۷۰۹ھ پورے ئے حکومت کړے وو۔

## تبلیغی مهمُونه

هر کله چه دَ حضرت سلطان شمس الدین علیه الرحمة په مبارکو کوششونو
په بنګال کښې دَ مسلمانانو دَ اقتدار په مکمل طور سره قایم شو۔ نو دوئ دَ
انتظامی امورو له مخه دَ بنګال مملکت په ګڼړو حدونو او تپو کښې تقسیم کړلو۔
په سرحدی علاقو کښې ئے فوځی چهاؤنړے جوړے کړے۔ تجارت او صنعت له
ئے ترقی ورکړه۔ بندرګاهونه ئے جوړ کړل۔ او دغه ملکونه ته ئے دَ اسلام دَ
تبلیغ دَ پاره تبلیغی مهمونه اولیږل۔ په ست ګاؤں (ډهکه) سونار ګاؤں۔
چاټ ګام۔ هالنګ (سلهټ) کښې لوئ لوئ بندرګاهونه او تجارتی مرکزونه
وو۔ او په دغه زمانه چه کوم مرکزی مقامات وو۔ او هلته دَ اسلام دَ تبلیغ
او نشر او اشاعت دَ پاره دینی م... او خانقاهونه قایم وو۔ دَ هغے نومونه
دلته درج کولے شی۔ چه په دے کښې اکثرو مقاماتو دَ مرکزی یا علاقائی
اسلامی دارالحکومتونو حیثیت هم لرلو۔ هغه مقامات دا وو۔ دیوکوټ۔ ګوړ۔
لکهنوتی۔ پنډوه۔ ظفر آباد۔ ست ګاؤں۔ سونار ګاؤں۔ چاټ ګام۔ هالنګ
(سلهټ) لکهنور۔ میسی۔ بهار شریف۔ حاجی پور وغیره۔
دا ټول مقامات دَ اسلامی تهذیب او ثقافت مرکزونه وو۔ عالمان او مشایخ
چه به دَ کوه سلیمان او کوه کسئ (روه۔ او بلوچستان) حیدر آباد۔ (سندھ) لاهور۔
ملتان۔ پیښور او کشمیر او دهلی نه روان شول نو جونپور ته به راغلل۔
دَ هغه ځائ نه به بهار شریف ته اورسیدل۔ او بیا به دَ هغه ځائ نه دَ
بنګال خاورے ته اورسیدل۔ په مختلفو علاقو ښهریو او مرکزونو کښے به خوار ۲

شول. استوګنه به یې اختیار کړه. او خپل تبلیغي مهم کښې به مشغول شول.
دَ هغه زمانې سلطانانو به دا خپله ذمه واري ګڼړله. چه هر یو نوے عالم یا روحاني پیشوا به دې خاورے ته ورشریک شو. نو دَ هغه سره به هر څومره شاګردان. طالب علمان یا مریدان وو. دَ هغوئ دَ استوګنے او خرځ خوراک انتظام به یې کولو. او هم دا دے "روحاني تړون" په برکت دَ اسلام رڼړا دَ زیاتے نه زیاته خوره شوے وه.

مشرقي پاکستان او مغربي بنګال ته چه عالمان او مشایخ په څومره زیات تعداد کښې راغلي دي. هلته استوګن شوي دي. او دَ اسلام خدمتونه یې کړي دي. دَ هغې انداز دَ مخدوم سید اشرف جهانګیر سمناني علیه الرحمة دَ یو تاریخي مکتوب نه لګیدلے شي. چه دَ جونپور حکمران حضرت سلطان ابراهیم شاه شرقي علیه الرحمة ته یې په سنه ۸۲۹ هـ کښې لیږلے وو. حضرت سید اشرف علیه الرحمة په دغه خپل مکتوب کښې لیکي:-

"دَ بنګال هیواد هم څومره ښکلے ملک دے. چه دلته دَ مختلفو مقاماتو نه بے شمیره عالمان او مشایخ راغلي دي. او دا یې خپل وطن ګرزولے دے. دلته استوګن شویدي. او بیا هم په دے خاوره کښې وفات شویدي. او دفن شوي دي. دَ مثال په طور" دیوکان "نومے علاقه واخلئ. دلته دَ حضرت شیخ الاسلام والمسلمین خواجه شهاب الدین سهروردي علیه الرحمة اولس[۱۷] ممتاز مریدان او خلیفه ګان په ابدي خوب اوده[له] دي. دَ سلسله عالیه سهروردیه ګنړ ممتاز بزرګان په "میسي" نومے علاقه کښې دفن دي. هم دغه حال دَ

---

له دَ حضرت شیخ شهاب الدین سهروردي په حکم او هدایت سره چه شهاب الدین غوري په ملک تیا کښې دَ ترائن دویم غزا له دَ حضرت شیخ شهاب الدین سهروردي کوم بے شمیره خلیفه ګان راغلي وو. او بیا روستو دَ بختیار خلجي سره دَ بنګال غزا له راغلي او دلته شهیدان شوي وو. دا دَ هغه بزرګانو مزارات دي. (اثر)

دَ "دیوتله" نومے مقام دے۔ چه دلته دَ سلسله جلالیه بے شمیره بزرگان دفن دی۔ دَ "نارکوټي" په مقام دَ حضرت شیخ المشائخ شاه جلال تبریزی او حضرت شیخ احمد دمشقی علیهم الرحمة دَ بعض بهترینو ملګرو او پیر بهائیانو مزارونه واقع دی۔

دَ سلسله عالیه قادریه په مشاهیر و بزرګانو کښې په شمار دولس بزرګانو زیارتونه په موضع "سونارګاؤں" کښې دی چه په دے دولس بزرګانو کښې دَ یونوم حضرت شیخ شرف الدین توامه چه خومره عظیم الشان روحانی پیشوا تیر شوے دے۔ دَ هغے اندازه ددے نه لګیدے شی۔ چه دَ حضرت شیخ شرف الدین یحیٰ منیری په شان شهرهٔ آفاق بزرګ هم دده په خاصو شاګردانو کښې شمیرلے شی۔ دَ دوئ نه روستو حضرت باد عالم قدس سره او حضرت بدر عالم زاهدی قدس سره تیر شوی دی۔ لنډه خبره داده۔ چه دَ بنګال ښهرونه خولا پریږده۔ چه په دے هیواد کښې داسے هیڅ یو قصبه او کلے هم نشته۔ چه هلته دَ دین بزرګان عالمان او مشائخ نه دی اوسیدلی او هلته آباد شوی نه دی"۔ (مکتوب دلته ختم شو۔)

دَ مشرقی پاکستان ډیر اولیاء الله داسے دی چه دَ هغوئ زمانه دَ بختیار خلجی نه مخکښې بیانولے شی۔ لیکن چه کله دَ تاریخی حقائقو په رڼا کښې دَ هغے جائزه واخیستلے شی۔ نو صحیح نه ثابتیږی۔ لیکن بیا هم بالکل غلط هم ورته نشی ویلے کیدے۔ او دا ممکنه ده۔ چه دَ بختیار خلجی دَ فتوحاتو نه وړاندې مسلمانان مبلغان دے علاقو ته راغلی وی۔ ځکه چه دَ اسلام دَ اولنۍ صدئ راسے دَ مسلمانانو تاجرانو تګ راتګ دے علاقو ته جاری وو۔ او لوئ ثبوت یے دا دے۔ چه چځیله سلطان بختیار خلجی هم دَ اسونو سوداګرو په جامه کښې دَ بنګال دار الحکومت "ندیا" ته داخل شوے وو۔ او دَ دریاب په لاره باندے دَ چاټګام علاقے ته دَ عربو سوداګرانو باقاعده تګ راتګ دَ سنه ۳۰۰ھ

په ابتداء کښې شروع شوې وو. او هم په دغه سنه ۳۰۰ھ مطابق سنه ۹۰۰ء کښې د عربو پولاځان له قصبه اډیو ورکو ته شان ریاست هم په دې علاقه کښې قائم شوې وو. چه د هغې حکمران به د سلطان په نامه یادیدلو. په سنه ۹۵۳ء کښې د اراکان د راجه او د چاټ ګام د سلطان ترمنځه چه کوم جنګ شوې وو. د هغې تاریخي ثبوت موجود دې. د اسلام د ابتدائي درې صدو په دوران کښې کوم بزرګان چه بنګال ته راغلي دي. د هغوي په حقله ځان له د یو مستقل تاریخي او تحقیقي کتاب لیکلو ضرورت دې.

په هرحال په دې کښې هیڅ شک نشته دې. چه د سلطان بختیار خلجي د فتوحاتو نه روستو د بنګال خاورې ته د علماؤ او مشائخو باقاعده راتګ شروع شوې وو. او بیا د سلطان شمس الدین په زمانه او د هغه نه روستو نزدې زمانې مسلمانانو په وخت کښې عروج ته رسیدلي وو. او لکه چه مخکښې ورته اشاره شوې ده. نه صرف د برصغیر پاک او هند د مختلفو ښهرونو او مرکزونو نه بلکه د بخارا. سمرقند او تبریز او نورو اسلامي هیوادونو نه مشاهیر بزرګان دلته راغلي وو. دلته استوګن شوي وو او عمرونه یې د اسلام په تبلیغ کښې صرف کړي وو.

په تاریخي اعتبار سره د بنګال خاورې ته د ټولونه وړاندې د سلسله عالیه قادریه او سهروردیه بزرګان راغلي وو. او د دې ملک په اولني جهاد کښې یې حصه اخیستې وه. او چه کوم د دې جهادونو نه روستو وندي پاتې شوي وو. هغوي د تبلیغ حق ادا کړې وو. وروسته د سلسله عالیه چشتیه مشائخ دلته راغلي وو. چه په هغوي کښې د یو مشر بزرګ د حضرت خواجه غریب نواز مشهور خلیفه حضرت عبدالله کرماني نوم د یادولو دې. په ابتداء کښې سهروردیه سلسلې ته بنه پوره عروج حاصل شوې وو. او څه زمانه پس د حضرت نظام الدین اولیاء د مشهور خلیفه حضرت اخي سراج په وجه

دَ سلسلہ چشتیه په مقبولیت کښې اضافه شوې وه. (دَ حضرت اخي سراج تفصيلي تذکره به روستو راشي.) هم په دغه زمانه کښې دَ حضرت پير بدر عالم زاهدي عليه الرحمة په ذريعه دَ سلسله عاليه زاهديه هم ښه اشاعت شوې وو. ددغې نه علاوه دَ طريقت او روحانيت دَ درې نورو سلسلو مداريه. قلندريه. فردوسيه هم ډير نيک اثرات په عامو خلقو باندې پريوتلي وو. او دَ خلقو زړونه يې دَ خداي او دَ رسول په مينه ښيرازه کړي وو. دلته دا خبره ياد لرل پکار دي چه څومره دَ پخوانۍ زمانے دغه ټول روحاني پيشوايان دَ شريعت او طريقت دواړو دَ ټولو علمونو دَ اسرارو او رموزونو څخه واقف وو. دَ دوئ په نظر کښې په شريعت او طريقت کښې هيڅ فرق نه وو. او دَ ظاهري او باطني دواړه علمونو په ذريعه به يې دَ خداي مخلوق دَ اسلام حق دين ته رابللو. او په اسلام به يې مشرف کولو. او چه کوم به مسلمانان وو. دَ هغوئ نه به يې صالحه مسلمانان جوړول.

## سرزمين اولياء

دَ سرزمين پاکستان او مغربي بنګال په طول او عرض کښې دَ اولياء کرامو بے شميره مقبرے او مزارات دي. چه دَ هغے په وجه مونږ دے هيواد ته "سرزمين اولياء" ويلے شو. په کوړ. پنډوه. ظفر آباد. ديوکوټ. سونارګاؤں. چاټګام. سلهټ. ډهاکه او دے په مضافاتو کښې دَ لويو لويو اولياء الله وُ درګاهونه دي. چه هغے له عقيدتمندان سلام او دعا ته حاضريږي. دلته دَ مثال په طور دَ يو څو اولياء کرامو نومونه ليکلے شي.

(۱) حضرت شاه محسن اولياء متوفي سنه ۵۷۹ھ مزار مبارک ډهاکه مشرقي پاکستان.

(۲) حضرت شيخ پير شاه راستي مزار مبارک پټره

(۳) حضرت شيخ شاه انور قلمي متوفي سنه ۵۷۳ھ مزار مبارک فرفره شريف (ميوکلي)

(۴) حضرت شيخ صفي الدين مزار مبارک چهوټا پنډوه

(۵) حضرت شیخ پیر شاه دوله دریائی قادری مزار مبارک گوړ۔
(۶) حضرت شیخ پیر گورا چاند قادری مزار مبارک گوړ۔
(۷) حضرت شیخ مولانا برخودار متوفی سنه ۸۸۵ھ " " " "
(۸) حضرت شیخ نعمت الله خان بت شکن " " " " ډهاکه
(۹) حضرت شیخ جلال دکنی (ددوی مزار مبارک دگورنمنټ هاؤس ډهاکه د احاطه دلکشا سره دے.)
(۱۰) حضرت شیخ ملک پیر یمنی مزار مبارک ډهاکه (دصوبائی سکریتری ایټ سره)
(۱۱) حضرت شیخ شاه علی بغدادی متوفی سنه ۸۸۰ھ مزار مبارک ډهاکه قصبه ډهمرائی (ډهاکه)
(۱۲) حضرت شیخ سید جلال الدین عاملی متوفی سنه ۹۳۰ھ مزار مبارک سپنکړا
(۱۳) حضرت شیخ حاجی بابا صالح علیه الرحمة مزار مبارک ترایین گنج.
(۱۴) حضرت شیخ المشائخ ابراهیم دانشمند ارمها انصاری سهروردی۔ مزار مبارک سو نارگاؤں.
(۱۵) حضرت شیخ سید علی ترمذی مزار مبارک موضع ډهمرائی۔ (ډهاکه)

په دے کښې بعض بزرگان داسے هم دی چه په پخوانو تذکروکښې فقط نومونه قدرے ذکر شویدی۔ اوهغه هم په غیر واضح او نامکمل شکل سره او د یوڅو مشهورو بزرگانو نه په غیر د نورو حالات چرته هم نه پیدا کیږی. د څنے بزرگانو نومونه په روایتونوکښې یادیږی۔ لیکن د هغوئ زمانه او صحیح حالات نه معلومیږی. بعض درگاهونه داسے هم شته دی۔ چه هغه داسے مختلفو مشهورو اماما نو او مشائخ کرامو ته منسوب دی. چه د دغه مشایخو بنګال ته راتلل نه شی ثابتیدلے۔ د مثال په طور:-
(۱) په چاټ گام کښې یو درگاه حضرت بایزید بسطامی علیه الرحمة ته منسوب دے۔

(۲) په ډهاکه کښې دَ عظیم پورنو مے قبرستان نه باهر شمال طرف ته یو قبر دے۔ ددے قبر په حقله وئیلے شی چه دا دَ حضرت ابراهیم ابن ادهم بلخی علیہ الرحمۃ مزار دے۔

(۳) په چاټ ګام کښې یو لا چینه ولاده چه نسبت حضرت شیخ فرید الدین ګنج شکر علیه الرحمۃ ته کولے شی۔

(۴) په چاټ ګام کښې دَ حضرت پیر بدر عالم زاهدی علیه الرحمۃ یو چله خانه ده. چه دَ هغے له هم یو ډیر دَ زیارت شکل ورکړے شوے دے۔ لکه په مغربی پاکستان کښې چه ځائ په ځائ دَ حضرت سید جلال الدین حسین الملقب په مخدوم جهانیان جهان ګشت کومے چله خانے دی۔ هغه ټولو له دَ زیارتونو شکل ورکړے شوے دے۔ لیکن بهرحال دا ټول دَ نامورو روحانی پیشوایانو په نوم جوړ شوی آثار دی. او دَ عوامو دَ عقیدت مرکزونه ګرځیدلی دی۔

## شهیدان او مجاهدین

دَ مشرقی پاکستان او مغربی بنګال په هیواد کښې ډیرے مقبرے په اصل کښې دَ شهیدانو او مجاهدین اسلام دی. چه هغه دَ بزرګانو دَ زیارتونو په نامه یادیږی اون ورځے په هغے باندے عرس او چراغان هم کولے شی. ددے وجه په اصل کښې داده. چه په تاریخ اسلام کښې دَ دا سے ډیرو فوځی سالارانو او جرنیلانو نمونه موجود دی. چه هغوی غزاګانے کړیدی. فتوحات یے کړی دی۔ او دَ هغے نه روستو دَ یو عالم دین. مبلغ اسلام او [illegible] پیشوا په شکل کښې یے دَ اسلام رڼا هم خوره کړے ده. ځینې له هم دَ مذهب پابند وو۔ او دَ شریعت خدمت یے دَ تبلیغ په ذریعه هم کولو او لکه . په مخکښې ورته اشاره او شوه. دَ بنګال په خاوره په غزاکښې خود سلسله عالیه قادریه او سهروردیه بے شمیره مشائخو دَ فوځی سپه سالارانو په شکل حصه اخیستے ده۔

ددے قسم نه چه کوم مجاهدین سپه سالاران او امیران تیر شوی دی. دَ

دَ وفات نه روستو عام خلق و رسره دَ روحانی پیشوایانو په حیثیت سره عقیدت ساتی. لکه حضرت سالار مسعود غازی المعروف "غازی میاں" یا "بالے میاں" چه دَ حضرت سلطان محمود غزنوی په زمانه کښی تیر شوے دے. او مزار مبارک ئے په بهرائچ کښی دے. یا لکه دَ حضرت امام تاج فقیه مخدوم الملک مشرنیکه فاتح بهار (منیر) شو. یا لکه حضرت سید ابراهیم المعروف ملک بیا د بهار شریف شو.

دَ مشرقی پاکستان او مغربی بنګال په خاوره حضرت بابا آدم شهید (مزار مبارک بکرم پور ډهاکه) حضرت ظفر خان غازی (مزار تربینی) حضرت اسماعیل خان غازی (مزار رنګ پور) حضرت سید العارفین. میر نامور خان حضرت خان جهان او حضرت غازی ملک اکرم خان تول هم دد ے قسم مجاهدین اسلام امیران او سپه سالاران وو. دا تول دَ ابتدائی دور جرنیلان او سپه سالاران مجاهدین وو. چه دَ خپل خپل حکومت په دوران کښی ئے دَ اسلام لوئی خدمتونه کړی دی. په دوئ کښی حضرت خان جهان دَ چار شنبے په ورځ ۲۶ ذالحجه سنه ۸۶۳ھ وفات شوے دے. مزار مبارک ئے په باګوهاټ (کهلنا) کښی دے. دَ موضع کهلنا دَ شپیته ګنبدونو والا عظیم الشان جماعت دد ے یادګار پاتے دے.

په مجموعی طور سره دَ بنګال (مشرقی او مغربی بنګال) په مشاهیرو او روحانی پیشوایانو کښی دَ حضرت اختیار الدین[۱] بختیار خلجی. حضرت[۲] شیخ دریائی قادری. خواجه رکن الدین[۳] سمرقندی. حضرت شیخ[۴] احمد دمشقی. حضرت شیخ[۵] عبدالله کرمانی. حضرت شیخ[۶] شرف الدین توامه. حضرت شیخ شاه[۷] جلال تبریزی. حضرت[۸] راجه بیابانی. حضرت شیخ[۹] سراج الدین عطا. حضرت شیخ عثمان[۱۰] اخی سراج. حضرت شیخ[۱۱] علاء الحق. حضرت شیخ[۱۲] مخدوم الملک پیر بدر عالم زاهدی. حضرت[۱۳] قاضی سراج الدین

صدیقی۔ حضرت شیخ نور قطب عالم[14]۔ حضرت پیر قتال[15]۔ حضرت شیخ حمید[16] دانشمند منګل کوټي. او په پولو سلاطینو کښې دَ حضرت سلطان مبارک[17] شاه. حضرت سلطان علاءالدین علي شاه[18]. حضرت سلطان الیاس شاه[19] او حضرت سلطان غیاث الدین اعظم شاه[20] نوموړنه دَیاد ولو دي. چه د دوئ پیشرو او سرخیل حضرت اختیار الدین محمد بختیار خلجي بزرګ پښتون سلطان وو.

په دے پورتنو بزرګانو او مشاهیرو کښې دَ ځینو تینګه تذکره وړاندې بیان شوے ده. دَ روستنو ټولو بزرګانو حالات او تذکره به په پوره تفصیل سره روستو درج کړے شي. دَ پاره دَ دے چه دَ بنګال په هیواد کښې چه ځمونږ دَ مشاهیرو په کوششونو کوم

"روحاني تړون"

په وجود کښې راغلے دے. دَ هغې یاد

تازه کړے شو:

والحمد لله رب العالمین ط

# حضرت شیخ شرف الدین توامه علیه الرحمة

(۷۲۵ سنه ھ)

دَ بنګال (مشرقی پاکستان او مغربی بنګال) په عالمانو او مشائخو کښې حضرت مولانا شرف الدین توامه دَ ډیرے مقتدر هستئ خاوند بزرګ تیر شوے دے. په سونار ګاؤں مشرقی پاکستان کښې دَ دوئ دینی مدرسه ډیره مشهوره ده. حضرت مخدوم الملک په خپل کتاب "خوانِ پُرنعمت" کښې ددے خپل نامور استاذ دَ علمی استعداد تذکره په دے الفاظو کښې کړے ده.

"مولانا شرف الدین توامه دَ هندوستان په عالمانو کښې دومره زیات مشهور وو. چه دَ دوئ په علم کښې دَ هیچا شک نه وو. دوئ به ریښمین پټکے اوپر تو غابنې استعمالولو. دوئ دا سے احکام او مسائل لیکلی دی. چه نور عالمانو له هم دَ دوئ تقلید په کار دے. که شاګردَ ته دَ سبق ښودلو په دوران کښې به څه مشکل ورته پیښ شو. نو غور او فکر به یئے شروع کړلو. دَ دوئ ددے قسم غور او فکر نښه دا وه. چه دَ پټکی شمله به یئے په اوګه راواچوله. او دَ شملے پلیسکے به یئے په ګوتو کښې مښلو رامښلو. تر دے حده چه هغه مشکله مسئله به یئے حل کړله. دَ پټکی شمله به یئے شاته ګذار کړله. او دَ مسئلے باریکات بیانول به یئے شروع کړل"

دَ حضرت مخدوم الملک شرف الدین بهاری یو دَ تره ځوئ وو. چه دَ هغوئ نوم حضرت مخدوم شاه شعیب علیه الرحمة وو. او دَ صوبه بهار ضلع مونګیر په موضع شیخ پوره کښې یئے مزار مبارک دے. دغه حضرت مخدوم شاه شعیب پخپل کتاب "مناقب الاصفیاء" کښې دَ حضرت مولانا شرف الدین تذکره په دے الفاظو کړے ده.

په دے زمانه کښې دَ مولانا شرف الدین توامه دَ عظمت، بزرګی او

دانشمندئ شهرت یوا ځے دَ هند په مملکت کښں څه چه په عرب او عجم کښں هم خور شوے وو. په تمامی علومو کښں ئے درجه دَ کمال لرله حتی چه په علم کیمیا او سیمیا کښں ئے هم مهارت لرلو۔ په دینی علومو کښں دَ علماء دین مرجع وو. عوام او خواص۔ امیران او بادشاهان ټول ئے یو شان معتقد او فرمانبردار وو۔ په علم سیمیا کښں به ئے عجیبه تماشے خلقو ته ښودلے ۔ دَ مملکت بنګال ټول خلق ئے دومره فرمانبردار وو. چه دَ دهلی بادشاه سره دا ویره پیدا شوه. هسے نه دَ بنګال په بادشاهی باندے قبضه او نه کړی۔ څه ذریعے ئے اولیږلے چه حضرت مولانا شرف الدین توامه سونارګاؤں ته تشریف یوسی۔ په هغه زمانه دَ بنګال علاقه دَ سلطنت دهلی ما تحت وه۔ حضرت مولانا چه په دغے پوهه شو۔ نو دَ فراست نه ئے کار واخیست. او په دے خیال چه اطاعت د اولوالامر واجب دے۔ سونارګاؤں ته ئے تشریف یوړلو۔ هلته ئے هغه عظیم الشانه دینی مدرسه بناء کړه. چه مشاهیرو بزرګانو پکښں فیض حاصل کړے دے.

دَ حضرت مخدوم الملک او حضرت مخدوم شاه شعیب دواړو دَ پورته بیانونو نه صرف دَ حضرت مولانا شرف الدین توامه په علمی تبحّر باندې رڼا پریوته لیکن دَ دوئ زمانه ترینه متعین کیدلے نشی. په دے سلسله کښے زیاتی نور معلومات دا هم په لاس راغلی دی. چه څه وخت حضرت مولانا شرف الدین توامه علیه الرحمة دَ سورنارګاؤں نه دهلی ته تشریف یوړلو۔ نو بیا ئے هیره مودلایے دَ بهار شریف په منیر نومے مقام کښں دَ حضرت مخدوم یحیٰی منیری علیه الرحمة سره تیره کړه وه۔ او چه څه وخت دے ځائے نه رخصت کیدلو نو مخدوم الملک شیخ شرف الدین بهاری ئے دَ ځان سره سونار ګاؤں ته بوتلے وو۔ په دے سلسله کښں دَ کتاب مناقب الاصفیاء بیان دا دے چه حضرت مخدوم الملک شیخ شرف الدین بهاریؒ په دغه نیته ځلے وو۔

او د دینی علمونو د تحصیل نه فارغه شوے وو۔ لیکن په تحقیقی انداز کښې د علمونو د تکمیل د پاره د حضرت شیخ توامه علیه الرحمة سره سونار گاؤں ته تلے وو. ډیره موده ئے په سونارگاؤں کښې تیره کړے وه۔ او دلته ئے واده هم کړے وو. دلته ئے یو ځوئ پیدا شو۔ روستو ئے بال بچ منیر (بهار) ته راوستلو۔ او بیا په د پیر طریقت په تالاش کښې دهلی ته لاړلو۔ په دهلی کښې ئے د حضرت شیخ نظام الدین اولیاء او حضرت ابوعلی شاه قلندر یعنے شیخ شرف الدین پانی پتی علیهم الرحمة سره ملاقاتونه وشول۔ او بیا ئے د حضرت نجیب الدین فردوسی علیه الرحمة نه لاس بیوه اوکړله"۔

دا پورته بیان زمونږ د وړاندے دے۔ چه مونږ په غور سره پدے نظر واچوو۔ نو معلومه شی۔ چه د حضرت مخدوم الملک شرف الدین بهاری سونارگاؤں ته تلل۔ بیا واپس بهار ته راګرځیدل او دے ځائ نه دهلی ته تلل د نزدے زمانے واقعات دی۔ څه وخت چه مخدوم الملک دهلی ته رسیږی۔ نو حضرت شیخ المشائخ نظام الدین اولیاء او حضرت بوعلی شاه قلندر دواړه ژوندی وو۔ او روستو دا دواړه علی الترتیب په سنه ۷۲۴ھ او سنه ۷۲۵ھ کښې وفات شوی دی۔ او دد ے نه په قیاس سره دا وئیلے شو چه حضرت مخدوم الملک به د سنه ۷۰۰ھ نه څه لږ ے وړے روستو دلته راغلے وی او هم دد ے نه مونږ د حضرت مولانا شرف الدین زمانه سنه ۷۲۵ھ انداز ه کړے ده۔

اوس بل خوا ته چه د سونارگاؤں تاریخی جائزه واخلونو د تاریخی حقایقو په رڼا کښې معلومه شی۔ چه د ټولو نه په اول ځل رکن الدین کیکاؤس په سنه ۶۹۰ھ کښې د سونارگاؤں نه خراج وصول کړے دے۔ د کیکاؤس جانشین او ورور سلطان فیروز شاه شهنشاه د دهلی چه یو اولوالعزم حکمران تیر شوے دے۔ هغه په مکمل طور سره د بنګال مملکت په خپل سلطنت کښې شامل کړے وو۔ په سنه ۷۰۵ھ کښې ئے هلته ټکسال قائم کړے وو۔ او د

خپل سلطنت دَ مشرقي اقليم مرکزي مقام يئے سونارګاوُں مقرر کړے وو.
د دے نه دا اندازه لګيد لے شي چه حضرت مولانا شرف الدين توامه قدس سرهٔ
دَ سنه ۷۰۰ھ نه روستو اودَ اتمے صدئ هجري په ابتدائي کلونوکښں سونارګاوُں ته تلے وو.

دَ حضرت شيخ رکن الدين سمرقندي او حضرت مولانا تقي الدين عهوي
نه روستو حضرت مولانا شرف الدين توامه دَ بنګال په عالمانوکښں دَ ريم عظيم
الشان بزرګ وو. چه دوئ په برکت په دے هيواد کښں دَ اسلام رڼړا دَ
زياتے نه زياته خوره شويده. په فارسي ژبه کښں دَ علم فقه يو ورکوټے منظوم
کتاب دے. چه دَ هغے نوم دے "نام حق" اولني شعر يئے دا سے دے:

نام حق بر زبان همے رانم ⁘ که بجان و دلش همے خوانم

دا کتاب په لسم تاريخ دَ جمادي الاول سنه ۶۹۳ھ کښں حضرت مولانا توامه په موضع
سونارګاوُں مشرقي پاکستان کښں تاليف کړے دے. په دے کښں ۱۸۰ يو سل اتيا اشعار
دي. چه په لسں ۱۰ بابونو مشتمل دي. د دے کتاب نه معلوميږي چه حضرت مولانا
توامه عليه الرحمة په اصل کښں دَ بخارا اوسيدونکے وو. د دے کتاب "نام حق"
د دے لاندينئ شعر نه د ومره عظيم الشان مقبوليت حاصل شويدے. چه دَ
برصغير پاک وهند دَ اکثرو جماعتونو په ديوالونو باس ليکلے شوے وو. شعر دادے.

روز محشر که جان گداز بود ⁘ اولين پرسش نماز بود

دا رساله دَ پاکستان دَ قيام نه وړاندے په بنګال او بهار کښں طالب علمانو
ته به دَ ګلستان. بوستان نه وړاندے په درس لولولے شوه. او په مغربي
پاکستان خصوصاً سابق صوبه سرحد. قبائيلي علاقو او افغانستان کښں
دَ مولانا شرف الدين دغه کتاب "نام حق" دَ مولانا مصلح الدين شيرازي
کتاب "کريما" او دَ حضرت شيخ عطار "پند نامه" او دوه نورے وړے منظومے
رسالےدَ يوے مجموعے په شکل کښں دَ "پنج ګنج" په نوم دَ ګلستان او بوستان
نه مخکښں په ټولو ديني مدرسو او جماعتونو کښں په درس لوُلولے شي.

په موضع سونارګاؤں کښې په مقام د، موګراپاړا، په یوه آزاد چونترۀ باندې د حضرت مولانا شرف الدین توامه علیه الرحمة مزار مبارک واقع دے. د دغه چونترے د پاسه نور ګنړ زیارتونه هم موجود دی. چه د دوئ د خاندان د نورو افرادو معلومیږی. د دوئ د یوے لور ژلی بی نکاح د حضرت مخدوم الملک شرف الدین بهاری علیه الرحمة سره شوے وو. مولانا شرف الدین توامه حالات ځان له جدا په کومه تذکرۀ کښې نه شي موندلے. صرف مخدوم الملک او مخدوم محمد شعیب یے ذکر کړے دے. او د دغے نه علاوه د مخدوم الملک د تذکرے په ضمن کښې یے ځائي په ځائي ذکر راغلے دے.

د سنه ۷۰۰ھ تر سنه ۷۲۵ھ د زمانے په خواؤشا کښې د دهلی په عالمانو کښے موږ ته یو داسے نوم په نظر راځي. چه په هغه باندے د شرف الدین توامه قدس سره شک کیدلے شي. چه هغه به هم داوی. او دغه نامور شخصیت د سلطان بلبن د زمانے مولانا شرف الدین الوالجی علیه الرحمة دے. جناب صباح الدین عبد الرحمان پخپل کتاب "بزم مملوکیه" کښې لیکلی دی. چه حضرت شرف الدین الوالجی د عالمانو په ډله کښې مقتدر عالم وو. ډیر لوئ فقیه وو. په دهلی کښې د فقه د درس دپاره زیات شهرت یے لرلو. "فتاوی الوالجی" د دوئ مشهور او مستند تالیف دے. سلطان بلبن د حضرت مولانا شرف الدین توامه ډیر زیات قدر او عزت به کولو. د دغے نه علاوه د دهلی په عالمانو کښې د شرف الدین په نامه بل کوم یو عالم د دومره لوئ علمی استعداد او فضیلت خاوند نه دے تیر شوے. د کوم علمی تبحر او فضیلت ستائینه او نسبت چه حضرت مخدوم الملک او مخدوم محمد شعیب د حضرت شرف الدین توامه ذات مبارک ته کړے دے. په دے وجه دا خیال پیدا کیږی چه شرف الدین توامه او شرف الدین الوالجی دواړه نوموړه به هم د دغه یو عالم وی. چه د دهلی نه د بهار په لاره سونارګاؤں ته تشریف

وړے وو۔ په نوم کښې فقط دَ توامه او اُوالجی فرق دے۔ لیکن په تاریخ کښې دَ ډیرو داسے عالمانو نومونه موجود دی۔ چه په مختلفو لقبونو سره یاد شوی دی۔ لکه حضرت خواجه معین الدین حسن په اجمیری۔ چشتی۔ سنجری درے واړه نسبتی نومونو او لقبونو سره مشهور دے۔ یا لکه حضرت مخدوم الملک شرف الدین منیری چه په بهاری۔ فردوسی۔ او منیری درے واړه لقبونو سره شهرت لری۔ په دے وجه دَ توامه او الوالجی لقبونو ترمنځه فرق د ومره لوئ فرق نه پیدا کوی۔ او څکه مونږ او وبیل چه کیدے شی چه دا دواړه هم دَ یو عالم لقبونه وی۔ دَ دے نه علاوه دَ دوئ دَ ګټه لقب توامه توالة هم ذکر شوے دے۔ په څنے تذکرو کښې توامه او په څنے کښې توالة راغلے دے۔ په هر حال په سونارګاؤں مشرقی پاکستان کښې د دے نامور عالم بناء کړے مدرسه او دَ دوئ شهره آفاق تالیف "نام حق" دَ دوئ داسے فیض دے۔ چه دَ آسام نه تر آمو پورے په برصغیر پاک و هند او افغانستان کښې ټولو مسلمانانو ته پوشان رسیدلے دے۔ او ر سیبزی۔ او دا یو داسے روحانی تړون دے۔ چه دَ بخارا او سونارګاؤں ترمنځه فاصلے یے رالنډے کړی دی۔

علیه الرحمة والغفران۔

---

# حضرت شیخ جلال الدین تبریزیؒ

## (مشرقی پاکستان)

## (سنہ ۶۴۲ھ)

دَ حضرت شیخ المشائخ شاہ ابوالقاسم جلال الدین تبریزی علیہ الرحمۃ نوم دَ مشرقی پاکستان دَ ابتدائی دور پہ مسلمانانو عارفانو مبلّغانو کښې ډیر ښکارہ دے. دے دَ قونیہ دَ مشهور بزرګ حضرت شیخ ابوسعید تبریزی علیہ الرحمۃ مرید وو. او دَ حضرت شیخ الشیوخ خواجہ شہاب الدین سهروردی خلیفہ وو.

مونږہ مخکښې دَ خواجہ بزرګ معین الدین حسن چشتی اجمیری پہ تذکرہ کښې مختصراً دَ دۀ ذکر کړے دے. حضرت شیخ جلال الدین تبریزی دَ برصغیر پاک او هند پہ نامورو بزرګانو کښې شمارلے شی. دَ خپل وخت عالمانو. بزرګانو. امیرانو او بادشاهانو پہ یے ډیر زیات قدر او عزت کوٹلو.

وئیلے شی چہ دے پہ اول سر کښې لوئ دبدبہ او شان او شوکت لرونکے بادشاہ وو. مګر چہ زړہ یے دَ خدائ پہ مینہ روښانہ شو. نو بادشاهی یے خوئ تہ حوالہ کړہ. دَ حضرت شیخ الشیوخ خواجہ شہاب الدین عمر سهروردی پہ دربار کښې حاضر شو. لاس نیوہ یے ترینہ او کړہ. او ورپسے اوۀ کالہ یے دَ خپل دغہ پیر طریقت پہ خدمت کښې تیر کړل. او دَ شریعت او طریقت ټول رموز یے دَ هغوئ نہ زدہ کړل. پہ دغہ نیتہ چہ دے دَ خپل پیر طریقت پہ حضور کښې پہ بغداد کښې وو. حضرت خواجہ بهاؤالدین ذکریا ملتانی بغداد شریف تہ راغلے وو. او دَ حضرت خواجہ شہاب الدین سهروردی نہ یے لاس نیوہ کړے وۀ. او هم دغلتہ

دَ حضرت خواجه جلال الدین تبریزی او خواجه بهاؤ الدین ذکریا ملتانی ترمنځه خوږه دوستانه جوړه شوې ده. او دَ پیر په صحبت کښې دَ اووه کاله زمانې تیرولو نه پس روستو حضرت خواجه جلال الدین او خواجه بهاؤ الدین ذکریا دَ دُنیایې اسلام ایران. ترکی. عرب وغیره سیاحت له روان شوی وو. دَ سیاحت په دوران کښې چه حضرت خواجه جلال الدین تبریزی دَ حضرت خواجه فرید الدین عطار سره لیدل او شول نو ددې واقع نه روستو حضرت خواجه بهاء الدین ذکریا ترینه بیل شو ملتان ته یې تشریف راوړلو. او حضرت خواجه جلال الدین تبریزی یوځل بیا بغداد ته راغې. وریسې څه زمانه روستو حضرت خواجه جلال الدین تبریزی. حضرت خواجه اوحد الدین کرمانی او حضرت خواجه قطب الدین بختیار کاکی علیهم الرحمة درې واړه ملګری شول او ملتان ته راغلل. دلته یې څه زمانه دَ حضرت خواجه بهاء الدین ذکریا سره تیره کړله. لکه چه وړاندې ذکر شوې دې حضرت خواجه فرید الدین شکر ګنج په دغه ورځو کښې په ملتان کښې دَ حضرت بهاء الدین ذکریا په درس کښې دیره وو. سبق یې لوستلو. بیا چه څه وخت حضرت خواجه اوحد الدین کرمانی واپس بغداد ته روان شو او حضرت خواجه فرید الدین شکر ګنج هم ورسره ملګرې بغداد ته روان شول. او حضرت خواجه قطب الدین بختیار کاکی دَ لاهور په لاره دهلی ته روان شو. نو حضرت خواجه جلال الدین تبریزی علیه الرحمة دَ ملتان نه واپس غزنی ته لاړلو. دا واقعات دَ سنه ۵۸۶ھ او سنه ۶۰۰ھ دَ منځ زمانې دی.

دا سې معلومیږی چه دَ غزنی نه بیا دوباره دَ سلطان شهاب الدین غوری سره په سنه ۶۰۱ھ کښې برصغیر پاک او هند ته راغلې دې. په لاهور او ملتان کښې دَ دوی دَ دوباره قیام صحیح تاریخونه راته ترا وسه پورې

معلوم شوی نه دی. البته دومره معلومه ده. چه دَ سلطان شمس الدین التمش په زمانه (سنه ۶۰۷ھ تر سنه ۶۳۳ھ) کښې دهلی ته راغلے وو. او څه زمانه ئې دلته تیره کړے وه. دهلی نه بیا بدایون ته لاړلو. او دغلته دَ څه مودے تیرولو نه پس بنګال ته ئې تشریف یوړلو. دَ بنګال په مشرقی او مغربی دواړو حصو کښې په مختلفو مقاماتو کښې ئې تبلیغ اوکړلو. په زرګونو غیرمسلم خلق دَ دوئ په لاس مسلمانان شول. او دَ هندو مذهب ډیر لوئ لوئ پنډتان دَ دوئ سره دَ بحث مباحثے کولو نه روستو دَ دوئ معتقد او په ایمان مشرف شول. دَ بنګال په زمکه باندے سلسله عالیه سهروردیه له دوئ فروغ ورکړے وو. حضرت شیخ جلال الدین تبریزی دَ علم او معرفت او کرامت لرونکے بزرګ تیر شوے دے.

په بنګال کښې "هلاوت مصر" نومے یو هندو پنډت تیر شوے دے هغه یو کتاب لیکلے دے. دَ هغے نوم "شیخ سبهودیا" (یعنے شیخ فیض رسان عالم) په دے کتاب کښې ئې دَ حضرت شیخ جلال الدین تبریزی دَ کرامت او خرق عادت کارونو حالات په تفصیل سره بیان کړی دی. دا کتاب په سنسکرت ژبه کښے دے. څه زمانه کیږی دَ بنګالی ژبے یو فاضل عالم ډاکټر "سیو کمار سین" په بنګالی ژبه کښې د دے کتاب ترجمه شائع کړے ده. د دے نه علاوه دَ بزرګانو دَ حالاتو چه هر څومره تاریخونه او تذکرے دی. په هغے ټولو کښې دَ دوئ حالات لیکلی شوی دی. مولانا عبدالحق محدث دهلوی په خپل کتاب اخبار الاخیار کښې او مشهور سیاح ابن بطوطه په خپله سفرنامه کښې دَ دوئ ذکر په تفصیل سره کړے دے. چه دلته دَ یو رته ذکر شو و مختلفو تذکرو نه په اختصار سره دَ دوئ حالات اقتباس کوو لے شی.

روایت دے چه څه وخت دوئ دهلی ته راورسیدل نو چار چاپیره آوازه خوره شوله. دَ دهلی ښهر ټول خلق پرے رامات شول.

پخپله سلطان شمس الدین التمش هم دَ خپلو درباری او حکومتی مشرانو سره د دوئ سلام له ورغے. او په شاهانه طریقه سره یې دَ دوئ د میلمستیا او دیرے انتظام اوکړلو. حضرت شیخ جلال الدین تبریزی چه قرارے اونیوکه نو د حضرت شیخ قطب الدین بختیار کاکی لید لوله ورغے. هغوئ چه دَ دوئ دَ راتللو نه خبر شول نو مخے له ورله راغے او په ډیر محبت او عزت سره ئے خپلے دیرے او خانقاه ته بوتللو په دهلی کښ د دے دواړو بزرګانو په وجه دَ طریقت او معرفت محفل نور هم ګرم شو. دَ حضرت شیخ شهاب الدین سہروردی مشهور خلیفه حضرت قاضی حمید الدین ناګوری هم په دغه ورځو کښ په دهلی کښ وو. او دَ دوئ په صحبتونو کښ به شامل وو. مخکښ دَ خواجه غریب نواز په تذکره کښ دا بحث تیر شوے دے. چه هرکله په بغداد شریف کښ خواجه بزرګ خپل نامور خلیفه حضرت بختیار کاکی ته بیعت ورکولو او په دغه موقع کوم مشاهیر بزرګان موجود وو. یو په هغوئ کښ شیخ جلال الدین تبریزی هم وو. بله دا چه خواجه غریب نواز او حضرت خواجه جلال الدین تبریزی دواړو دَ حضرت خواجه ابو سعید تبریزی نه فیض حاصل کړے وو. چنانچه د دے حقایقو او واقعاتو په رنړا کښ دا اندازه لګول آسان کیدے شی چه حضرت قطب الدین بختیار کاکی به دَ حضرت جلال الدین تبریزی څومره زیات احترام او عزت کولو دَ هغے وجه دا وه چه حضرت جلال الدین تبریزی دَ حضرت قطب صاحب دَ پیر طریقت حضرت خواجه بزرګ پیر بهائی او ملګرے وو. او د دغے نه حضرت سلطان شمس الدین التمش یې ډیر احترام څکه کولو چه سلطان شمس الدین التمش علیه الرحمة دَ حضرت قطب الدین کاکی علیه الرحمة مرید وو. او د دے نه اندازه لګیدلے شی. چه هرکله دَ دهلی روحانی پیشوا حضرت قطب الدین بختیار کاکی او دَ دهلی بادشاه حضرت شمس الدین التمش دواړو دَ حضرت جلال الدین تبریزی

دومره زیات احترام کولو. نو چه دَ دهلی عوامو او خواصو ټولو په زړه ونو کښې به دَ دوئ څومره قدر او منزلت وو. لیکن دَ خدائ شان دے. په هره یوه خبره کښې استثناء وی. هم په دغه دهلی کښې دَ حکومت صدر الصدور او قاضی القضاة شیخ الاسلام نجم الدین صغری یو داسے انسان وو. چه هغه اول دَ قطب الاقطاب قطب الدین بختیار کاکی په راتللو بیا دَ قاضی حمید الدین ناګوری په راتللو او بیا دَ حضرت شیخ شاه جلال په راتللو او دَ قدر او احترام په دومره اوچت اعزاز موندلو خفه او زهیر وو. دد ے بزرګانو سره ئے په زړه کښې بغض او کینه پیدا شوه. شیخ نجم الدین صغری دَ خپل بغض او کینے په وجه ئے یو سازش جوړ کړو. لیکن دَ هغے سازش نتیجه اړولے او خته بچپله شیخ نجم الدین صغری پرے ذلیله شو. او دَ حضرت جلال الدین تبریزی دَ عظمت درجه نوره هم اوچته او مشهوره شوه.

دا واقعه داسے وه. چه څه وخت حضرت شیخ جلال الدین تبریزی دهلی ته راورسیده. نو شهنشاه التمش په ډیر عقیدت او احترام سره دَ دوئ استقبال اوکړلو. او دَ خپل شاهی محل سره نزدے په یوه بالاخانه کښې ئے دَ دوئ دَ استوګنے دَ پاره انتظام اوکړلو. لکه چه مخکښې ذکر اوشو. یو خوا ته دَ بادشاه دَ طرف نه ئے دومره قدر او عزت وو. او بل خوا ته په ټول دهلی ښهر کښې دَ حد نه زیات عزت او احترام وو. چه هر څومره عالمان او مشائخ وُو هغوئ به دَ دوئ قدمبوسی خپل سعادت ګڼړلو. لیکن په دغه زمانه دَ دهلی کوم شیخ الاسلام یعنے صدر الصدور یا قاضی القضاة شیخ نجم الدین صغری نومے وو. فقط هغه یو داسے سړے وو چه دَ هغه په زړه کښې دَ حضرت جلال الدین تبریزی په خلاف کینه او حسد پیدا شو. چه دا خلق ولے دد ے میلمه بزرګ دومره قدر او عزت کوی. او په څه طریقه ئے دَ دوئ دَ بدنام کولو کوشش شروع کړو. یوه ورځ په داسے وخت کښې چه حضرت شیخ جلال الدین تبریزی دَ سحر دَ نمانځه نه فارغ شوے دے. بچپله بالاخانه کښې ملاست دے. او یو

مرید ورله چاپې کوی - په دغه منځکښې نجم الدین صغری اولګیده - سلطان شمس الدین التمش ته یې او ویل - حضور تاسو ورته او کورئ. شیخ جلال الدین دَجمع نمانځه له رانغې. او په یو بنایسته غلام باندې چاپې کوی - سلطان شمس الدین التمش ددې خبرې په آوریدلو باندې شیخ الاسلام ته په قهر شو - زور نه یې ورله ورکړه - چه ته ځان له صدر الصدور (شیخ الاسلام) وایې. او سړه ددې نه داسې ذمه دارانه خبرې کوې - او په نیکانو خلقو بد ګمانی کوې.

چه په دغې اونه شو - نو شیخ الاسلام داسې کار اوکړلو چه دَ حضرت شاه جلال الدین تبریزی په خلاف یې یو ګنده سازش جوړ کړلو - او هغه داچه یوې ډمې او فاحشه ښځې له یې بلې او رشوت ورکړو - او هغه یې دې ته تیاره کړه چه په حضرت شاه صاحب باندې دَ زنا او بدکارئ الزام اولګوی - چنانچه ډمه راغله دَ بادشاه په دربار کښې یې فریاد او درخواست پیش کړو او دَ شیخ الاسلام دَ بنودنې - مشورې او سازش مطابق یې په حضرت شاه جلال الدین باندې دغه الزام اولګولو - معامله ډیر نازک او سنګین صورت اختیار کړلو. اګر چه دَ سلطان شمس الدین التمش دا یقین وو چه دَ حضرت شاه جلال الدین قدس سره لمن ددغه داغ نه پاکه ده. لیکن مشکل دا وه چه هغه فاحشه ښځې دا دعوی کوله - بخپله یې اقرار کولو - او چه یې وهلې او دا یوه داسې خبره وه چه ددې فیصله لازماً دَ شریعت مطابق پکار وه -

آخر بادشاه داسې کار اوکړو - چه په هغه زمانه دَ هغه په سلطنت کښې هر څومره مشهور عالمان او مشایخ موجود وو - دَ هغې ټولو یوه جرګه یې را اوغوښتله - په دغه سلسله کښې بیا شیخ الاسلام نجم الدین صغری دا تجویز پیش کړلو - چه دَ ملتان نه حضرت شیخ بهاء الدین ذکریا دې هم را اوغوښتلې شو. او هم هغه دې دَ عالمانو او بزرګانو ددې جرګې صدر مقرر کړلې شو - چه دا شریعت هغه فیصله کړی. چنانچه

خاص هم د دے غرض دپارہ حضرت شیخ بهاء الدین ذکریا قدس سرہ ملتان نه دهلی ته را او بللے شو او هغه راغے.

دلته دا یاد لرل پکار دی چه شیخ الاسلام نجم الدین صغری چه دا تجویز پیش کړے وو. چه شیخ بهاء الدین ذکریا دے د دے مجلس صدر وی. په دغے کښې د دۀ یو پټ غرض وو. او هغه دا وو چه: دۀ ته معلومه شوے وۀ. چه اګرچه شیخ جلال الدین تبریزی او خواجه بهاء الدین ذکریا ملتانی دواړۀ د حضرت شیخ الشیوخ شهاب الدین سهروردی خلیفه ګان دی. لیکن د څه مودے راسے د دوئ دواړو په خپل منځ کښې تعلقات ښه نه دی. خفګان هم د خواجه بهاء الدین ذکریا پیدا شوے دے. او هغه د خواجه جلال الدین نه خفه شوے دے. او تر دے حده رسیدلے دے چه د دواړو ترمینځه خبرے اترے سوال جواب هرڅه بند دی. په دے وجه نجم الدین صغری په زړۀ کښې دا سودا جوړه کړے وۀ. چه شیخ بهاء الدین ذکریا چه راشی او د شریعت د مجلس صدر شی. نو چونکه دے د شیخ جلال الدین تبریزی نه خفه دے. په دے وجه خامخا به د شیخ جلال الدین په خلاف فیصله اوکړی. او په دے طریقه سره به د دۀ سازش کامیاب شی او به شاه جلال الدین چه دۀ کوم الزام لګولے دے هغه به ثابت شی.

حضرت شیخ المشائخ خواجه بهاء الدین ذکریا ملتانی او د وخت ټول عالمان او مشائخ راغلل د فیصلے عدالت او مجمع جوړه شوه. فاحشه ړمه بنځه حاضره شوه. او په حضرت شاه جلال الدین تبریزی قدس سرہ پسے د حاضریدلو حکم اولیږلے شو. چه څه وخت حضرت شیخ جلال الدین تبریزی مجلس ته راننکاره شو. او خپلو پېزارو او بنګلو ته یے لاس کړو. چه مجلس ته راننوځی. چه په دے کښې د حضرت خواجه بهاء الدین ذکریا ورته فکر شو. سمدستی پاسیده. بے اختیاره یے ورمنډه کړله. او د حضرت

حضرت شاه جلال الدین پنړے ئے په دواړو لاسونو را اوچتے کړلے. او په ډیر ادب او تعظیم په حضرت شاه جلال الدین تبریزی پسے لګه دَ شاګردانو او مریدانو روستو روان شو. حضرت موصوف ئے مخامخ منبر ته اوړسولو. دَ مشرئ په ځائ ئے کښینولو. او حضرت شیخ ذکریا په ډیر ادب سره دَ هغوئ په مخکښں کښیناست.

حضرت خواجه بهاء الدین ذکریا چه دَ ټول حاضرین مجلس او بادشاه په موجودګئ کښں په کومه بے اختیاره طریقه دَ حضرت شیخ جلال الدین تبریزی ادب او احترام اوکړو په هغے باندے دَ ټولو دا یقین راغے. چه هر کله حضرت خواجه بهاء الدین ذکریا یو جلیل القدر بزرګ دے. ولی الله دے. دَ کشف او کرامت خاوند دے. او دَ دینی علمونو بے مثاله عالم هم دے. او دے دَ شیخ شاه جلال الدین تبریزی دومره ادب او احترام کوی، نو دے کله هم دَ دے قسم فحش ګناه ارتکاب نه شی کولے. چنانچه په دغه مجلس کښں سلطان شمس الدین التمش راپورته شو او ځان ئے دیته جوړ کړو. چه په غیر دَ څه اثبات ثبوت دَ حضرت شیخ جلال الدین تبریزی دَ بے ګناهئ اعلان اوکړی. مګر حضرت خواجه بهاء الدین ذکریا چونکه په دغه وخت دَ شریعت دَ دے مجلس صدر مقرر شوے وو. هغه بادشاه ته اووے. تاسو آرام اوکړئ تا دی مه کوئ. اوس چه شریعت مقرر شوے دے. نو دا ضروری ده چه هر څه فیصله دَ شریعت برابر اوکړے شی. کومے فاحشه زنانه چه دعوی کړے ده. هغه به خپل بیان اوکړی او دَ هغے په موجب به دَ شریعت حکم واوره وے شی. چنانچه بادشاه په خپل ځائ کښیناست او ټول مجلس دم خود شو.

دَ دے نه پس حضرت شیخ المشائخ بهاء الدین ذکریا ملتانی حکم اوفرمائیلو چه کومے ښځے په حضرت شاه جلال الدین باندے الزام لګولے دے. هغه دے راوړاندے کړے شی. چه هغه ښځه مجلس ته

حاضره کړے شوه. او حضرت شیخ ذکریا ته مخامخ شوه. نو په هغے باندے یو قسم له هیبت راغے. لړزان پرے اولګیده. او په ډک مجلس کښې یې د شیخ الاسلام نجم الدین صغریٰ د سازش ټول حال بیان کړلو. چه په دے جوړے یې پنځه سوه دیناره د فلانکی بقال په مخکښې رشوت راکړے دے. او هم دے شیخ الاسلام راته سنودنه کړے ده. او زه یې دیته جوړه کړے یم چه په حضرت شاه جلال الدین باندے په دروغه سره دا الزام اولګوم. چنانچه هغه بقال هم راوغوښتلے شو. تپوس ترے اوشو. هغه هم تائید اوکړو چه دے ښځے له شیخ الاسلام رشوت ورکړے دے.

چه څه وخت د شیخ الاسلام نجم الدین صغریٰ د سازش دا قیصه شروع کړه. نو په هغه باندے بد حال راغے. لړزان پرے ګډ شو. او بے هوشه پریووت. سلطان شمس الدین التمش په هغه وخت حکم اوکړلو. د شیخ الاسلام د عهدے نه یې موقوف کړلو. او حضرت شیخ المشائخ بهاء الدین ذکریا ته یې درخواست اوکړو چه د شیخ الاسلام دا منصب اوس تاسو قبول کړئ. او په دے شان سره د حضرت شیخ جلال الدین د بزرګئ او کرامت آوازه خوره شو له.

لیکن د دے پورتنئ واقعے په پیښیدلو د حضرت شاه جلال طبیعت ډیره هیر شو لږ ورځے پس د دهلی نه روان شو بدیوان ته یې تشریف یوړلو. او د تللو په وخت یې دا اوفرمائیل "چه څه وخت زه دهلی ته راغلے وُوم دلته هر څه سره زر وو. اوس هر څه سپین زردی." بدیوان په هغه زمانه کښې د پیښور. ملتان. دهلی. اجمیر په شان اهم ښهر وو. د ښهر ورد په طریقے کښې ګرزکان هم دلته د بخوانه موجود وو. په دغه وجه حضرت شیخ جلال الدین دلته تشریف راوړے وو. د بدیوان د حاکم قاضی کمال الدین نوم وو. هغه د شیخ جلال الدین نه لاس نیوه اوکړه.

دَ قاضی صاحب ځوئ شیخ برهان الدین یې هم مرید شو۔ چه روستو دَ اوچتې مرتبې بزرګ وو۔ حضرت مولانا عبدالحق دهلوی پخپل کتاب کښې لیکي:۔ په کومو ورځو کښې چه دوئ په بدیوان کښې وو۔ د غلته یو هندو ګوجر وو۔ چه په اصل کښې دَ ډاکے مارانو سردار وو۔ هغه دَ حضرت شیخ جلال الدین تبریزی په لاس توبه اوکښله او مسلمان شو۔ هغه درې لکه روپۍ (چیتل) دَ لوټ مار په ذریعه جمع کړې وې۔ هغه یې را وړې دَ حضرت شیخ په خدمت کښې یې ډیرې کړې۔ حضرت شیخ ورته اوفرمایئل چه دا ټول رقم واخله او په غریبانو یې خیرات کړه۔ دَ مسلما نیدلو نه پس دَ دغه هندو ګوجر نوم علی مولا کیښودلے شوے وو۔ چه روستو دَ ډیرے لوئے مرتبې خاوند شوے وو۔ او دَ حضرت شاه جلال الدین تبریزی په مشهورو خلیفه ګانو کښې شمیرلے شو۔

په خزینة الاصفیاء کښې دَ دوئ دَ وفات کال سنه ۶۳۸ھ ښودلے شوے دے۔ او په کتاب "تاریخ اولیایې هند" کښې دَ حضرت شیخ شاه جلال الدین تبریزی دَ وفات کال سنه ۶۳۱ھ ښودلے شوے دے۔ لیکن دَ ابن بطوطه دَ روایت مطابق دوئ دَ یو سل پنځوس کاله (۱۵۰) په عمر په سنه ۷۴۳ کښې وفات شوی دی۔ دَ خزینة الاصفیاء او "تاریخ اولیاء هند" دواړه روایتونه صحیح نه دی۔ ځکه چه د دغه سنه ۶۳۱ او سنه ۶۳۸ھ نه تر ډیرے مودے دَ شاه جلال ژوند یقیني دے۔

ابن بطوطه په خپله سفرنامه کښې لیکي:۔ چه دوئ ته خدائ پاک ډیر لوئ عمر ورکړے وو۔ حضرت شاه جلال ما ته پخپله قیصه کړے ده۔ چه دَ خلیفه مستعصم باالله دَ قتل په وخت کښې دوئ په بغداد کښې موجود وو۔ بیا ابن بطوطه چه دَ مشرقي پاکستان نه روان شو او دَ انډونیشیا دَ سیاحت نه روستو چین ته اورسیده۔ او دلته هغه دَ حضرت

شیخ جلال تبریزی دَ وفات خبر رسیدلے وو۔ لیکن چه څه زمانه پس دَ
هغوئ په مرید انو کښې دَیو مرید سره هم دغلته په چین کښې ځما ملاقات اوشو۔
او هغه راته اووے۔ چه دَ حضرت شاه جلال وصال شوے دے۔ دَ هغوی عمر
یونیم سل کاله وُو(۱۵۰)۔ دَ عمر په روستنو څلویښتو کالو کښې به شامدام روژه وو۔
او افطار به یې هر لس ورځې پس کولو۔ یوه غوا یې ساتلې وه۔ صرف دَ هغې په پیو به
یې روژه ماتوله۔ او اکثر به یې هر لس ورځې پس افطار کولو۔ روغه روغه شپه
به په نمانځه ولاړ وو۔ شو کیره به یې فرمائیله۔

ابن بطوطه دَ حضرت شیخ جلال الدین تبریزی د بعض داسے
کرامتونو ذکر هم کړے دے۔ چه هغه کرامتونه دَه پخپلو سترګو لیدلی دی۔
لیکن دَ ابن بطوطه دا بیان ډیر عجیبه دے۔ د دے نه ګڼړ سوالونه پیدا
کیږی۔ او دَ هغې حل کول ځکه ضروری دی۔ چه دَ بعض نورو تاریخی
تذکرو او د دے دَ بیان ترمنځه چه کوم فرق دے چه هغه واضحه شی۔

خبره داسے ده۔ چه دَ عباسیه خاندان ۳۷ حکمران خلیفه مستعصم
بالله په سنه ۶۴۰ھ کښې بادشاه شوے او په سنه ۶۵۶ھ کښې شهید کړے شوے
وو۔ که دَ ابن بطوطه دا روایت صحیح اومنلے شی۔ نو د دے مطلب دا شو چه شاه
جلال دَ سنه ۶۵۶ھ نه روستو هندوستان ته راغلے وو۔ حالانکه پورته چه
کومه واقعه بیان شوله۔ دَ هغې له مخه دے دَ سلطان شمس الدین په زمانه
کښې راغلے وو۔ او سلطان التمش په سنه ۶۰۷ھ کښې بادشاه شوے او په
سنه ۶۳۳ھ کښې وفات شوے دے۔ که شاه جلال په سنه ۶۵۶ھ کښې راغلے فرض
کړے وو۔ نو بیا دَ التمش په زمانه کښې د دغه پورتنۍ واقعې پیښیدلو
امکان نه شی کیدلے چه شاه جلال دَ دهلی دَ راتللو نه روستو یو ځل بیا
بغداد ته تلے وو۔ او دَ خلیفه مستعصم بالله دَ شهادت په زمانه کښې به
دے هلته موجود وو۔ لیکن د دے سره دَ ابن بطوطه دا وینا چه دے

په سنه ۶۴۳ کښې وفات شوے دے. او د وفات په وخت کښې د دوی عمر (۱۵۰) کاله وو. دا خبره نه واضحه کیږی. ځکه چه که مونږ ۲ په سنه ۶۴۳ھ کښې یعنے د وفات په وخت کښې د دوی عمر (۱۵۰) کاله اوګڼو. نو په دغه اعتبار د دوی د ولادت کال سنه ۴۹۳ھ کیږی. حال دا دے چه مخکښې د خواجه بزرګ په تذکیره کښې په دے تفصیل سره پدے بحث کړے دے. چه په سنه ۵۸۴ھ کښې خواجه شاه جلال تبریزی په بغداد کښې موجود وو. او د خواجه شهاب الدین سهروردی نه یئے بیعت کړے وو. او دا عقل نه اخلی چه په سنه ۵۹۳ھ کښې پیدا شوے د نهه کالو ماشوم دے په سنه ۵۸۴ھ کښې خلافت حاصل کړے وو. او بله دا چه په سنه ۶۰۳ھ کښې د قطب الدین بختیار کاکی او شیخ اوحد الدین کرمانی په ملګرتیا کښې ملتان ته د دوی راتلل او بیا غزنی ته تلل یئے هم یقینی دی. نو ځکه مونږ په سنه ۵۹۳ھ کښې د دوی پیدا کیدل نه شو منلے. په دے تولو خبرو چه غور اوکړو نو دا ویلے شو چه د ابن بطوطه په بیان کښې د کتابت په غلطئ سره د "وَكَانَ عُمْرُهُ إِذَا مِائَةً وَتِسْعِينَ" په ځائ "مِائَةً وَخَمْسِينَ" لیکلے شوے وی. یعنے ابن بطوطه به ۱۹۰ کاله لیکلے وی. او په کتابت کښې به یو سل پنځوس کاله شوے وی. که څه مونږ دا توجیه اومنلے شی نو په دے اعتبار د دوی د پیدائښت کال سنه ۵۵۳ھ جوړیږی. او پوره ته چه کوم تاریخی مشکلات بیان شول هغه نه پیدا کیږی.

د حضرت شاه جلال تبریزی علیه الرحمة مزار مبارک په سلهټ کښې دے. روایت چه بنګال حکمران سلطان شمس الدین فیروز شاه په سنه ۶۹۹ھ مطابق سنه ۱۳۰۳ء کښې هم د دوی د هدایاتو او ارشاداتو په مطابق د سلهټ نومے ملک کښې جهاد کړے وو. او د دے سلهټ (موجوده مشرقی پاکستان) په دے جهاد کښې حضرت شاه جلال

پخپله هم د فقیرانو او مشائخو د یو لوئ جماعت سره شامل وو.

سلطان علاؤالدین علی شاه په پنډوه (مغربی بنګال) کښې د حضرت شاه جلال تبریزی یو "درګاه" جوړ کړے دے. د دے په حقله د کتاب "ریاض السلاطین" مؤلف لیکی:- چه په کومو ورځو کښې سلطان علاء الدین علی شاه د بنګال فتح کولو د پاره راروان وو. نو حضرت شاه جلال تبریزی په هغه باندے په خوب کښې حضور شو. په بنګال باندې د بادشاه کیدلو زیرے یے ورله ورکړو. او ورسره یے ورته دا او فرمائیل. چه ځما د پاره یو مکان "درګاه" "خانقاه" جوړ کړه. مګر چه څه وخت سلطان علاء الدین علی شاه بادشاه شو. نو بخپل عیش و عشرت کښې مصروف شو. او د حضرت شاه جلال هغه هدایات ورنه هیر شول. څه ورځې پس بیا په خوب کښې ورته شاه جلال علیه الرحمة د دغه "خانقاه" د تعمیر کولو حکم او فرمایه. او د هغې د پاره یے ورته ځاي په نخښه کړو. چه په فلانکی ځای کښې یے جوړه کړه. په صباله چه سحر سلطان علی شاه د خوب نه پاسیده. نو د هغه ځائ په تلاش کښې روان شو. چه حضرت شاه جلال ورته په خوب کښې د هغې نخښه ورکړے وه. د هغې نه روستو یے په هغه ځائ باندے یو شاندار "خانقاه او درګاه" جوړ کړلو. چه نن ورځ هم په پنډوه (مغربی بنګال) کښې موجود دے. او "بړی درګاه" یعنے "لوئ دربار" ورته وئیلے شی.

دا ډیر متبرک "درګاه" دے. په هره زمانه کښې د خدائ مخلوق پرے رامات وی. زیارت له یے راځی. د امیرانو سلطانانو او حکمرانانو د طرف نه د دے د غور او مرمت خیال ساتلے شی. او زیارت یے کوی. دا مکان. عمارت یادګار- خانقاه- درګاه په اصل کښې په هغه ځائ باندے جوړ شوے دے. چه په دغه ځائ باندے حضرت شاه جلال په ژوند کښې عبادتا او

ریاضت کړے وو۔ او چلے یې اوکښلي وے۔ او لکه چه مخکښې ذکر اوشو دَ دوئ اصلي مزار په سلهټ مشرقي پاکستان کښې دے۔

دَ بعض خلقو دا خیال دے۔ چه شاه جلال تبریزي او شاه جلال سلهټي دواړه جدا جدا شخصیتونه دي۔ او ځان له بیل بیل بزرګان دي۔ او دَ ابن بطوطه ملاقات هم د دغه حضرت شاه جلال سلهټي سره په شوے وو۔ لیکن دا خیال صحیح نه دے۔ ځکه چه ابن بطوطه په کوم تفصیل او وضاحت سره دَ شاه جلال سره دَ خپل ملاقات حال لیکلے دے۔ دَ هغې نه هم دغه ثابتیږي چه په حقیقت کښې شاه جلال تبریزي هم دغه شاه جلال سلهټي دے او داد واړه نو مونه دَ یو بزرګ دي۔ بهرحال په بنګال کښې حضرت خواجه شیخ شاه جلال الدین تبریزي علیه الرحمة ته بے پناه مقبولیت حاصل شوے وو۔ او ترننه ورځې پورے دَ آسام، مغربي بنګال او مشرقي پاکستان په مختلفو مقاماتو کښې دَ دوئ بے شمیره آثار او تبرکات موجود دي۔ علیه الرحمة والغفران۔

دَ دوئ په اقوالو او ارشاداتو کښې دا دوه خبرے دَ یاد لرلو دي۔ فرمائي:

(الف) هر هغه چا چه صانع یعنې الله تعالیٰ پریښودلو او په مصنوع یعنې مخلوق پورے یې زړه اوتړلو نو دَ هغه انجام داشي چه ریاکار بنده ترینه جوړشي۔

(ب) حضرت شیخ بهاء الدین ذکریا ملتاني علیه الرحمة ته یې په یو خط کښې لیکلي وو۔ هر هغه چا چه دَ زنانه وُ دَ کوناتو سره مینه پیدا کړه۔ هغه کله هم دَ نجات لاره نه شي موندے۔

دَ حضرت شیخ جلال الدین تبریزي دا ارشاد مبارک حضرت عبد الرحمان بابا په یو شعر کښې داسے بیان کړے دے۔ ؎

په شپه پروت یې دَ عورتے په سینه
یاده وے په خوله مکه او مدینه

# دَ اسلام درے ستوری

دَ سنه ۷۵۲ هـ نه تر سنه ۸۵۸ هـ پهٔ زمانه کښې دَ بنګال متحده اسلامی سلطنت بیا په درے خود مختاره اسلامی حکومتونو کښې تقسیم شوے وو۔ او په بیله بیله حصه باندے جدا جدا مسلمان بادشاه وو۔ چه هر یو سلطان په نوم بیلے شو۔ او د درے واړو تعلق دَ دهلی دَ مرکزی اسلامی حکومت نه قطع شوے وو۔

(۱) په مشرقی بنګال (مشرقی پاکستان) باندے فخر الدین مبارک شاه حکمران وو۔ او سونارګاؤں یې دار الحکومة وو۔

(۲) په مغربی بنګال باندے دَ علاء الدین علی شاه حکومت وو۔ او ست ګاؤں (هوګلی) یې دار الحکومت وو۔

(۳) او په شمالی بنګال باندے دَ حضرت حاجی سلطان الیاس شاه حکومت وو۔

هر کله چه دے درے واړو سلطانانو زمانه یو لاده۔ او هر یو پخپل پخپل سلطنت کښې دَ خپل خپل وخت دَ مشاهیر و عالمانو او بزرګانو په ملګرتیا کښې دَ اسلام شاندار خدمتونه کړی دی۔ او روستو دَ اکثرو بزرګانو په تذکره کښې دَ دوئ نومونه به هم یاد ولے شی۔ په دے وجه مونږ دا درے واړه سلطانان دَ اسلام دَ "درے ستورو" په نامه یاد کړل۔ او دَ فائدے دَ زیاتوالے په خاطر د لته مختصراً دَ هر یو سلطان او دَ هغه دَ جانشینانو تذکره ځان له جدا جدا درج کوُو لے شی۔

## (۱) حضرت سلطان فخر الدین مبارک شاه

حضرت سلطان فخر الدین مبارک شاه په سنه ۷۳۴ هـ نه تر سنه ۷۴۷ هـ

کښې دَ بنګال په مشرقي حصه (موجوده مشرقي پاکستان) باندِ حکمران وو۔ دارالحکومت ئې سونارګاؤں وو۔ دے ډیر نیک دیندار ؤ۔ عادل او غازي سلطان وو۔ دَ "چاټ ګام" علاقه دده په زمانه په دویم ځل مسلمانانو فتح کړے وه۔ دے دَ بنګال مشهور پیر طریقت حضرت شیخ بدر عالم زاهدي علیه الرحمة مرید وو (دَ پیر بدر عالم ته کره به روستو راشي.) بنا غلے ډاکټر انعام الحق پخپل تالیف "مسلم بنګله ساهته" کښې لیکي: چه ابن بطوطه (مشهور مسلمان سیاح ته دا هم معلومه شوے وه. چه دَ درویش بدرالدین علامه المعروف "بدرپیر" په هدایت او حکم باندے دَ سلطان فخرالدین مبارک شاه یو جرنیل حضرت "قدل خان" علیه الرحمة دَ "چاټ ګام" غزاله تلے وو۔ او دغه علاقه ئې فتح کړے وه۔

دَ سلطان فخرالدین مبارک شاه په زمانه کښې دَ ګجرات او جنوبي هند دَ نورو علاقو ګڼر عالمان او مشائخ او بزرګان بنګال ته راغلي وو۔ او دلته ئې دَ روحانیت او دَ معرفت شمعې بلې کړے وے۔ چه په هغې کښې دَ سلسله عالیه قادریه او سلسله عالیه چشتیه مشائخ خاص طور سره دَ یاد ولو دي۔ او دَ سلسله عالیه سهروردیه په مشائخو کښې دَ حضرت خواجه شاه جلال الدین تبریزي علیه الرحمة نوم ډیر ښکاره دے. لکه چه مخکښې ذکر او شو حضرت شیخ جلال الدین تبریزي هم دده فخرالدین مبارک شاه په زمانه کښې بنګال ته راغلے وو۔ او په سونارګاؤں. چاټ ګام او نورو ښهرونو کښې څه زمانه ئې تیره کړے وه۔ او دَ ابن بطوطه او شیخ جلال الدین تبریزي ترمینځه ملاقات هم په دغه زمانه کښې دَ "کام روپ" (آسام) په علاقه کښې شوے وو.

## (۲) حضرت سلطان علاء الدین علي شاه

لکه چه مخکښې ذکر او شو۔ دَ مغربي بنګال په علاقه باندے دَ حضرت سلطان

علاء الدین علی شاه علیه الرحمة حکومت وو. دے ډیر نیک دیندار
صاحب طریقت او معرفت حکمران وو. دے دَ حضرت شیخ جلال الدین
تبریزی سهروردی علیه الرحمة معتقد او مرید وو. هرکله چه حضرت
شیخ جلال په سنه ۶۴۲ﻫ کښې وفات شولو. او دَ سلهټ په پنډوه نومی مقام
کښې دفن کړے شو. نو حضرت سلطان علاء الدین علی شاه پرے پوخ
مزار جوړ کړلو. دَ سلهټ او آسام په علاقو کښې دَ اسلام رنړا دے دیندار،
عادل او غازی بادشاه په مجاهدانه کوششونو خوره شوے ده.

دَ حضرت علاء الدین علی شاه په اولاد کښې حضرت سلطان
علاء الدین حسین شاه ډیر نامور مسلمان بادشاه تیر شوے دے. چه
روستو دے سلطان حسین ډیر نامور مسلمان بادشاه تیر شوے دے.
چه روستو دے سلطان حسین شاه په مناسبت سره دَ مشرقی پاکستان
او بنګال په تاریخ کښې دَ سلطانانو دا کورنئ دَ "حسین شاهی خاندان" په
نوم سره یادیږی. ځکه دے سلطان حسین شاه او دده نه روستو
ددے خاندان نورو سلطانانو چه دَ بنګال په خاوره خومره جماعتونه،
مدرسے او دَ بزرګانو زیارتونه جوړ کړی دی. هغه ددے نامور خاندان دَ اسلامی
کارنامو دَ تاریخ یو زرین باب دے.

---

دَ حضرت شیخ غوث منډوی دَ تالیف "تذکره ګلزار ابرار" دَ بیان
مطابق حضرت سلطان علاء الدین علی (حسین) شاه دَ بهار شریف دَ حضرت
شیخ فخر الدین محمد زاهدی علیه الرحمة عقیدت مند او مرید وو. او
بیا دده فرزند ارجمند محمود ثالث علیه الرحمة چه دَ سنه ۸۴۶ﻫ نه تر
سنه ۸۵۳ﻫ پورے په دے ملک حکمران وو. دغه محمود ثالث دَ حضرت
شیخ پیر بدر عالم زاهدی علیه الرحمة معتقد او مرید وو. او ددے
خپل نامور پیر سره یئے دومره زیات پرخلوصه عقیدت وو. چه

چه خپل لقب یې عبد الله را اختیار کړے وو۔ او بنګاله خطبه او سکه (ضرب) کښې به یې هم دغه لقب استعمالولو۔

## (۳) حضرت سلطان حاجي الياس شاهؒ

دَ مملکت بنګال په شمالي علاقه کښې دَ حضرت حاجي سلطان الیاس شاهؒ۔ خودمختاره اسلامي حکومت قائم وو۔ حضرت الیاس شاه دَ حضرت راجا بیابانیؒ او حضرت شیخ علاء الحق معتقد او مرید وو۔ (ددے دواړو بزرګانو تذکره به روستو راشي۔) دَ بنګال په خاوره دَ مسلمانانو بادشاهانو دَ کوم خاندان مشر حکمران چه حضرت سلطان حاجي الیاس شاه وو۔ دده نه روستو په دے خاندان کښې ګڼ نامور سلطانان تیر شوي دي۔ او دا کورنۍ په الیاس شاهي خاندان مشهوره ده۔ دَ حضرت الیاس شاه نه روستو دده ځوئ حضرت سلطان سکندر شاه بادشاه شو۔ دے دَ دهلي نه دَ بادشاه فیروز شاه تغلق همعصر وو۔ او په سنه ۷۸۶ھ کښې وفات شوے دے۔ حضرت سلطان سکندر شاه دَ حضرت مخدوم الملک شیخ شرف الدین بهاري علیه الرحمة معتقد او مرید وو۔ دَ هغوي سره به یې خط او کتابت کولو۔ او په دیني کارونو کښې به یې دَ هغوي صلاح او مشوره اخیستله۔

دَ حضرت سلطان الیاس شاه علیه الرحمة په زمانه کښې په دیناج پور ضلع کښې یو بزرګ اوسیده۔ چه دَ هغه حضرت شیخ عطا نوم وو۔ او په سنه ۷۵۰ھ کښې وفات شوے وو۔ ددے بزرګ په مزار باندې په سنه ۷۶۲ کښې سلطان سکندر شاه یوه زیارت جوړ کړے وو۔ چه دَ هغې په کتبو کښې دا الفاظ درج دي۔ "قطب الاولیاء جیه المحققین سراج الحق والشرع والدین مولانا عطاء علیه الرحمة۔ (ددے مولانا عطاء تذکره به روستو راشي۔) ددے نه دا اندازه لګیدے شي چه سلطان الیاس شاه او دَ هغه ځوئ سلطان

سکندر شاه پخپله زمانه کښې د دین اسلام د بزرګانو او عالمانو سره یوه روحانی رابطه تعلق او تړون لرلو - او د دغه روحانی تړون په وجه د دوئ د مشترکه کوششونو په برکت د بنګال په خاوره د اسلام رڼا ورځ په ورځ خوریدله -

# حضرت سلطان غیاث اعظم شاه

د حضرت سلطان سکندر شاه د نامور زوئ نوم حضرت سلطان غیاث الدین اعظم ... ے د حضرت مخدوم الملک شیخ شرف الدین بهاریؒ د مشهور خلیفه حضرت مولانا مظفر بلخی علیه الرحمة معتقد او مرید وو - سلطان غیاث الدین د سنه ۷۸۶ هـ نه تر سنه ۸۰۱ هـ پورے د بنګال په شمالی علاقو باندے حکمران وو - حضرت غیاث الدین لوئ علم پرور بادشاه تیر شوے دے. د عالمانو او مشایخو به یې ډیر قدر کولو چه یې داوه. چه دے پخپله فاضل عالم وو. د طریقت او معرفت خاوند هم وو. د دے نه یې اندازه لګیدلے شی چه د بنګال دوه مشهور بزرګان حضرت قاضی سراج الدین صدیقی او حضرت شیخ نور قطب عالم پنډوی. او پخپله سلطان غیاث الدینؒ وا ړه د یو استاذ شاګردان او د یو پیر طریقت مریدان وو. (تذکره د ستورو راشی) او هم دا هغه نامور بادشاه تیر شوے دے. چه حضرت حافظ شیرازیؒ ته یې بنګال ته د راتللو دعوت ورکړے وو. د دے واقعاتو نه دا اندازه لګیدلے شی. چه څومره په مشاهیرو حکمرانانو. سلطانانو او بادشاهانو باندے د عالمانو او بزرګانو ډیر زیات اثر وو. او د هغے په وجه د دے مقتدر حکمرانانو زیات وخت به د اسلامی علمونو په اشاعت او د اسلام په تبلیغ کښې تیریده - او هم دا وجه وه. چه د دے "روحانی تړون" په برکت د اسلام رڼا په ډیره کامیابئ سره په دغه ملک کښې خوره شویده -

# حضرت شیخ سراج الدین عطا ارمړ

## انصاری، سهروردی

## دیناج پور، مشرقی پاکستان

مخکښې د حضرت شیخ المشائخ ابراهیم دانشمند ارمړ علیه الرحمة تذکره درج کړې شوې ده. دده د ځوی شیخ سراج الدین نوم وو. او دې د حضرت شیخ بهاءالدین ذکریا ملتانی علیه الرحمة خلیفه اوماذون وو. یعنې د خپل پلار د پیر بهائی نه یې طریقه کړې وه. او خرقه د خلافت یې حاصله کړې وه. دده لاس نیوی کولو چه کومه لویه فائده لاهر ګنده شوې وه. هغه دا وه چه د حضرت شیخ سراج الدین په وجه د وزیرستان او ملتان د ولاړ وحانی خاندانونه سره یو شوی وو. دوه مشغلونه او دوه ړناکانې سره یو شوې وې. او د کوه سلیمان نه واخله د ملتان. بهاولپور. سنده. پنجاب او مشرقی پاکستان پورې ټولې علاقې پرې پوهان روښانه شوې وې.

په کومه زمانه چه حضرت شیخ ابراهیم دانشمند بنګال ته تشریف وړې وو. د هغې نه څه زمانه روستو حضرت شیخ سراج الدین هم دغه مملکت ته ورغلې وو. او په سـ۱۵۲ه کښې وفات شوې دې. د مشرقی پاکستان په دیناج پور نومې ضلع کښې یو کلے دے. چه د هغې "ګنګارام پور" نوم دے. د حضرت مولانا شیخ سراج الدین عطا جوړ کړې دے. او د دوئ مزار مبارک هم په دغه کلی کښې دے. د هغې د پاره دالاندې تفصیل د وستلو دے.

واقعات داسې دی چه د حضرت مولانا سراج الدین عطا د وفات په دغه زمانه په بنګال باندې د سلطان بلبن د ځوی سلطان ناصرالدین بغراخان حکومت وو. چه دارالحکومت یې لکهنوتی نومې مقام وو. سلطان ناصرالدین بغراخان د سلطان محمد تغلق په زمانه کښې په سـ۷۲۶ه

کښې چه وفات شو - نو دَ هغه په ځائې ملک بیدار غلزی له دَ قدر خان خطاب ورکړے شو او هغه په لکهنوتی حکمران شو - بیا چه ۷۳۹ سنه کښې چه دَ فخر الدین لودهی دَ لاسه نه "ملک بیدار" الملقب په قدر خان قتل شو - او ورپسے لږے ورځې پس دَ سلطان قدر خان یو سپه سالار علی مبارک غلزی او لګیده فخر الدین له یئے شکست ورکړو - په لکهنوتی یئے قبضه اوکړه او دَ سلطان علاء الدین علی شاه په نوم یئے حکومت شروع کړو - نو په دغه پسے لږے ورځې پس دَ ملک بیدار الملقب په قدر خان دَ یو بل جرنیل حاجی الیاس دَ لاسه نه سلطان علاء الدین قتل شو - او په لکهنوتی هغه قبضه اوکړه - بیا په سنه ۷۴۳ ھ کښې چه سلطان محمد تغلق په بنګال لشکر کشی اوکړه او فخر الدین لودهی یئے قتل کړو - او دَ بنګال دَ لکهنوتی او سنارګاون دواړه حکومتونه یئے حاجی الیاس پنی ته ورحواله کړه - او دَ هغه نه روستو په سنه ۷۶۰ ھ کښې دغه سلطان حاجی الیاس شاه وفات شو او دَ هغه په ځائې دَ هغه ځوئې سلطان سکندر شاه بادشاه شو - نو هم دغه سلطان سکندر شاه دَ خپل حکومت په څلورم کال په سنه ۷۶۴ ھ کښې دَ حضرت شیخ مولانا سراج الدین عطار رح مزار مبارک یو خ تعمیر کړے وو - او دَ هغه مزار په کتبه یئے دَ حضرت مولانا عطاء په شان کښې دا القاب درج کړیدی:-

"قطب الاولیاء وحید المحققین سراج الحق والشرع والدین مولانا عطاء"

دَ هغه نه روستو دَ جلال الدین فتح شاه لودهی په زمانه کښې د دوئ په مزار مبارک کښې نوره هم توسیع اوشوه - د دے دویم تعمیر په کتبه کښې سنه ۸۸۷ ھ درج ده - په دویم ځل دَ سلطان شمس الدین مظفر شاه په زمانه کښې په دے مزار مبارک کښې نور تعمیری کار شوے وو - چه د دے تعمیر په کتبه کښې سنه ۸۹۶ ھ درج ده - او دا الفاظ پکښې لیکلی شوی دی:-

"مخدوم المشهور قطب الاولیاء مولانا عطاء قدس سره"

دا سے معلومیږی چه په دے مزار کښ دَ سلطان سید علاء الدین حسین په زمانه کښ هم تعمیری کار شوے دے. ځکه چه دے بادشاه دَ زمانے ۹۱۸ھ هیوه کتبه هم په مزار مبارک کښ موجود ده. او په هغے کښ دا الفاظ لیکلی دی۔

"حضرت شیخ المشائخ شیخ عطا قدس سره"

دَ مشرقی پاکستان په مختلفو تذکرو کښ د دوئ حالات نه پیدا کیږی. البته په یو یاداشت کښ دا سے لیکلی شوی دی. چه دے په ۷۵۶ھ کښے دَ حاجی الیاس شاه دَ حکومت په زمانه کښ وفات شوے دے. لیکن دغه روایت صحیح نه دے.

دَ حضرت شیخ سراج الدین الملقب په شیخ عطاء دَ خوئ نوم شیخ محمود علیه الرحمة وو. د دغه شیخ محمود درے ځامن وو. بازید اول. محمد امین. زید آغا. په دوئ کښ دَ بازید اول درے ځامن وو. محمد شیخ. شیخ ابراهیم. عبد الرحیم. روستو بهلول لودهی سره چه کوم پښتانه هندوستان له غزاته تلی وو. په هغے کښ دَ ارمړ قوم خصوصاً برکی دَ قبیلے خلق د جالندهر په علاقه آباد شوی وو. دَ غازیانو او مجاهدینو په دغه لښکر کښ دَ حضرت شیخ سراج الدین انصاری سهروردی په اولاد کښ حضرت محمد شیخ علیه الرحمة هم شامل وو. چه دَ جالندهر په علاقه کښ آباد شوے وو اود خیل قوم اودغے علاقے دَ خلقو روحانی پیشوا وو. روستو دے محمد شیخ خوئ شیخ عبد الله سهروردی (دَ پیر روښان والد ماجد) هم په دغه علاقه کښ دَ علوم شریعت او طریقت رهنما اود سلطان ابراهیم لودهی دَ طرف نه دَ قاضی القضاة په عهده باندے مقرر وو. او چه هر کله په سنه ۹۳۲ھ کښ دَ سلطان ابراهیم لودهی حکومت واوړیده نو بیا هم په دغه وجه حضرت مولانا شیخ عبد الله دَ جالندهر نه واپس خیل وطن

گانی کرم (وزیرستان) ته په کډه لاړلو۔ د تاریخ مخزن پنجاب (جلد دوم ص ۱۹۴)
د روایت مطابق په جالندهر دوآب کښې ارمړ نومې یو کلی په مشهور او
آباد وه قبضه اوس هم موجود دی۔ اکثر مکانونه یې پاخه دی۔ زمکه یې
آباده او نهری ده۔ د غلې پیداوار یې زیات دے۔ او د ښهر یې د آبادی نه باهر
یو پوخ گنبد جوړ دے۔ په هغې کښې یو کانړے پروت دے۔ وئیلے شی چه په
دے کانړی باندے چه د بنیادم د پښے کوم منړ دے۔ دغه د حضرت علی
کرم الله وجهه د قدم مبارک نقش دے۔ عام او خاص خلق یې زیارت
له ورځی۔ په دے علاقه کښې د ارمړ قبیلې نور هم ډیر آثار موجود دی۔ او د
خاندان د یو مشهور بزرگ حضرت شیخ "صدر دیوان انصاری علیه الرحمة
مزار مبارک په قصور نومې ښهر کښې موجود دے۔
د جالندهر په علاقه کښې چه د ارمړ قوم خصوصاً قبیله
برکی کوم خلق آباد وو۔ لکه چه مخکښې ورته اشاره اوشوه۔ د دوی سره
د حضرت شیخ الاسلام سراج الدین انصاری الملقب په مولانا عطاء ارمړ
سهروردی د ستانے بزرگان هم دغلته آباد شوی وو۔ ترینن ورځې پورے په
د "انصاری شیخ" په نوم په جالندهر کښې کوم قوم آباد وو۔ هغه هم دغلته د حضرت
مولانا عطاء د ستانے ستانه دار وو۔ چه د تیرو سوو کلونه وسروکلو نوراسے
یې په دغه علاقه کښې د اسلام تبلیغ کولو۔ دا سے معلومیږی چه هلته
په مشرقی پاکستان کښې د حضرت مولانا عطاء د وفات نه روستو چه په
سن ۷۳۹ هـ کښې د پښتنو تر منځه کوم اړے گړے پیښې شوے وو۔ او په سنه ۸۴۰
کښې د سنارگاؤں (ډهاکه) مشرقی پاکستان د بادشاه فخر الدین لودهی د
مرگ نه پس چه د هغه خوریې ظفر لودهی او نور پښتانه وطن ته راوپس
کیدل۔ نو په دغه کښې د حضرت مولانا عطاء د خاندان افراد خصوصاً
شیخ محمود لودهی راستون شوے وو۔ نو شیخ محمود او دے خاندان خه کسان

هم ورسره راغلی وو. بهرحال دا یو مبارک خاندان دے. چه دد دے په
برکت دَ وزیرستان پنجاب او مشرقی پاکستان ترمنځه دا سے "روحانی
تړون" قایم شوے وو چه دَ هغے په وجه ددغه روحانی فیوضاتو
او برکتونو نه بے دَ څه امتیاز او فرق نه هرچا برخه مونده. ۴
علیهم الرحمة والغفران -



# حضرت شیخ راجا بیابانی رح

دَ اتمے صدیٔ هجری دَ نیمائی (سنه ۷۵۰ هـ) دَ زمانے کوم مشاهیر اولیاء الله چهٔ مشرقی پاکستان او مغربی بنګال په خاوره استوګن وو. په هغوی کښې دَ حضرت مولانا شیخ راجا بیابانی علیه الرحمه او حضرت شیخ اخی سراج نومونه زیات مشهور دی. چه دلته دَ دواړو بزرګانو تذکره په اختصار سره درج کوّلے شی.

حضرت شیخ راجا بیابانی ددے دور باعظمت او بااثره شخصیت وو چه په سنه ۷۵۵ هـ کښې وفات شوے دے. دَ دوئ مختصره تذکره په کتاب "ریاض السلاطین" کښې داسے لیکلے شویده. چه په کومو ورځو کښې دَ دهلی شهنشاه فیروز تغلق بنګال په اکدالهٔ نومے قلعه کښې سلطان حاجی شمس الدین الیاس شاه محاصره کړے وو. نو په دغه دوران کښې یوه ورځ خبر راغے چه حضرت شیخ راجا بیابان دَ دنیا نه سفر اوکړ. حاجی الیاس شاه ددے حضرت شیخ سره ډیر زیات عقیدت لرلو. دَ فقیرانو جامے ئے واغوستلے. دَ قلعه نه ایکے یواځے په بدله جامه کښې ورتهٔ "کوړ" نومے مقام ته ورغے. او هلته دَ حضرت شیخ راجا بیابانی په تجهیز او تکفین او دَ جنازے نمانځه کښې شریک شو. او بیا واپس هم دغه شان پټ په پټه خپلے دارالخلافے "اکداله" ته راغے. بیا څه نیټه پس سلطان فیروز شاه تغلق چه دَ حاجی الیاس شاه ددے حال نه خبر شو. نو دَ هغه په زړه کښې هم دَ حضرت راجا بیابانی سره عقیدت او دَ حاجی الیاس دَ اسلام دوستیٔ قدر پیدا شو. او دا فیصله ئے اوکړله چه دَ قلعه اکداله دَ فتح کولو نه لاس واخلی. محاصره او قلعه بندی ئے ختمه کړی. او واپس

شی. دا دے په تائید کښې دَ ضیاء برنی دا لاندینی الفاظ دَ لوستلو دی:- (دَ فارسی نه ترجمه)

" دَ ایمان او اسلام دَ تقاضو له مخه دَ سلطان فیروز شاه تغلق په خاطر مبارک کښې دا خیال راغے. چه که څما لښکر دَ خندق دَ اوبو نه ورپورے شی. دَ شاهی لښکر هاتهیان دَ " اکداله" قلعه تاراج کړی. نو لازماً گناهگار او بے گناه مخلوق به یو شان پکښې دَ تیغ نه تیر شی. جنګ دَ حاجی الیاس سره دے. لیکن نور بیر بے گناه مسلمانان به پکښې قتل شی. او دَ سنی مذهبه مسلمانانو پرده دارے زنانه او بال بچ په بے پردے او دربدر شی. دَ کفارو او مشرکانو په لاس به پریوزی. خونریزی به اوشی. دَ خاندان رسالت او نبوت اولاد - عالمان. مشائخ طالب علمان. درویشان. گوشه نشینان. غریبان او مسافران به پکښې ضائع شی." •

دا پورته بیان څومره دَ دړاندے دے. یو خوا ته دَ سلطان حاجی الیاس شاه دومره لوئے خطرے ته غاړه کیښودل. چه بادشاه دے. او دَ عین قلعه بندئ دَ تو دجنګ په دوران کښې دَ فقیرانو په جامه کښې دَ اکداله نه بهر ته ووځی. "گوړ" ته ځی. او دَ خپل پیر طریقت شیخ راجا بیابانی علیه الرحمة جنازه گذاری. او بیا واپس راځی. نو دا دے واقعے نه څرګنګ چه دَ سلطان حاجی الیاس شاه دَ اسلام دوستئ او دَ خپل پیر سره دَ انتهائی عقیدت پته لګیږی. دغه شان ورسره ورسره دَ حضرت شیخ راجا بیابانی علیه الرحمة دَ روحانی مرتبے او مقام عظمت پته هم لګیږی. چه دَ هغه زمانے دَ عوامو څه چه دَ خواصو هم ورسره دومره بے دریغه عقیدت او ارادت وو. او که فکر او کړو نو څومره دَ دے مشاهیر و بزرګانو دَ دے روحانی اثر او رسوخ له برکته دَ هغه زمانے عام او خاص خلق په اسلام مئین وو. دَ اسلام تبلیغ یے کولو. او جهاد ته یے کول.

# حضرت شیخ اخی سراج رح

(وفات سنہ ۷۵۸ھ)

ددے نامور بزرگ پوره نوم قطب الولایت شیخ سراج الدین عثمان دے.
چه عام طور په "اخی سراج" نامه مشهور دے. دکمالاتو ظاهری او
باطنی جامع وو. او په عشق او محبت کښې ئے خپل نظیر نه لرلو. حضرت
شیخ عبدالحق دهلوی لیکی چه دده اصلی وطن بنګال وو. دلکهنوتی
نومے مقام اوسید ونکے وو. چه نن ورځ دغه مقام د "ګوړ" په نامه
مشهور دے. د "مرآة الاسرار" نومے کتاب دمؤلف داخیال دے چه دده
مشران اول په اودهه کښې اوسیدل. (داودهه نه مراد هغه علاقه ده
چه نن ورځ په اجودهیا او فیض آباد نومو نو یادیږی. او بیا دے ځائ
نه د بنګال لکهنوتی ته تلے وو. غالباً هم په دغه مناسبت د "لطائف اشرفی"
نومے کتاب مؤلف د دوئ د نوم سره "اودهی" لیکلے دے.

حضرت شیخ سراج الدین عثمان په ځلمی توب کښې د حضرت
شیخ نظام الدین اولیاء په مریدانو کښې شامل شوے وو. د هغوئ په
خدمت کښې به اوسیده او کله ناکله به د خدمت د مور او پلار د پاره
وطن ته تلو. او بیا به واپس راتللو. حضرت سلطان الاولیاء
به ور سره ډیره مهربانی کوله. مګر چونکه حضرت اخی سراج ظاهری
علمونه نه وو حاصل کړی. په دے وجه خلافت ئے ورته نه ورکولو ور ته
ئے اوفرمائیل چه د علم باطنی د پاره دمخکښې نه د علم ظاهری حاصل
کول ډیر ضروری دی. چنانچه هم د حضرت شیخ نظام اولیاء په
هدایت ئے د حضرت مولانا فخر الدین رازی نه سبق لوستل شروع
کړل. وړ بسے د مولانا رکن الدین نه ئے کافیه. مفصل په علم نحو کښې.

او قدوری او مجمع البحرین په علم فقه کښې اولوستل. دَ ظاهری علمونو نه چه فارغ شو نو حضرت نظام الدین اولیاء ورله دَ خلافت لیکلے شوے سند چه په هغې ئې خپل مهرهم لګولے وو ورکړلو. او خپل وطن بنګال (مشرقی پاکستان) ته دَ تللو اجازت ئې ورکړلو. لیکن دے دَ خپل پیر تر ژوندے پورې بلکه دَ هغوی دَ وفات (۷۲۵ھ) نه روستو تر ۷۲۸ھ پورې درے کاله نور هم په مقام دَ غیاث پور دهلی کښې پاتے شو. او بیائې دَ حضرت شیخ دَ وقف کړے شوے کتب خانے نه یو څو کتابونه تبرکات او جامے مبارکے دَ ځان سره واخیستلے او خپل وطن ته روان شو.

په اخبار الاخیار کښې ذکر دے. چه هر کله دَ حضرت نظام المشائخ په ژوند کښې دے ته خپل وطن ته دَ تللو اجازت ورکړے شو. نو په دغه موقع دے دا عرض پیش کړے وو. چه هلته په بنګال کښې یو ډیر لوئ متبحر عالم حضرت شیخ علاء الحق موجود دے. زما او دَ هغه ګذاره به څرنګه کیږی. د دے په جواب کښې حضرت نظام الدین اولیاء ورته اوفرمائیل. فکر مه کوه هغه به هم ستا مرید کیږی. چنانچه هم دغه شان کار او شو. څه وخت چه حضرت اخی سراج علیه الرحمة بنګال ته اورسیده. نو حضرت شیخ علاء الحق ئې مرید شو. او په دے طریقه سره سلسله عالیه چشتیه په بنګال کښې خوره شوه.

لکه چه مخکښې ورته اشاره شوے ده. دَ مملکت بنګال په خاوره دَ حضرت شیخ راجا بیابانی په معاصرینو بزرګانو کښې دَ ټولو نه زیات شهرت او اثر او رسوخ عثمان اخی سراج ته حاصل شوے وو. هم په بنګال کښې چشتیه سلسلے ته چه فروغ حاصل شوے وو. هغه هم دَ دوی په وجه وو. دَ سلطان المشائخ نظام الدین اولیاء په ټولو خلیفه ګانو کښې درے څلور بزرګان داسے تیر شوی دی. چه هم دَ هغوی په

په وجه سلسله نظامیه ته عروج حاصل شوے وو.

(الف) یو حضرت مخدوم نصیرالدین محمود چراغ دهلوی وو. چه د دوی نه سلسله صابریه نظامیه په خصوصیت سره د سرحد. پنجاب. گجرات راجپوتانه او دکن په علاقو کښ خوره شوے ده.

(ب) دویم حضرت مخدوم اخی سراج وو. چه د دوی نه سلسله سراجیه نظامیه په خصوصیت سره په صوبه بهار- بنگال. آسام کښ خوره شوے ده.

(ج) دریم سالار هن ینؒ وو. چه د دوی په ذریعه سلسله نظامیه د مملکت چین په علاقه کښ خوره شوے ده.

حضرت اخی سراج فطرتاً ډیر ذهین او دانشمند وو. د حضرت شیخ نصیرالدین چراغ دهلویؒ نه روستو د دوی نوم زیات مشهور دے. د خپل پیر نظام الدین اولیاء د هدایت مطابق چه خپل وطن ته راغے. نو په کوړ (لکهنوتی) کښ یے قیام اوفرمائیلو. او د دین اسلام د اشاعت د پاره یے خپله ټوله زندګی وقف کړله. او ډیر زر د حقیقت او معرفت د طالبانو مرکز اوګرځیده. د بنګال په زمکه تر دغه زمانے پورے د سلسله سهروردیه اثر وو. او لکه چه مخکښ ذکر اوشو. د دوی په وجه سلسله عالیه چشتیه طرفته خلق رامات شول. په بنګال کښ د دوی د مریدانو او خلیفه ګانو شمیره ډیره زیاته ده. چه په هغوی کښ حضرت شیخ علاء الحق د پنډوه زیات مشهور دے حضرت اخی سراج علیه الرحمة په ۷۵۸ھ کښ وفات شو. مزار مبارک یے د کوړ په علاقه کښ په سعدالله پور نومے مقام کښ دے. علیه الرحمة والغفران.

---

# حضرت شیخ علاءُالحق علیه الرحمة

دے نامور بزرګ پوره نوم شیخ علاء الحق والدین بن اسد خاںؒ لاهوری
الی دے. مشران یې دَ غیاث الدین تغلق په حکومت کښې دَ وزارت په
عهده باندے ممتاز وو. اوهم دَ دغه غیاث الدین تغلق په زمانه کښې دَ دوی
اندان دَ بنګال ګوړ نومے مرکزی مقام ته راغلے وو. او تر ډیرے زمانے پورے په
حکومت کښې یې لاس وهلو. دَ ده ځوی دَ لکهنوتی دَ بادشاه سکندر شاه په
حکومت کښې په یوه لویه عهده باندے سرفراز وو. دَ حضرت شیخ علاءُالحق
سلسله دَ نسب حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه ته رسیدله. یعنے په
قام پښتون وو. دے په سلسله عالیه سهروردیه کښې دَ حضرت شیخ سلیمان
مهوی مرید وو. چه حضرت سلیمان دَ حضرت شیخ تقی الدین احمد دمشقی
مرید وو. او هغه دَ حضرت شیخ المشائخ شهاب الدین سهروردی ممتاز مرید
او خلیفه وو. په ابتداء کښې حضرت شیخ علاء الحق دَ سلسله عالیه سهروردیه
پیر طریقت وو. مګر چه هر کله په ۷۲۸ هـ کښې حضرت عثمان اخی سراج
بنګال ته راغے. نو دَ هغوی سره یې تعلق پیدا شو. او په سلسله چشتیه
کښې یې چه دَ هغوی نه هم خلافت حاصل کړلو. نو بیا یې خپلو مریدانو
ته دَ سلسله چشتیه نظامیه بیعت هم ورکولو.

حضرت شیخ علاء الحق دَ بنګال دَ یو بل مشهور پیر طریقت حضرت
شیخ بدر عالم زاهدی خوریے وو. او دَ خواجه فخر الدین بدر زاهدی
مشرۍ لور بی بی په ده واده وه. او کشرۍ لور بی بی یې دَ شیخ نظام الدین
اولیاء دَ رور شیخ جمال الدین بدایونی په ځوی شیخ اسماعیل بدایونی
واده وه. په دغه اعتبار دَ حضرت شیخ المشائخ نظام الدین اولیاء سره یې

ددے رشته داریٔ قرابت هم لرلو۔

دَ حضرت شیخ علاء الحق هغه مریدان چه په سلسله سهرورديه کښې یٔے خلافت حاصل کړے وو۔ په هغویٔ کښې مخدوم سید احمد چرم پوش تیغ برهنه (چه مزار یٔے په محله انبیر بهار شریف کښې دے۔) او مخدوم شاه حسین ډهکړپوش (چه مزار یٔے په موضع یٔے پورینه کښې دے) نوموِنه دَ یاد ولو دے۔ او کومو مریدانو ته چه یٔے په سلسله چشتیه کښې خلافت ورکړے وو۔ په هغویٔ کښې دَ حضرت نور قطب عالم۔ او مخدوم سید اشرف جهانګیر سمناني نوموِنه دَ یاد ولودی۔

په دارالحکومت ګوړ کښې دَ هرے طبقے په خلقو باندے دَ حضرت شیخ علاء الحق اثر وو۔ او ډیر لویه لنګرخانه یٔے وه۔ چه دَ هغے بے حد او حساب اخراجاتو ته پخپله بادشاه او امیران حیرانیدل۔ دَ شک او حسد به یٔے پرے کولو۔ بادشاه به اکثر دا خبره کوله۔ چه څما خزانه دَ شیخ دَ والد ماجد سره ده۔ هغه یٔے ورله ورکوی۔ او حضرت شیخ علاء الحق یٔے خرخ کوی۔ چنانچه یو ځل دَ بادشاه امیرانو او وزیرانو بادشاه ته لمسون اوکړ چه دَ شیخ علاء الحق ځویٔ چه په حکومت کښې په لویه عهده باندے دے۔ هغه دَ شاهي خزانے نه په پټه دارو پئ وباسی او خپل پلار له یٔے ورکوی کنه دَ شیخ علاء الحق سره دادومره بے شمیره دولت آخر دَ کومے نه راځی۔ بادشاه دغه لمسون اومنلو او حضرت شیخ یٔے دَ ګوړ نه جلاوطن کړلو۔ حضرت شیخ دَ لکهنوتی نه سونارګاوُں (ډهاکے) ته راغے او دوه کاله یٔے دلته تیر کړل۔ چه سونارګاوُں ته راغے نو خپل خادم ته یٔے حکم اوکړ چه په لکهنوتیٔ کښې دَ لنګر کوم اخراجات وو۔ دلته دَ هغے نه یو په دوه زیات خرخ کوه۔ چنانچه یو ځل بیا ټول خلق حیران وو۔ چه دا دومره بے دریغه اخراجات چه په دومره عظیم الشان لنګر باندے دویٔ کوی

۔ادکوم ځائ نه راځئ۔ په سونارګاؤں کښې د دوه کاله تیرولو نه روستو واپس کور ته ئے تشریف یوړلو۔ او بیا په آخر عمر کښې "پنډوه" ته لاړلو۔ او بیا په سنه ۷۸۲ھ کښې یا د اخبار الاخیار په روایت په سنه ۸۰۰ھ کښې ئے انتقال اوفرمایه :-

مزار مبارک ئے په "پنډوه" کښې دے.

علیه الرحمة والغفران

---

# حضرت مخدوم جهانیان جهان گشت

ولادت: ———— اُوچ بهاولپور سنه ۷۰۷ھ

وفات: ———— " " " سنه ۷۸۵ھ

دَ حضرت مخدوم جهانیان جهان گشت پوره نوم داسے دے. حضرت سید، میر جلال الدین حسین مخدوم جهانیان. جهان گشت بخاری علیه الرحمة دے په ۲۵، تاریخ دَ شوال المکرم سنه ۷۰۷ھ په مقام دَ اوچ ریاست بهاولپور کښ دَ حضرت شیخ احمد کبیر ابن سید جلال الدین حسن الملقب په میر سرخ بخاری علیه الرحمة په کور کښ پیدا شوے دے. دَ دوی کوټی والی نه دَ بزرګی او کرامت نخښے او علامے دَ دوی په تندی کښ ځلیدے. چه هر کله دَ اوه کالو په عمر شو. نو خپل والد ماجد روان کړ حضرت شیخ جمال خندان روله یې بوتللو چه دَ علم دین درس ترینه حاصل کړی. د لته دَ ابتدائی کتابونو لوستلو نه روستو ملتان ته لاړو. او په هغه وخت چه په ملتان کښ کوم مشاهیر عالمان وو. دَ هغوئ نه او دَ حضرت شیخ رکن الدین رکن عالم نه یې دَ علوم ظاهری تکمیل اوکړلو. او بیا یې دَ خپل والد ماجد نه او دَ خپل تره حضرت شیخ صدر الدین محمد غوث کبیر نه په سلسله سهروردیه کښ بیعت کړے وو. او ورپسے روستو یې دَ حضرت شیخ رکن الدین نه خرقه دَ خلافت حاصله کړے وه. دَ دوئ دَ نوم سره " مخدوم جهانیان جهان گشت دوه لقبو نه غبرګ لیکلے شی. په دے کښ مخدوم جهانیان لقب ورله خپل پیر رکن الدین ملتانی ورکړے دے. او دویم لقب " جهان گشت" دَ دوئ دَ نوم سره په دے مناسبت لیکلے شی. چه دَ کتاب اخبار الاخیار دَ روایت مطابق دَ ټولے دنیا سفر او سیاحت یې کړے دے. او دَ بے شمیره اولیاؤ نه یې نعمت او

اوبرکت مونده لے دے.

په تاریخ فرشته جلد ۲ صفحه ۴۱۵ کښې د حضرت مخدوم جهانیانؒ د پیر طریقت شیخ ابوالفتح رکن الدین نه داروایت نقل شوے دے" چه څه وخت سید جلال الدین بخاری قدس سره د علوم ظاهری د تعلیم نه فارغه شو. او په علوم طریقت کښې یې هم ابتدائی دسترس حاصل کړو. نو د دنیا په سیاحت روان شو. د تاریخ فرشته یو بیان داهم دے چه حضرت مخدوم دولس ځله د ټولے دنیا سیاحت کړے دے او په سنه ۷۴۲ھ کښې واپس راغلے او په اوچ کښې مقیم شوے وو.

هر کله چه د حضرت مخدوم د سیاحت په حقله د مختلفو تذکرو بیانونو کښې ډیر زیات اضطراب دے. او په عام نظر داتړینه نه معلومیږی چه دوی څو ځله په سفر تلی وو. او په کومه زمانه کښې تلی وو. په کومه زمانه په سفر کښې وو. په کومه زمانه په ملتان کښې وو. په دے وجه په اختصار سره څه لږ ډیر بحث پرے دلته کول شی.

د حضرت شیخ ابوالفتح رکن الدین د پورتنی بیان نه دا لاندینی نتیجے مونږ ته په لاس راځی.

| ۱ | یو لا دا چه حضرت شیخ رکن الدین عالم په سنه ۷۳۵ھ کښې وفات شوے دے. او هر کله چه مخدوم جهانیان د هغوی |
|---|---|

په ژوندگی کښې د دنیا په سیاحت روان شوے وو. نو مطلب یې دا کیږی چه دے به د سنه ۷۳۳ھ / ۷۳۴ په شاوخوا کښې د هغوی نه رخصت شوے وو.

| ۲ | بله دا چه هر کله مخدوم جهانیان په سنه ۷۰۷ھ کښې پیدا شوے وو. نو که په سنه ۷۳۳ھ / ۷۳۴ د دنیا په سیاحت د دوی |
|---|---|

روانیدل اوګڼو. نو دا یې چه د ۲۶ یا ۲۷ کالو په عمر د

دَملتان نه په سفر روان شوے وو۔

نکه چه مخکښې ورته اشاره شوے ده۔ دَ کتاب سیر العارفین،
۳ ـــ تاریخ فرشته۔ او الدر المنظوم دریے واړو دَ روایت مطابق
حضرت سید احمد کبیر د اخپل نامور ځوئ د اوه کالو په عمر په
سنه ۷۱۴ھ کښې دَ شیخ جمال خندان رو رسره سبق ته کښینولے
وو۔ هر کله چه دَ هغے زمانے دَ طریقه درس مطابق دَ اتلسو کالو
ترعمره پورے سرہ دَ ټولو علمونو د تحصیل نه فارغ کیده۔ نو
وایه چه حضرت مخدوم به په سنه ۷۲۵ھ کښې دَ دینی علمونو د تحصیل
نه فارغه شوے وو۔ وروستو نو راتله کاله به ئے دَ خپل پلار سید احمد
کبیر۔ خپل تره سید صدر الدین محمد غوث کبیر۔ او حضرت ابو الفتح
رکن الدین رکن عالم نه په سلسله سهروردیه کښې سبقونه اخیستی
وو۔ خرقه دَ خلافت به ئے حاصله کړے وه۔ او په سنه ۷۳۳ھ / ۷۳۴ کښې به
دَ علوم ظاهری او باطنی دَ نورو فیوضاتو حاصلولو دَ پاره په سفر
روان شوے وو۔

دَ پورته بیان نه دا معلومه شوه چه بهرحال دَ دوئ اولنے
سفر دَ سنه ۷۳۵ھ نه مخکښې او دَ سنه ۷۳۳ھ / ۷۳۴ په زمانه کښې وو۔ په دے
سفر کښې دَ مفتی غلام سرور لاهوری دَ قول مطابق (خزینة
الاصفیاء جلد ۱ ص ۸۵) دَ مصر شام۔ عراق عرب، عراق عجم،
بلخ او خراسان سفرونه ئے اوکړل۔ دَ ګڼړ ولیو مشایخو نه ئے
فیوضات حاصل کړل۔ ډیر حجونه ئے اوکزارل۔ چه په هغے کښې شپږ
حج اکبره وو۔ پوره اوه کاله ئے په مکه مکرمه کښې او دوه کاله ئے
په مدینه منوره کښې تیر کړل۔ او دَ حضرت مخدوم جهانګیر اشرف
سمنانی دَ قول مطابق (لطائف اشرفی جلد ۱ ص ۳۹)

" په دنیا کښې نور هیر داسې اولیاء هم تیر شوي دي چه هغوئ د معارف او حقائقو په تالاش کښې سیاحتونه کړي دي. لیکن د مخدوم جهانیان همره سیاحت هیچا هم نه دې کړې. دوئ د ټول ربع مسکون سیاحت کړې وو. او شاید داسې کوم یو فقیر به په کښې پاتې شوی وي. چه دوئ ترینه پوره فائده نه وه حاصله کړې.

ظاهره ده چه د خزینة الاصفیاء او لطائف اشرفي دا بیانونه د حضرت مخدوم د هغه ټولو سیاحتونو په حقله دي چه حضرت مخدوم په ټول ژوند کښې کړي دي. دلته سوال دا دې چه حضرت مخدوم چه په سنه ۷۳۳ھ / ۷۳۴ھ کښې په اول ځل په سفر کښې یې اوه کاله په مکه مکرمه او دوه کاله په مدینه کښې تیر کړي وو. نو چه نور څومره کلونه یې د نورو اسلامي ملکونو سفر کړې وو. او د دې اولني سفر نه واپس بهاولپور اوچ ته راغلې وو. په دې خبرو د پوهیدلو د پاره دا لاندې یو څه تاریخي حوالې په نظر کښې اوساتو.

(۱) د "خزانه جلالي" نومې کتاب روایت مطابق په سنه ۷۴۸ھ کښې حضرت مخدوم جهانیان د مملکت فارس (ایران) په شوکاره نومې ښهر کښې د حضرت شیخ شرف الدین محمود په خدمت کښې حاضر شوې وو.

(۲) د پښتنو مؤرخانو د روایت مطابق په سنه ۷۴۹ھ کښې د کوه سلیمان په "شهر علي" نومې مقام کښې وو. او د غلته حضرت محمد بختیار المعروف په خواجه یحي کبیر غورغشتي ترینه بیعت کړې وو.

په دې پورتنو روایتونو د غور کولو نه معلومیږي چه حضرت مخدوم جهانیان چه په اول ځل په سنه ۷۳۳ھ کښې په سفر تلې وو. نو په سنه ۷۵۰ھ کښې واپس اوچ بهاولپور ته رارسیدلې وو. او په سنه ۷۴۸ھ کښې د شوکاره او په سنه ۷۴۹ھ کښې د شهر علي قیام یې د سفر د واپسۍ په دوران

دوران کښې وو۔

## دویم سفر

دَ مخدوم جهانیان دَ دویم وار سفر او سیاحت په سلسله کښې په روایتونو کښې فرق دے۔ او دَ هغې په وجه دا معلول به غواړی چه دے په دویم وار په کوم سَن کښې روان شوے وو۔ او بیا کله را واپس شوے وو۔ دَ غه مختلف روایتونه دا دی۔

(۱) دَ کتاب الدر المنظوم (ص۲۵۵) د روایت مطابق حضرت مخدوم جهانیان فرمائی:۔ سلطان محمد تغلق ماله دَ شیخ الاسلام عهده راکړه۔ او څلویښت خانقاهونه یې ځما په تحویل کښې راکړل۔ شیخ رکن الدین ابو الفتح راته په خوب کښې حضور شو۔ او یې فرمائیل چه ته ځه له لاړ شه غرق به شې۔ چه سحر شو دَ حضرت شیخ دَ درګاه امام راته او فرمائیل چه فوراً روانیږه څه تیاری کوه۔ شیخ تا ته اشاره کړے ده۔ چنانچه ما دَ خپل والدنه رخصت واخیست روان شوم" په اخبار الاخیار (ص۱۴۲) کښې هم دا لیکی چه محمد تغلق ورله دَ خانقاهونو سند ورکړے وو۔

ددے روایت نه موږ دے نتیجے ته رسیږو چه هر کله په سنه ۷۵۰ھ کښې مخدوم جهانیان واپس اوچ بهاولپور ته را رسیدلے وو۔ نو دَ سنه ۷۵۰ھ په نیټه به سلطان محمد تغلق ورله دَ شیخ الاسلام عهده ورکړے وه۔ او هم په دغه سنه ۷۵۱ھ کښې به سمدستی بیا دوباره دَ حج په سفر روان شوے وو۔ دَ پورتنی روایت تسلیم کولو په صورت کښې په سنه ۷۵۱ھ کښې دَ مخدوم جهانیان په دویم سفر روانیدل به ځا منو څکه چه بیا د سنه ۷۵۲ھ په ابتدا کښې یعنې په ۲۱، محرم سنه ۷۵۲ھ کښې خو سلطان محمد تغلق دَ وادئ سندھ په ټهټه نومے مقام کښې په حق رسیدلے وو۔

۲ | دَ مخدوم جهانیان په حقله دَ " الدر المنظوم " دَ پورتنی حوالے

په مقابله کښې د اکبر شاه خان سلارزی نجیب آبادی د کتاب "آئینه حقیقت نما" بیان څه بل شان دے. هغه لیکی چه:-

هرکله د سلطان محمد تغلق د وفات (۲۱ محرم ۷۵۲ھ) نه روستو په ۲۴ محرم ۷۵۲ھ فیروز شاه تغلق بادشاه شو. نو مخدوم جهانیان له یې د شیخ الاسلام عهده ورکړه. دد ے روایت نه موږ ته دا نتیجه په لاس راځی چه حضرت مخدوم له د "شیخ الاسلام" عهده محمد تغلق نه وه ورکړے بلکه فیروز تغلق ورکړے وه. او دے خبرے ته تقویت دد ے نه هم رسیږی. چه د آئینه حقیقت نما (جلد ۱ ص ۵۶۲) د بیان مطابق فیروز شاه تغلق په حقیقت کښې د شیخ نصیرالدین چراغ دهلوی په مرسته او امداد بادشاه شوے وو. او بل طرف ته حضرت مخدوم جهانیان چه د حج بیت الله نه واپس راغلے وو. نو د حضرت امام عبدالله یافعی شیخ مکه مکرمه د هدایت مطابق د حضرت شیخ نصیرالدین چراغ دهلوی مرید شوے وو. هرکله چه سلطان فیروز تغلق د سلطان محمد تغلق د زمانے ټول حکومتی افسران مشائخ او علماء بدلول. او نور یې د نوی سرنه مقررول. نو ښایی ته ممکنه ده. چه په دغه سلسله کښې د شیخ نصیرالدین چراغ دهلوی د مریدی او خلیفه والی په وجه ئے حضرت مخدوم جهانیان نه د سیوستان د خانقاه محمدی او نورو ځلوېښتو خانقاهونو انتظام حواله کړے وو. مګر د خپل پیر طریقت حضرت شیخ ابوالفتح رکن الدین له طرفه چه په خوب کښې ورته کوم حکم شوے وو نو ده ځے په بناء په ۷۵۲ھ / ۷۵۳ کښې به حضرت مخدوم د حج په سفر روان شوی وو. که دا روایت او توجیه او منلے شی. نو بیا په دوئیم سفر کښې د حضرت مخدوم د روانیدلو کال ۷۵۱ھ نه شی کیدلے. بلکه ۷۵۲ھ / ۷۵۳ به یې ګڼړلو.

دَ مختلفو تذکرو په بیانونو چه غور او کړو نو دا سے معلومیږی چه حضرت مخدوم دَ دے دویم سیاحت نه دَ سنه ۷۵۷ھ نه روستو او دَ سنه ۷۶۰ھ نه وړاندے راغلے دے. په سنه ۷۵۷ کښی دَ دهٔ پیر طریقت حضرت نصیر الدین چراغ وفات شوے دے. او دَ سنه ۷۶ ھ نه مخکښی بهاولپور ته راتلل ئے ځکه یقینی دی. چه دَ "مناقب الولایت" نومے کتاب دَ روایت مطابق په ۲۰ شعبان سنه ۷۶۰ھ دَ حضرت مخدوم جهانیان کشرے رور حضرت سید صدر الدین محمد راجو قتال پیدا شوے دے. او دَ کتاب "سبع سنابل" (قلمی نسخه ص ۱۸ او مطبوعه مطبع کانپور ص ۷۲) دَ بیان مطابق په کوم کال (سنه ۷۶ھ) چه سید راجو قتال پیدا شوے دے. هم په دغه کال دَ دغه والد ماجد سید احمد کبیر وفات شوے دے. او بله دا چه په دغه موقعه حضرت مخدوم جهانیان په اُوچ کښی موجود وو. او بیا په کتاب سبع سنابل کښی چه کوم نور تفصیل بیان شوید ے دَ هغے نه هم معلومیږی چه حضرت مخدوم جهانیان په سنه ۷۵۸ھ کښی واپس بهاولپور ته راغلے وو.

که مونږ دا روایتونه او دے دا پور تنئ توجیه او منو نو وئیلے شو چه دَ مخدوم جهانیان دَ دے دویم سفر زمانه زیات نه زیات خاور یا پنځه کاله وو.

### دریم سفر

په سنه ۷۷۳ھ کښی دَ مخدوم جهانیان په اوچ کښی موجودگی دَ پور ته بیانونو نه ثابته شوه. په دے سلسله کښی په آئینه حقیقت نما (ص ۵۶۴) کښی دَ شمس سراج عفیف یو تفصیلی بیان درج شوید ے. چه هر کله په سنه ۷۶۶ ھ کښی دَ ټهټه او سند هـ په دوو حکمرانانو جام او بانبیهه باندے ملک فیروز شاه تغلق لښکر کشی او کړه. نو ټهټه دَ حکمران "جام" په درخواست باندے حضرت مخدوم جهانیان

دَ "اوچ" نه تهټه تاراغے. په مخه دَ بادشاه لښکر ته ورغے. هلته ډير په
قدر او عزت ئے استقبال اوشو. دَ تهټه خلق چه دَ دوئ دَ تشريف راوړلو
نه خبر شول هغوئ هم ډير خوشحال شول چه اوس به خدائ خير کړی.
چنانچه حضرت مخدوم جهانيان دَ مسلمانانو دَ دے دواړو لښکرو ترمنځه
شو صلح ئے راواستله دَ پاره دَ دے چه دواړه طرف ته مسلمانان دی. چه
دَ مسلمانانو دَ لاس نه دَ مسلمانان وينے اونه بهيږی.

دَ دے پورتنو روايتونو له مخه دَ سنه ۷۶۰ هـ نه تر سنه ۷۶۶ هـ پورے
په اوچ کښ دَ دوئ موجود والے معلوميږی او څومره سره څخه داسے
روايت نشته دے چه په دغه منځ کښ دوئ دَ حج بيت الله دَ پاره تشريف
وړے وو. که نه. دَ دے نه علاوه يو دوه نور روايتونه داسے دی. چه
دَ هغے نه دَ دوئ دَ دريم سفر او سياحت پته معلوميږی.

الف — په دے کښ يو روايت دَ تاريخ فرشته (جلد ۲ صفحه ۴۱۶) دے. چه
حضرت مخدوم جهانيان په سنه ۷۷۲ هـ کښ دَ حج دَ سفر نه او سياحت
نه راواپس شوے دے.

ب — اودويم روايت دَ تاريخ صولت افغانی دے. چه حضرت خواجه
محمد کبير غورغشتی دَ خپل پير طريقت حضرت مخدوم جهانيان
عليه الرحمة په ملګرتيا کښ په سنه ۷۷۰ هـ کښ حج ګذارلے وو. او دَ دے حج
ګذارلو نه مخکښ دوئ دَ خراسان بخارا. عراق سياحت کړے وو. او دغه
زمانے دَ مشاهير و اولياء الله سره ئے صحبتونه شوی وو.

دَ دے پورتنو دواړو روايتونو نه موږ دا نتيجه اخيستلے شو. چه
حضرت مخدوم به دا دريم سفر دَ سنه ۷۶۷ هـ په شا وخوا کښ کړے وی.
او دَ پنځه کاله سياحت نه پس به په سنه ۷۷۲ هـ کښ واپس بهاولپور ته
راغلے وی.

دَ سنہ ۷۷۲ ھ نه تر سنہ ۸۰۰ ھ پورے په دے منځ زمانه کښې دَ حضرت مخدوم دَ بل سفر او سیاحت څه ذکر څما دَ نظر نه نه دے تیر شوے. نور تحقیق په غواړی البته دَ سنہ ۸۰۰ ھ نه تر سنہ ۸۰۴ ھ پورے په اوچ کښې دَ دوئ موجود والے دَ یوے بلے واقعے نه ضمناً معلومیږی. او هغه دا ده. چه هر کله په اختلاف دَ روایاتو سره په سنہ ۸۰۰ ھ یا سنہ ۷۸۳ ھ یا سنہ ۷۸۴ ھ کښې حضرت شیخ علاء الحق قطب بنګال علیه الرحمة وفات کیده. نو هغه دا وصیت کړے وو. چه څما دَ جنازے دَ امامتی مونځ دے دَ مخدوم جهانیان نه په غیر بل څوک نه ګذاری. دَ حضرت شیخ مریدان دَ دے خبرے په آوریدو حیران شول. چه څه وخت شیخ علاء الحق وفات شو. جنازه ئے دَ مانځه دَ پاره په میدان کښې کښیښودل شوه. نو چه څه ګوری حضرت مخدوم جهانیان دَ صفونو په مخکښې ولاړ وو. او دَ جنازے امامتی ئے ادا کړه. بیا حضرت مخدوم دَ دغے نذر وستو څه ورځے نور هم په بنډوه نومے مقام کښې پاتے شو. ګڼ خلق ئے مریدان شول. دَ حضرت "نور قطب عالم" تربیت ئے او فرمائیلو او هغه ئے دَ حضرت شیخ علاء الحق په ګدئ کښینولو. نو بیا واپس اوچ ته راغے.

بهرحال هر کله چه حضرت مخدوم جهانیان په اول ځل دَ دنیا په سیاحت روان شو. او دَ حج په موقع بیت الله ته اورسیده. نو هلته په مکه مکرمه کښې ئے دَ حضرت شیخ عفیف الدین عبدالله عطروی نه بیعت اوکړو. ورپسے اووه کاله نور په مکه مکرمه کښې ئے هغوئ په خدمت کښې تیر کړل. دَ سلسله سهروردیه دَ مشر بزرګ حضرت شهاب الدین سهروردی مشهور کتاب عوارف المعارف ئے دَ هغوئ نه په درس اولوستلو. دَ هغوی نه ئے هم خرقه دَ خلافت حاصله کړه. او بیا هم دَ دے شیخ علیه الرحمة دَ ارشاد مطابق ګازرون ته لاړ. او هلته ئے دَ حضرت شیخ امین الدین

کما ذرونی نه فیض اوموندلو او خرقه دَ خلافت او تبرکات یے حاصل کړل. دَ هغوئ په خدمت کښ څه موده تیرولو نه پس بیا روان شول. او دَ مصر. شام. عراق عرب. عراق عجم. بحرین. قطیف. یمن او عدن بصره او کوفه. دمشق او لبنان. مدائن. بلخ. بخارا. سمرقند. ایران شیراز. تبریز. نیشاپور. غزنی. کابل. کوه سلیمان. خراسان. دهلی پلیبنور او بنګال وغیره ملکونو سفریے اوکړ. او په دغه منځ کښ شپږ ځله حج یے هم اوکذارلو. او هم دا اولنے سفر وو. چه دے نه په سنه ۷۵۰ھ کښ ملتان ته راغلے وو. لکه چه مخکښ ورته ضمناً اشاره شویده. روایت دا چه په دے سفرکښ په آخری ځل دَ حج دَ ګذارلو په موقع دَ بیت الله نه واپس کیده. نو هلته په مکه مکرمه کښ دَ حضرت شیخ عبدالله یافعی نه هم فیض حاصل کړے وو. او بیا هم دَ دے حضرت امام یافعی دَ ارشاد مطابق مخدوم جهانیان چه ملتان ته واپس راورسیدلو نو بیا دهلی ته لاړ او هلته یے دَ حضرت خواجه نصیرالدین چراغ دهلوی نه په سلسله چشتیه کښ بیعت کړے وو. او خرقه دَ خلافت ورنه حاصل کړے وه. شاید هم دَ دے تعلق په بناء چه کله خواجه نصیرالدین چراغ په کوشش سره په ۲۴ محرم سنه ۷۵۲ھ کښ فیروز تغلق بادشاه شو. نو هغه دَ مولانا رکن الدین په ځائ حضرت مخدوم جهانیان ته دَ شیخ الاسلام او صدرالصدور عهده ورکړے وه.

## کرامتونه

حضرت سید اشرف جهانګیر سمنانی په خپلو مکتوباتو کښ لیکی چه څومره خوارق او کرامتونه دَ حضرت مخدوم جهانیان نه صادر شوی دی. په متاخرینو بزرګانو کښ دَ بل یو بزرګ هم نه دی نصیب شوی. دَ تبرک دَ پاره دَ دوئ دَ کرامت یو څو واقعات دلته درج کوو:-

۱ — دَ دوئ دَ کرامت یوه مشهوره واقعه دا ده. چه وائی د حضرت شیخ علاء الحق الملقب په "قطب بنګالی" او "شیخ علائی" دَ جنازے په وخت کښې پنځه ولا ته دَ دوئ رسیدل وو. دَ سلوک او تصوف په اصطلاح کښې دا یوه مرتبه ده. چه دیته "طے مکان" او "طے زمان" وئیلے شی. کوم بزرګ چه دَ ابدالو او وروستو دَ قطب په مرتبه وی. هغه ته دغه دَ "طے مکان" مرتبه حاصله وی. او دَ سترګو په رپ کښې دَ دنیا دَ یو سر نه بل سر ته رسیدلے شی. دَ مخدوم جهانیان دَ کرامت دا واقعه چه دَ حضرت علاء الحق دَ وفات نه پس عین دَ هغه دَ جنازے دَ مونځ ګذارلو په موقع مخدوم جهانیان دَ اُوچ بهاولپور نه په یوه لحظه ساعت کښې پنډوه ته رسیدلے وو. دا دَ "طے مکان" مرتبه ده. چه هر یو قطب او هر یو ابدال ته حاصله وی. دَ دے مرتبے مطلب دا وی چه دَ زمکے تنابونه او فاصله رالنډه شی. دَ حضرت شیخ عبدالقادر جیلانی قدس سره دَ "اسبوع شریف" په دے جمله کښې "هُوَ الْقَرِیبُ الَّذِی یَمحُو جِهاتِ القُربِ البعد عن عیون العارفین" کښې هم دے ته اشاره دے. په دے پسے چه دَ "طے زمان" کومه مرتبه ده. دَ هغے یو مثال به روستو دَ حضرت شیخ عبدالغفور نقشبندی پشاوری په تذکره کښې راشی.

۲ — حضرت مخدوم سیّد اشرف جهانګیر سمنانی لیکی: چه حضرت مخدوم جهانیان دَ حضرت شیخ عبدالقادر جیلانی سره بے دریغه عقیدت لرلو. په دے سلسله کښې روایت دے. چه یوه ورځ حضرت مخدوم جهانیان پخپل خانقاه کښې ناست وو. چه ناسا په دَ او سنو په یوتهوپ باندے اورا ولګیده. لمبے یے وهلے. حضرت مخدوم جهانیان یوه چونډه کی خاوره راپورته کړله. په اوچت اواز یے دا الفاظ ولوستل. "یا شیخ محی الدین عبدالقادر جیلانی". او هغه چونډه کی خاوره یے دَ او طرف ته ګذار

کړله - ډګنډارلوسره سم هم په هغه ساعت فوراً هغه اوردا سے مړشو - لکه چه نوم نشان یې نه وو.

۳ روایت دے . چه یو ځل حضرت مخدوم جهانیان دَ اوچ په جامع مسجد کښ دَ ګنړو عالمانو او درویشانو سره ملګرتیا کښ معتکف وو. چه په دے منځ کښ د هغه وخت دَ اوُچ حاکم ددوئ زیارت له راغے . حاکم چه دَ مخدوم جهانیان نه کېرچاپېره دَ درویشانو دومره ګڼړه ولیده . نو په ډیرو درویشانو یې دیکه دهړکه اوکړله . اودَ جماعت نه یې اوکښل . دَ حضرت مخدوم جهانیان چه ورته فکر شو . نو حاکم ته یې اووئیل "اے بد بخته ته لیونے شوے یې چه درویشانو ته تکلیف ورکوے". چنانچه دَ مخدوم جهانیان دَ خولے نه دا الفاظ وتلے وو . چه سمدستی حاکم لیونے شو - جامے یې اوشلولے . او په لارو کوڅو کښ زغلیده . ډیر په مشکله خلقو راقابو کړلو - او په پښو کښ یې ورته زنځیرونه واچول . دَ دغه حاکم بوډا پلار حضرت مخدوم په خدمت کښ حاضر شو - معافی یې اوغوښتله . حضرت مخدوم پرے رحم اوفرمایه - ورته یې اووئیل چه لاړشه . ځوئ له دے غسل ورکړه . نو جامے ورته واغونده . بیا یې دَ حضرت شیخ جمال خندان روزیارت له بوځه . چه زیارت اوکذاری . بیا یې دلته راوله . دَ حاکم پلار لاړ - چه څرنګ ورته هدایت شوے وو . دَ هغے تعمیل یې اوکړ - اوچه هغه لیونے یې دَ حضرت مخدوم جهانیان مخے له راووست - په هغے دم روغ شو - بیا دَ حضرت مخدوم مرید شو - اودَ کمال درجے ته اورسیده.

## مبارک اخلاق

حضرت مخدوم جهانیان به دَ غیر شرعی رسمونو څخه ډیر پرهیز کولو - تردے حده چه په غیر شرعی تعظیم لکه پښے ښکلول یا پښو ته را ښکته کیدلو به خفه کیدلو او داخبرے به یې قطعاً نه خوښولے - که څوک

مرید به راغے. او دَ عزت په خاطر به یَے دَ دوئ دَ پښتو ښکلو لو کوشش کولو نو هغه به یَے پښتو ته راښکته کیدلو ته نه پریښودلو. او نه به یَے کوم مرید ته دا اجازت ورکولو چه هغه راشی - او دوئ په پښتو کی سرکیږدی.

یو مرید د دوئ په تعریف کښ یو نظم لیکلے وو. په هغے کښ دَ حضرت مخدوم دَ نامے سره "سید السادات" مه وایئے بلکه "گدائے عالم" راته وایئے. که فکر اوکړو د دوئ دا قول په ډیره تواضع دلالت کوی.

دَ دوی په طبیعت کښ ډیره زیاته خاکساری او کسر نفسی وه. د دے خبرے مثال دا دے چه یو ځل خواجه شیخ شرف الدین احمد منیری بهاری سهروردی خپلے پنړے دوئ ته راولیږلے. غرض یَے دا وو. چه زه ستاسو دَ پښتو مبارکو دَ پنړو په مثال یم. دَ هغے په جواب کښ حضرت مخدوم ورته خپل پټکے اولیږلو. مطلب یَے دا وو. چه ته ځما دَ پاره دَ "سرتاج" یَے.

حضرت مخدوم به دَ سماع (قوالی) آوریدلو نه ډیر زیات پرهیز کولو فرمائیل به یَے په سماع کښ اختلاف دے. لیکن دا هغه سړی دَ پاره مباح کیدلے شی. چه دَ قوالئ اوریدلو اهلیت لری. (د لته دا یاد لرل پکار دی چه دَ لفظ سماع لغوی معنی ده آوریدل. او په اصطلاح کښ صرف هغه قوالئ ته سماع وائی. چه خوش آوازئ سره حمد او نعت اولوسے شی. دَ زمانے په تیریدلو عارفانه او دَ صوفیانو کلام چه هغه فحش نه وی. دَ هغے آوریدل هم په دے تعریف کښ شامل کړے شول. لیکن دَ درے شرطونو دَ پابندئ سره چه قوالی کونکے به بےځله نه وی. ږی ځے هلک به نه وی. او ډ ونک ډ ونک یعنی ساز او سرود به ورسره نه وی. که دا څیزونه ورسره وی. نو بیا په اتفاق دَ ټولو علمانو سره دغه سماع او قوالی نا جائزه ده. دَ حضرت شیخ نظام الدین اولیاء په کتاب کښ راوړی دی.

چه یوه ورځ د حضرت شیخ نظام الدین اولیاء نه چا تپوس اوکړو. چه یاشیخ! فلانکے بزرګ خود قوالئ په وخت کښ ساز او سرود هم ورسره آوری. نو حضرت سلطان المشائخ اوفرمائیل. چه دا حرام کار دے او که بالفرض یو بزرګ حرام کار کوی نو د بزرګ په فعل هغه حرام کار نه حلالیږی. بلکه دا اسے وایه چه یو سړے ځان ته بزرګ هم وائی او خلاف شریعت کار هم کوی.)

د حضرت مخدوم جهانیان لوئ کار د دین اسلام تبلیغ او نشر و اشاعت وو. بے شمیره کفار او مشرکین د دوئ په مبارکو لاسو نو مسلمانان شوی او په ایمان مشرف شوی وو.

## (وفـــات)

د عامو تذکرو د روایت مطابق په ورځ د چارشنبے چه د غه د لوئ اختر ورځ هم وه. یعنے د ذالحجه لسم تاریخ وو. په ۷۸۵ھ کښ وفات شو. لیکن مفتی غلام سرور لاهوری په خپلو کتابو کښ یئے تاریخ وفات ۷۸۸ھ بیان کړے دے. او د وفات ماده د تاریخ یئے دا جمله لیکلے ده. (مخدوم زمان) ۷۸۸

مزار مبارک یئے په اوچ بهاولپور کښ ده. او مرجع د عام او خاص ده. اُوچ د یو مشهور تاریخی مقام نوم ده. چه په سابق ریاست بهاولپور کښ واقع ده. او د ملتان نومے ښهر نه جنوب مغرب طرف ته د (۷۰) میلو نو په فاصله کښے ده.

## (ملفوظات)

د دوئ ملفوظات چه د دوی مریدانو د کتاب په شکل کښ راجمع کړیدی د هغو د کتابونو نومونه دا دی. خزانه جلالی. سراج العدایه جامع العلوم. په دے کتابونو کښ د تصوف ټول حقائق او د علم اخلاق مسائل په ډیره ښکلے طریقه سره بیان شوی دی. چه د عامو مسلمانانو د روحانی مذهبی او اخلاقی اصلاح د پاره ډیر زیات فائده لامند کتابونه دی.

# خلیفه ګان

روایت دی چه دَ حضرت مخدوم جهانیان دَ مریدانو ټول تعداد یو لکه دوه او یا زره شپږ اتیا وو. چه دلته دَ دوئ دَ یو څو نامورو خلیفه ګانو نومونه لیکلے شی.

(۱) حضرت سید اشرف جهانګیر سمنانی، عراقی، متوفی ۲۷ محرم سنه ۸۰۸ھ.

(۲) حضرت سید صدرالدین محمد الملقب په راجو قتال چه دَ حضرت مخدوم جهانیان خپل ورور وو. او مزار مبارک ئے په دهلی کښې دی. لیکن په بل روایت دَ دوئ مزار هم په اوچ کښې دی. په ۱۲ جمادی الاخر سنه ۸۲۷ھ کښې وفات شوے وو.

(۳) حضرت سید علم الدین دَ ترمذی ساداتو دَ خاندان نه وو. اصلی وطن ئے قنوج وو. دَ مخدوم جهانیان مرید شو. جونپور ته لاړ. او هم هلته پاتے شو.

(۴) حضرت شیخ سراج الدین متوفی سنه ۸۲۰ھ دَ قرآن مجید حافظ وو. مخدوم جهانیان ډیر کلونه وړیے نمونځونه کذارلی وو. مزار مبارک ئے په کالپی کښې دے. ددے نه علاوه حضرت سید اشرف الدین مشهدی، سید علاء الدین حسینی سید محمود شیرازی، شیخ تاج الدین بهکری، مولانا عطاء الله، حضرت نور قطب عالم زاهدی او حضرت خواجه یحیي کبیر غورغشتی ئے هم مشهور خلیفه ګان وو. (دیحیي کبیر تذکره به راشی)

## روحانی اثار

لکه چه مخکښې ذکر او شو حضرت مخدوم جهانیان جهان ګشت دوه ځله دَ تمامی دنیا سیاحت کړے وو. او په دویم ځل سفر کښې ورسره خپل مشهور مرید خواجه یحیي کبیر غورغشتی هم ملګرے

وو۔ حضرت مخدوم چه ددے دویم ځل سیاحت په دوران کښې د "پښتو نخوا" په کوم کوم ځائے کښې گرځیدلے وو۔ او چرته چرته ئے چهلے او کښلے وے۔ عبادتونه او ریاضتونه ئے کړی وو۔ بیا هم ستو د هغه ځای مسلمانانو حضرت سید جلال الدین حسین مخدوم جهانیان بخاری د عبادت او ریاضت په دغه ځایونو باندے یادخو:-

(الف) خانقاهونه جوړ کړی دی۔

(ب) یا ئے پرے تسلی جوړ کړی دی۔

چه نن ورځے د عوامو پښتنو د بے علمئ، ناواقفتیا۔ او بے خبرئ په وجه د سید جلال الدین حسین بخاری د عبادت او ریاضت دغه ټول ځایونه د "دوی د زیارتونو" په نامه مشهور دی۔ بلکه د ډیر ساده نوب په وجه تر دے حده قیصے کوؤلے شی۔ چه حضرت سید جلال بخاری علیه الرحمة او دلته ځای په ښخ دی۔ لاحول ولاقوة الا بالله۔

چنانچه هم ددے بے خبرئ په وجه په سابق سرحد او قبائلی علاقو کښې ددے نمونے او ځایونه داسے موجود دی۔ چه هغے هر یو ته د سید جلال بخاری زیارت ویلے شی۔ د مثال په طور:-

(الف) د ریاست سوات په "ابوها" نومے مقام کښې د سید جلال بخاری زیارت۔ (ب) په ضلع مردان کښې د مرکزی مقام مردان او هوتی تر منځه د آثار قدیمه د پخوانی ډهیرئ د پاسه هدیره کښے د سید جلال بخاری زیارت

(ج) د ضلع پیښور په اتمانزئ کښې د تنګی چارسده سړک په غاړه د کلی جنوب طرفته د سید جلال بخاری زیارت۔

(د) په کرم ایجنسئ کښې د پوړتنئ کرم په علاقه کښې د سید جلال بخاری زیارت۔ سټول ددے نه علاوه په پښتونخوا کښې چه نور هر څومره زیارتونه د سید جلال بخاری زیارتونه نه دی۔ بلکه په

هغې کښې اکثرد حضرت مخدوم جهانی جهان ګښت آستانې دی. دعبادت زهد او رياضت چيله خانې او تکيه ګانې دی. او بعض داسې دی چه هغه دې مخدوم جهانيان په اولاد کښې د نور وسيدانو مزار ونه دی چه لفظ "جلال الدين" د هغوی د نومونو سره په طور د لقب ذکر شوې دې. او خبره دا غلطه ده. چه سيد جلال الدين بخاری او دلته خاې په شيخ شوې ده.

خبره دا ده چه لکه روستو به د مخدوم جهانيان د نامور خليفه حضرت خواجه يحيیٰ کبير غورغشتي په تذکره کښې هم پرې بحث راشي. هر کله چه په هغه زمانه د پښتونخوا د ټولو قبائيلو لوئ روحانی پيشوا هم دغه سيد جلال الدين حسين مخدوم جهانيان جهان ګښت وو. په دې وجه هغوئ د خپل نامور خليفه خواجه يحيیٰ کبير غورغشتي د خواهش مطابق د پښتنو د هر يو ټمن. پښنت او قبيلې سره چه په کومه کومه علاقه کښې ورځې او شپې تيرې کړې وې. په دې غرض چه د خدائ د دغه مخلوق ته امر معروف او د اسلام د نيکې لارې تبليغ او هدايت او کړی. او د شريعت او طريقت په فيوضاتو باندې عام او خاص سرفرازه کړی. نو په دغه وجه په هغه زمانه عامو او خاصو ټولو خلقو به د دوئ خانقاهونه خپلې آستانې ګڼړلې. چه روستو د زمانې په تيريدلو. او ناواقفتيا او کم علمئ په سبب د هغې نه زيارتونه جوړ شول. او خبره تر دې حده راورسيدله چه ټن وئيلې شي حضرت سيد جلال بخاری او دلته خاې په دفن دې.

که فکر او کړې شي. نو ننن هم په ټوله پښتونخوا کښې هر هغه ځائې متبرک ګڼړلې شي چه چرته کوم يو سپېره سړی ناسته کړې وی. مګر افسوسناک شکل يې دا دې. چه د يو بزرګ د ناستې د ځائې نه زيارت جوړ کړلې شي. جهنډې پرې اولګولې شي. او ډيوې پرې بلې شي.

او بیا زیاته دَ افسوس خبره دا دَه . چه هغه بزرگ چه کوم تعلیمات موږ ته پریښی وی . یعنې دَ خدای او دَ رسول لاره را ښئیګول . دَ شریعت په احکامو پوره پوره عمل کوؤل . او دَ نیکۍ دیندارۍ . دیانتدارۍ پاکیزه ژوند تیروَل . دغه هرڅه هیر کړے شی . او فقط دَ یو بزرګ نوم یا د او ساتلے شی . موږ له دَ خپلو مشاهیرو بزرګانو دَ ژوند نه داسبق آخیستل پکار دی . چه دَ دنیا په دے څو ورځے ژوند کښې دَ آخرت دَپاره دَ نیکے توښے ګټلو کوشش اوکړو .

## تاریخی فایده

د لته دَ تاریخی فائدے په خاطر دَ یو څو خبرو درج کوؤل مناسب ګڼړلے شی .

١ یو لا دا چه حضرت سید جلال الدین بخاری ګنج علم (شهید) سنه ۳۸۶ هـ او حضرت سید جلال الدین میر سرخ بخاری متوفی سنه ۶۹۰ هـ په خاندانونو کښې لفظ دَ "جلال الدین" او "جلال" دَ هر یو بزرګ دَ نوم سره په طور دَ خاندانی لقب استعمالیږی . یعنې څرنګه چه دَ دوی دَ نوم سره دویم نسبتی نوم بخاری لیکلے شی . د دے خبرے دَ ښودلو دَ پاره چه دَ ساداتو دا خاندان دَ بخارا اوسیدونکی وو . دغه شان دَ دوی دَ نوم سره لفظ دَ جلال هم لیکلے شی . دَ حضرت مخدوم جهانیاں په یو ولسم پشت کښې برَه نیکه نوم احمد وو . چه قتال یې عرف وو . ابو یوسف او ابو محمود یې کنیت وو . او جلال الدین یې لقب وو . په سنه ۳۲۴ هـ کښې پیدا شوے وو . او په سنه ۴۱۲ هـ کښې وفات شوے وو . دَ عراق نه بخارا ته هم دے راغلے وو . چونکه جلال الدین د دَه لقب وو . نو روستو دَه په خاندان کښې دا لقب په موروثی شکل کښې پاتے شو . دَ مثال په طور د دے سید احمد قتال دَ یو ځوی نوم علی وو . هغه په جلال الدین اکبر نامه مشهور وو . دَ دویم ځوی نوم یې

محمود وُو۔ هغه په جلال الدین اصغر نامه باندے مشهور وو۔ او دے نه روستو د دے خاندان دَ هر یو فرد نوم سره دغه لقب مشهور جلال الدین استعمال شوے دے۔

داچه پورته ذکر شوے دے یوه داسے تاریخی نکته ده۔ چه دَ کوم خلقو فکر دیته نه دے رسیدلے۔ هغوئ دَ ځان نه عجیبه عجیبه قیصے جوړے کړے دی۔ ځکه مونږ او وئیل چه دَ حضرت مخدوم جهانیان اسم محضه حسین دے۔ ابوالمحمود ئے کنیت دے۔ جلال الدین ئے لقب دے۔ او بخاری ئے نسبتی نوم دے۔ لکه د دوئ دَ ننیکه نوم چه حسن دے۔ جلال الدین او جلال اعظم ئے لقبونه دی۔ او میر سرخ بخاری ئے نسبتی نوم دے او دا دے تاریخی نکتے نه داهم واضحه کیدے شی۔ چه هر کله دَ سابق صوبه سرحد او قبائلی علاقو دَ بخاری سادا تو اکثر خاندانونه هغه دی چه دَ اُوچ بهاولپور نه راخوره شوی دی۔ لکه دَ علاقه اورکزی تیراه۔ کوهاټ پیښور ښهر۔ هشتنغر۔ سوات او باجوړ بخاری سیدان شول او په دے کښ اکثر دَ مخدوم جهانیان دَ خاندان بخاری سادات دی۔ په دے وجه د دے خاندان دَ اکثرو مشاهیرو بزرګانو دَ نومونو سره لفظ دَ "سید جلال الدین بخاری" په طور دَ خاندانی لقب سره استعمال شوید ے۔ او ډیره ممکنه ده چه دَ پښتونخوا په علاقه کښ ځنے زیارتونه چه دَ سید جلال الدین بخاری په نوم مشهور دی۔ هغه دَ مخدوم جهانیان په خاندان کښ دَ ډیر وروستو پیړئ دَ بزرګانو سیدانو زیارتونه دی۔ بهرحال دا یو داسے سوال دے۔ چه زیاتی نور تحقیق ته غواړی۔

۲ — دویمه نکته دا ده۔ چه دَ پیښور ښهر دَ بخاری ساداتو په قلمی شجره کښ دَ مخدوم جهانیان دَ نوم سره په طور دَ لقب "ګنج عالم" لیکلے شوے دے۔ دا لقب په نورو تذکرو کښ وجود نه لری۔ البته

دَ مخدوم جهانیان په نمسوکښې دَ یو نمسي نوم داسې راغلے دے. سید عبدالرحمان گنج عالم ولد سید سراج الدین ولد سیدنا ناصرالدین محمود ولد سید جلال الدین حسین مخدوم جهانیان. که موږ دَ پلیبورډ شجرے په سند سره دَ مخدوم جهانیان دَ نوم سره "گنج عالم" یو لقبي نوم شمار کړو. نو دا به او وایو چه دا هم دَ هغه نمونے لقب دے. لکه دَ حضرت شیخ بهاء الدین ذکریا قدس سره دَ نوم سره چه "غوث العالم" لقب دے. یا دَ هغه دَ نمسي شیخ رکن الدین دَ نوم سره چه "رکن عالم" لقب دے. مګر دلته ورسره دا هم یادول پکار دي. چه دَ مخدوم جهانیان دَ نوم سره دَ دغه لقب په "گنج عالم" لوستل پکار وي. ځکه چه دَ سن ۱۳۰۰ھ دَ زمانے دَ یو بل سید جلال الدین بخاري تذکره چه مخکښې په تفصیل سره درج شوے ده چه مزار مبارک ئے په ملاکنډ ایجنسئ ریاست دیر کښې دے. دَ هغه لقب "گنج علم" دے. بایدچه د دے فرق لحاظ اوساتلے شي.

## بخاري سادات

مخکښې دے خبرے ته اشاره شوے ده. چه په مغربي پاکستان کښې دَ بخاري سادا تو اکثر خاندانونه دَ اُوچ نه خواره شویدي. او په دوئ کښې زیات تعداد دَ مخدوم جهانیان دَ کورنئ دے. دَ معلوماتو دَ زیاتوالي په خاطر د دے مبارک خاندان په اختصار سره بیان مناسب معلومیږي.

دَ حضرت سید جلال الدین حسین بخاري مخدوم جهانیان پنځه ځامن وو. نومونه ئے دادي:-

(۱) سید حاجي ناصرالدین (۲) سید بهاؤالدین (۳) سید مکرم الدین (۴) سید حسن الدین (۵) سید نورالدین.

په دوئ کښې دَ حضرت مخدوم دَ مشر ځوئ سید ناصرالدین لس ځامن وو چه نومونه ئے دادي:-

سید حامد کبیر۔ سید علم الدین۔ سید شہاب الدین۔ سید اسماعیل۔ سید سراج الدین۔ سید فضل اللّٰہ۔ سید برهان الدین (د دہ اولاد په گجرات دے۔) سید منور الدین المعروف بندگی شیخ الاسلام (د دہ اولاد دَ بهارت په قنوج نومے ښهر کښ دے۔) سید نظام الدین (د دہ په قبائلی علاقه اورکزائے تیراہ کښ دے۔)

لکه چه مخکښ ورته اشارہ شوے دہ۔ دَ حضرت مخدوم دَ مشری ځوئ ناصر الدین محمود دَ پنځم ځوئ سید سراج الدین دَ ځوئ نوم سید عبد الرحمٰن "گنج عالم" وو۔ ددے حضرت سید عبد الرحمٰن دَ ځوئ نوم سید رکن الدین وو۔ بیا ددہ دَ ځوئ نوم سید بدهاشاہ وو۔ بیا دَ هغه دَ ځوئ نوم وو۔

حضرت سیّد شاہ رحمت اللّٰہ چهانگلا موج دریا

چه په موضع منگورہ علاقه خوشحال گرھ ضلع کیمبل پور کښ ئې زیارت دے۔ ددہ درے ځامن وو۔

(۱) سید گنجگوارا (۲) سید امام علی (۳) امام حاجی شاہ۔ ددے درے وارہ ځامنو قبرونه هم دَ خپل پلار حضرت موج دریا سرہ په موضع منگورہ کښ دی۔ بیا په دوئ کښ دَ حضرت سید امام حاجی شاہ درے ځامن وو۔ دَ یو ځوئ نوم وو۔

## سید نبی شاہ علیه الرحمة

چه دَ ضلع پیښور دَ علاقه ھمند خصوصًا آدزی، متنی او کوهاټ ښهر دَ بخاری سادا تو خاندانونه ددہ اولاد دے۔ ددے سید نبی شاہ په پنځم پښت کښ سنکته دَ یو بنسی نوم وو۔

## سید حسن شاہ علیه الرحمة

دا سید حسن شاہ دَ سنه ۱۰۵۰ھ په شاؤ خوا کښ دَ موضع آدی زی۔

متنی نه کوهاټ ښهر ته تلی وو. اوهلته د کوهاټ ښهر په محله جنګل
خیل کښې آباد شوے وو. اولاد یې تر اوسه دغلته آباد دے. ډیره
عزتمنده روحانی، علمی اوادبی کورنۍ ده. د دے خاندان نامور
افراد وپه تیرو درے سوه کلونو کښې په دے ملک د اسلام ډیر خدمت
کړیدے. د پښتو ژبے نامور ادیب پیر مطیع الله هم په دے خاندان
کښې تیر شوے. د ده د یو مشهور مناجات ابتدائی دوه شعرونه داسے دی.

خبر زده کړه آګاهو. ؛ معبود نشته بے یاهو

تل یاهو کړه په زړه هو ؛ په دنیا مکړه هاهو

د حضرت سید حسن شاه د نسب شجره داسے ده. سید حسن شاه
بن سید کوهر شاه بن سید رنګ شاه بن سید شیر شاه بن سید
نجیب شاه بن سید نبی شاه بن سید حاجی شاه بن سید رحمت
الله موج دریا علیهم الرحمة والغفران.

## حضرت سیّد محمود پیر علیه الرحمة

د حضرت سید امام حاجی شاه د دویم ځوی نوم وو حضرت سید محمود
پیر علیه الرحمة چه د پیښور ښهر. تحصیل پیښور خصوصًا موضع
دلازاک او کانکوله وغیره د بخاری ساداتو خاندانونه د ده په اولاد
کښې دی. د ضلع کیمبل پور د علاقے نه په اول سر کښې هم دغه حضرت
سید محمود پیر پیښور ښهر ته تشریف راوړے وو. بیا د دے ځائے نه
موضع دلازاک ته لاړل. اوهلته آباد شول. روستو تر ښځه وُ پښتونو
پورے دا خاندان هم هلته په دلازاکو کښې آباد وو. او بیا د هغه ځائ
نه دوباره د دے خاندان سادات پیښور ښهر ته راغلی دی. پدے
نزدے زمانه کښے سیّد آغا لعل بادشاه په دے خاندان کښې مشهور تاریخی
او سیاسی شخصیت تیر شویدے. په پیښور ښهر کښے د بخاری ساداتو

يوه بله كورنئ هم دَه چه پَه كريم شاهي بخاري ساداتو مشهوره ده.
دوئ دَ نسب شجره حضرت سيد محمد غوث لكه چه مخكښې اشاره
شوې وه. دَ حضرت مخدوم جهانيان مشر تره استاذ او پير
طريقت هم وو.

## حضرت ميران محمد شاه موج دريا بخاريؒ

دَ حضرت مخدوم جهانيان په اولاد كښې په سنه ۱۰۱۳ھ كښې يو بزرګ تېر شوې. چه دَ هغه نوم "محمد" وو او په حضرت ميران محمد شاه بخاري مشهور وُو. دَ اوچ نه لاهور ته راغلې وو. شهنشاه جلال الدين اكبر ورسره خصوصي عقيدت لرلو. دَ دوئ دَ خانقاه دَ اخراجاتو دَ پاره يې په لاهور او بټاله كښې ډيو لاكهه روپو جاګير بخښلې ده. ددوئ دوه ځامن وو. سيد صفي الدين او سيد بهاء الدين چه ددې دواړو اولاد په لاهور او بټاله كښې آباد دې. او لكه چه مخكښې اشاره اوشوه حضرت ميران محمد شاهؒ په سنه ۱۰۱۳ھ كښې وفات شوې دې. عليه الرحمة والغفران.

## سيد احمد بخاري

دَ حضرت سيد محمود ناصر الدين اول ابن مخدوم جهانيانؒ دَ يو ځوئ نوم سيد فضل الدين وو. دَ هغه دَ ځوئ نوم سيد علاء الدين وو. چه مزار يې په كشمير كښې دې. بيا دَ ده دَ ځوئ نوم سيد ضياء الدين وو. او بيا دَ ده دَ ځوئ نوم سيد احمد وو چه دَ كشمير نه دَ ضلع كيمبل پور علاقه چچ پرملي نومكلي ته راغلې وو. دَ ضلع مردان موضع لاهور ته راغلې دوباره بيا پرملي ته تلې وو. مزار يې په پرملي كښې دې. ددې حضرت سيد احمد..... دَ ځوئ نوم سيد جمال الدين چه مزار يې په قصبه لاهور ميدان كښې دې.

# حضرت خواجه بهاء الدين نقشبند

ولادت: ——————— بخارا سنه ۷۱۸ھ

وفات: ——————— بخارا سنه ۷۹۱ھ

هرکله چه دَ پاکستان په مشرقی او مغربی دواړو حصو کښې دَ سلسله عالیه نقشبندیه بے شمیره مشاهیر بزرګان تیر شوی دی. په دے وجه دے مبارکے سلسلے دَ بانی حضرت خواجه محمد بهاء الدین نقشبند علیه الرحمة دَ ژوند مختصر حالات بیانول مناسب معلومیږی.

دَ دوی اصلی نوم محمد ابن محمد بخاری وو. په نسب حسینی سید وو. سلسله دَ نسب یې داسے دَه. خواجه بهاء الدین محمد نقشبند بن میر سید جلال الدین محمد بن سید برهان الدین بن سید عبد الله بن میر سید زین العابدین بن سید، میر قاسم بن سید برهان الدین بن سید محمود بن سید ایلاق بن سید امیر نقیب بن سید امیر خلونی بن سید امیر محی الدین بن سید علی اکبر بن امام حسن عسکری رضوان الله عنهم اجمعین.

دے په محرم سنه ۷۱۸ھ کښې په قصر عارفان نومے کلی کښې پیدا شوے وو. دا مقام دَ بخارا نه یو فرسنګ په فاصله دے. ابتدائی تعلیم یې ...... کښې حاصل کړو. چه دَ اتلسو کالو په عمر شو نو خپل والد ماجد ورته اوفرمائیل چه دَ روحانی تربیت دَ پاره حضرت خواجه محمد بابا سماسی له لاړ شه. چه هلته ورغے نو حضرت بابا صاحب اوکتو دے یې دَ حضرت سید امیر کلال خدمت کښې پیش کړو. او هغوی ته یې اووے "نقش بهاء الدین را بر بند" یعنی دَ بهاء الدین دَ نقش بندی اوکړه. دَ دَه زړه په روحانی نقش او نګار ښائسته کړه وُیلے شی چه د وستو دَ خواجه بهاء الدین لقب چه "نقشبند" مشهور شو یدے.

د دے ابتداد دغے نه شویدے ۔ بعض خلق داوائی ۔ چه د دے لقب وجه
دا ده چه کوم طالب دَ خدای به دَ دوی خدمت کښ حاضر شو ۔ نو د دوی
روحانی تعلیم به دَ دوی په زړه داسے نقش شو چه هغه سړے به ډیر
ژر خپل مقصد ته ورسیده ۔ بعض دا وجه بیانوی چه دوی به خپلو
مریدانو له دَ الله نوم نقش کړے یعنے لیکلے ورکولو او دا به یے ورته هدایت
کولو ۔ چه په خپل زړه دَ لفظ الله تصور کوی ۔ چه زړه دَ الله ذکر شروع
کړو کویا نه شی ۔ او دَ خدای د دغه اسم ذات او دصفات انوار پرے پریوزی
روښانه او ژوندے شی ۔ ځکه ورته نقشبند وائی ۔

په طریقت کښ دَ دوی تربیت حضرت سید امیر کلالؒ کړے
ده ۔ مګر په حقیقت کښ د ده طریقه اویسی ده ۔ او په روحانی طریقه
سره حضرت عبد الخالق غجدوانیؒ یے تربیت فرمائیلے وو ۔ وئیلے شی چه د دوی
دَ پیدا کیدو نه لا مخکښ حضرت خواجه محمد بابا سماسی د دوی دَ پیدا کیدو
زیرے ورکړے وو ۔ او چه پیدا شو نو مخپل ځوی یے بنولے وو ۔ او حضرت سید
امیر کلال ته دَ دوی دَ تربیت پوره تاکید کړے وو ۔ او دا یے ورته فرمائیلے وو ۔
چه ځما د دے فرزند دلبند په حق کښ په تربیت او شفقت کښ کوتاهی
ونکړے ۔ چنانچه هغوی دا حکم په سر سترګو منلے وو ۔ هرکله چه حضرت
سید امیر کلال دَ دوی پوره پوره تربیت او فرمائیلو نو ورته یے او وئیل
چه ما دَ خپل مرشد دَ حکم مطابق ستا کار او کړلو ۔ لیکن ستا استعداد او
حوصله ډیره لویه ده ۔ په دے وجه ځما طرفنه تا ته اجازه د ے ۔ چه کله دَ نورو
مشائخو او بزرګانو نه فیض حاصلول غواړے نو لاړ شی ۔ چنانچه د دے اجازت
موندلو نه روستو حضرت بهاء الدینؒ روان شو ۔ دَ حضرت شیخ فتح او شیخ
خلیل آقا په خدمت کښ حاضر شو ۔ او دهغوی نه یے باطنی فیوضات
حاصل کړل ۔ دَ حضرت شیخ خلیل آقا په خدمت کښ یے دولس کاله تیر

کړل. او هغوی سره یې دوه ځله د حج بیت الله سفر اوکړو. د خلیل آقا
نه چه رخصت شو. نو بخارا ته راغے او دلته په موضع زیورتون کښې استو
ګن شو. د دے نه څه زمانه روستو سمرقند ته لاړل. او د هغه ځائ
د بزرګانو نه یې فیض حاصل کړو. بیا واپس بخارا ته راغے. په دغه
دوران کښې حضرت بابا سماسی وفات شوے وو. څه ورځے پس یې
واده اوکړلو. او په "قصر عارفان" کښې یې استوګنه اختیار کړه. چه هم
دلته په ۱۵ ربیع الاول سنه ۷۱۹ھ کښې وفات شو.

د حضرت خواجه بهاء الدین نقشبند روحانی او عرفانی
مقام ډیر اوچت وو. د ده پیر طریقت حضرت شیخ فتح علیه الرحمة
به فرمائیل. د بهاء الدین په سینه کښې چه د الله د طلب او معرفت کوم
اور بلیږی. دغه د بخارا په زمکه شاید که د بل چا نصیب شوے وی.

په نقشبند طریقه کښې یو اهم خصوصیت دا دے. چه د مرید
په زړه کښې د پیر سره بے دریغه مینه پیدا کیږی. د دے ابتدا هم د
حضرت بهاء الدین نقشبند نه شوے ده. د بیعت نه روستو دوی خپل
شیخ سید امیر کلال سره والهانه محبت لرلو. او دا محبت تر دے حده
رسیدلے وو. چه روایت دے یوه ورځ دے د خپل پیر ملاقات ته تلو.
په لاره کښې په آس سور یو سړے مخے له ورغے. هغه ورسره خبرے
کوول غوښتل. لیکن دوی ورته توجه اونه کړله. په مخه ترینه لاړ.
چه د شیخ په خدمت کښې حاضر شو. هغوی ورته اووئے په لاره کښې یو
سور په مخه درغلے وو. هغه خضر علیه السلام وو ستا سره یې خبرے
کوول غوښتل. توجه دې ورته ولے اونه کړه. عرض یې اوکړو. زه ستا سو
طرف ته متوجه ووم. د بل چا طرف ته مے توجه څرنګ کړے وے. د
خپل شیخ او پیر طریقت سره دے محبت ته د نقشبند په طریقه کښې په

اصطلاح کښې "تصور شیخ" وائی۔ ددے فائده داوی چه مرید بالکل "فنافی الشیخ" شی۔ او دَ شریعت دَ مکملے تابعدارئ سعادت او استقامت ورته حاصل شی۔ او دَ هغې په برکت دَ "فنافی الرسول" او "فنافی الله" مقامانو ته ترقی ورکول ورته آسان شی۔ دَ "فنافی الشیخ" مقام ابتدائی مقام دی۔ چه دَ "لطیفه قلبی" نه روستو حاصلیږی۔ او دَ لطیفه روح، لطیفه خفی لطیفه اخفی او لطیفه سرّ په دوران کښې کمال ته رسیږی۔

حضرت خواجه بهاء الدین نقشبند دَ ډیر واوچتو اخلاقو خاوند وو۔ هرڅوک چه به دَ دوئ ملاقات له راغے نو ډیر په تواضع سره به یې دَ هغه خدمت کولو۔ فرمائیل به یې۔ میلمه په حقیقت کښې ځپلو راتللو په موږ احسان کړے دے۔ دَ فایدے په خاطر دلته دَ دوئ یو څو ارشادات درج کوو۔

## ارشادات

(۱) فرمائی:۔ دَ رسول پاک صلی الله علیه وسلم دَ سنت په تابعدارئ کښې خوب کول دَ هغې نه بهتر دی۔ چه دَ شریعت په خلاف وړ ذئ کښې یو سړے بیدار پاتے شی۔

(۲) دوئ به ځپلو مریدانو ته ډیر په تاکید سره دَ سنت نبوی دَ پیروئ حکم ورکولو۔ او فرمائیل به یې دَ خدائ په رضا راضی اوسیږی۔ ځپله رضا او خپل اختیار پریږدی۔ او دَ مخلصانه عمل په ذریعه معرفت حاصل کړی۔

(۳) یو ورځ به یې اوفرمائیل۔ هرچاته چه څه بخره رسیدلے ده۔ څه یې مونډلی دی۔ نو دَ ادب په برکت یې مونډلی دی۔ بے ادبه انسان محروم پاتے کیږی۔

(۴) فرمائی:۔ په نقشبندیه طریقه کښې ریاضت او مجاهده نشته دے۔ صرف دومره کار کول لازمی دی۔ چه سړے دَ نفس په خواهشاتو پسے تلل پریږدی۔ بیا په لږ محنت سره ډیره فائده ورته حاصلیدلے شی۔ ضرورت ددے خبرے دے۔ چه زړه دَ کوم څیز سره تعلق لنهوی۔ هغه دنیاوی خواهشات پریښودلے شی ... ته تخویوئے مادی

او دنیاوی خواهشات په زړه او نظر کښې موجود وی. نو د الله تعالیٰ د حق ذات مینه پکښې نه شی ځای کیدلے۔ که یو کور خالی نه وی۔ نو میلمه که راشی۔ هغه به کوم ځائ قیام کوی۔

(۵) دوی به کراماتو او احوالو له چندان اهمیت نه ورکولو۔ فرمائیل به ئې داخله د اعتماد قابلے خبرے نه دی. د کار خبره خو دا ده چه سړے په کار کښے مشغول پاتے شی. یعنے د خدای د یار نه غافله پاتے نه شی او د ذات د حقیقت په بے پایانه سمندر کښې لامبو او وهی۔

(۶) دوئ به فرمائیل. هر انسان له پکار دی. چه د خپل نفس محاسبه او کړی. چه څو مره ساعت ئې د خدای په یاد و کښې او په حضور کښې تیر کړ۔ او څو مره ساعت ئې د غیر په خیال کښې تیر کړ. که د حضور نه په غیر ئې وخت تیر کړے وی. نو دغه لویه د نقصان خبره ده. (یعنے داسے ژوند تیرول پکار دی چه "دست بر کار و دل با یار") دیته په اصطلاح "خلوت در جلوت" وائی۔

(۷) د حضرت خواجه بهاء الدین نقشبند تعلیمات دومره واضحه او دلنشین دی چه واقعی په زړه نقش کیږی. او د هرے طبقے خلق ترینه فائده حاصلوی. د دوی دا نصیحت څومره دلنشین دے. فرمائی. خدای پاک مونږه د خپل فضل په دروازه دے دنیا ته رانته ایستلی یو۔ او څمونږ طریقه فرض واجب او سنت مؤکده اداکول دی. د پاک رسول د سنت او د صحابه کرام د اثار و پیروی کول دی. څوک چه څمونږه په ملگرو کښې ځان شماری هغه له څمونږ پیروی پکار ده. که داسے او نه کړی. نو د هغه سره څمونږ هیڅ تعلق نشته دے۔

(۸) په بخارا کښې یو عالم ترینه تپوس او کړو. چه په نمانځه کښې د زړه حضوری به کوم شی حاصلیږی دوئ ورته او فرمائیل. چه په

حلال رزق خوړلو سره. چه ښه په پوهه سره او تسلئ کولو سره او خوړے شی. چه آیا دا حلال دے. که حرام.

(۹) فرمائی:- ولایت یو نعمت دے. ولی له پکار دی چه دَ خپلے بزرګی دَ مرتبے نه خبردار ه دے وی. دَ پاره د دے چه په دے نعمت دَ خدای شکر ادا کړی. ولی دَ خدای په مهربانی سره محفوظ وی. دَ ټولو آفتونو نه ئے خدای بچ کوی. که دَ یو سړی نه خرق عادت کارونه او احوال او کرامتونه ښکاره کیږی. نو دغه څه قابل اعتماد خیز نه دے. دَ کار خبره داده چه آیا دا سړے چه ځان ته بزرګ وائی چه دَ خدائ او رسول په وینا باندے قولاً او فعلاً ټینګ ولاړ دے که نه. د دهٔ کارونه او وینا په شریعت برابر دی که نه. د دے لار تلونکی چه دَ الله تعالیٰ دَ احکامو پوره پوره تابعداری او په هغے عمل شی وع کړی. نو هغه له دَ ولایت خاصه درجه ورکړے شی. د دے لے خلق درے قسمه دی. مقلد. کامل. کامل مکمل. مقلد چه څه آوری په هغے عمل کوی. او کامل دَ خپل ځان تجاوز نه کوی. او نه ئے کوړے شی. دَ یو مرید دَ پاره دَ رے صفتونه ضروری دی. او په ځان کښی د دے پیدا کول ډیره لویه خبره ده. دَ ارادے نه مراد دَ خپلے ارادے ترک کول دی. مرید له پکار دی چه دَ شیخ په مرضی خپله مرضی پریږدی.

(۱۰) فرمائی:- مرشد په منزله دَ حاذق حکیم وی. د ضرورت مطابق دَ مرید علاج کوی. دَ مرید دَ پاره په خپل علاج کښی دَ خپل اختیار نه کار اخیستل پکار نه دی بلکه زهر دی. او دا یاد لرل پکار دی چه ذکر. تلقین بیعت او لاس نیوه دَ کامل پیر نه وکړی. چه دَ هغے اثر په نظر کښی راشی. او نتیجه ئے ظاهره شی. دَ ذکر نه مراد دادے چه ذکر دَ کلمه توحید حقیقت ته اورسیږی. (یعنے چه یو سړے مرید شی. پیر ورته کلمه توحید ذکر او ښائی. نو که پیر کامل مکمل وو. هاله به دَ هغے اثر دا کیږی

چه مرید دَ کلمه توحید ذکر شروع کړی نو د ے کلمه توحید حقیقت به ورته څرګند شی. که پیر کامل مکمل نه وو . نو دَ مرید په احوالو کښ به هیڅ فرق نه راځی .) په داسے حال کښ دا ضروری نه دی . چه مرید دَ کلمه توحید په زړګونو ځله اووائی . دَ کلمه توحید حقیقت دا دے چه دد ے په تکرار سره دَ ماسوی الله نفی راشی . او دَ مرید په زړه کښ دَ خدائی نه په غیر دَ نور و څیزونو مینه کمه شی .

(۱۱) فرمائی :- دَ مغز په پوستکی کښ حفاظت کیږی . که دَ یو ے دانے پوستکی خراب شی . مغزیئ لازماً خرابیږی . شریعت پوستکی دے . او طریقت یئ مغز دے . که یو سړے دَ شریعت دَ احکامو پوره پوره پابندی نه کوی . نو دَ هغے ناکاره اثر به دَ هغه دَ طریقت په احوالو لازماً پریوزی . سلامت نه شی پاتے کیدلے .

## خلیفه ګان

دَ حضرت خواجه بهاء الدین نقشبند مجلس نه به ډیر لوی لوی عالمان راتلل او دَ دوی نه به یئ فیوضات حاصلول . لکه په بخارا کښ مولانا حسام الدین اصیلی او مولانا حمید الله شاشی علیهم الرحمة شول . دَ برصغیر هند و پاکستان مشهور بزرګ حضرت سید اشرف جهانګیر سمنانی علیه الرحمة چه په اول سر کښ دَ حضرت مخدوم جهانیان جهان ګشت دَ اوچ بهاولپور او دَ شیخ علاء الحق قطب بنګالی مرید وو . په آخر عمر کښ بخارا ته تلے وو . او دَ حضرت خواجه بهاؤالدین نه یئ بیعت کړے وو .

دَ حضرت خواجه بهاء الدین نقشبند په مریدانو کښے دَ یو نامور خلیفه نوم مولانا یعقوب چرخی وو . (چرخ دَ کابل او غزنی ترمنځه دَ یوے علاقے نوم دے .) بیا دَ دوی دَ نامور خلیفه نوم عبید الله احرار وو

بیا دَ هغه دَ خلیفه نوم خواجه زاهد محمد وو. دَ هغه دَ خلیفه نوم خواجه درویش محمد وو. دَ هغه دَ خلیفه نوم خواجه امکنگی وو. او د دوی دَ خلیفه نوم حضرت خواجه باقی باالله وو. چه مزار مبارک یې په دهلی کښې دے. او په هند و پاکستان کښې دَ سلسله نقشبندیه بنیاد کیښودے شو دے. دَ حضرت خواجه باقی باالله په نامورو خلیفه گانو کښې حضرت خواجه شیخ احمد فاروقی سرهندی مجدد الف ثانی علیه الرحمة (ولادت سنه ۹۷۱ھ وفات سنه ۱۰۳۵ھ) دَ لوئی شان او مرتبے خاوند تیر شوے دے. دَ دوی نه روستو سلسله نقشبندیه په "مجددیه" طریقے سره یادیږی. ځکه چه دَ دوی دَ نقشبندیه سلسلے دَ سیر او سلوک په طریقو کښې دَ تجدید نه کار اخیستے دے. او دَ نورو درے واړه طریقو قادریه چشتیه. سهروردیه فیوضات یې هم پکښې شامل کړی دی.

دَ مغربی پاکستان خصوصاً پیښور ډویژن. ډیره ډویژن. کوټه ډویژن او قبائیلی علاقو اکثر مشاهیر بزرگان هم دَ دے سلسلے عالیه نقشبندیه بزرگان دی. لکه حضرت اخون الیاس دَ لاجبوک ریاست دیر. حضرت میاں نور محمد صاحب دَ سلامپور. ریاست سوات. حضرت شیخ حبیب صاحب دَ پیښور ښهر. حضرت شیخ عبد الله حاجی بهادر دَ کوهاټ ښار.

دَ نقشبندیه طریقے لوئی تعریف دا دے. چه څوک په دے طریقه کښې بیعت او کړی. نو بیا هغه سړے په ټول ژوند کښې دَ شریعت دَ احکامو پیروی کوی. دَ پاک رسول صلی الله علیه وسلم دَ سنت تابعدار وی. په مونځ. روژه. زکوٰة. حج ادا کولو کښې قصور نه کوی. عمل یې نیک شی. مخ. ستر کے او زړه یې روښانه شی. او په تندی کښې یې دَ ایمان نور ځلیږی. په دا سے زمانه کښې چه هرخوا ته دَ فسق فجور او بدعت دوردوره وی. دَ نقشبندیه طریقے کښې چه سړے داخل شی. دَ

هغه په زړه کښې مینه. سوز او درد پیدا شی. د خدائ سره مینه
د خدائ د رسول سره مینه. د دین اسلام سره مینه. او د خدائ د
مخلوق سره مینه یئے پیدا شی. او ظاهره خبره ده چه دا تهولے
دنیک بختئ خبرے دی. او دا تول د حضرت خواجه بهاءالدین
نقشبندی د مبارکو انفاسو برکات دی.

علیهم الرحمة والغفران

# حضرت پیر بدر عالم زاهدیؒ

(مشرقی پاکستان)

ولادت: ——————— میرټهه سنه ۷۰۴ هـ

وفات: ——————— بهار سنه ۷۹۴ هـ

دمشرقي پاکستان. مغربي بنګال او بهار په مشائخو او بزرګانو کښې حضرت شيخ الاصفياء، قطب بنګاله. سيد. شاه. مخدوم. پير بدرالدين بدرعالم زاهدي عليه الرحمة ډير جليل القدر او عظيم المرتبت بزرګ تير شويدے. دے خاندانی شيخ الطريقت وو. ممتاز عالم وو. د اسلام سرګرم مبلغ وو. او ديو لوی درجے او وقار خاوند وو.

د پير عالم بدر پلار نيکه ته په اصل د روم او سيد ونکی وو. د ده په مشرانو نيکونو کښې ديو مشر نيکه ئے سلطان سيد احمد صوفی نوم وو. چه د يو رياست حکمران وو. ديو فقير د نصيحت اثر پرے اوشو. بادشاهي ئے پريښوده او فقيري ئے اختيار کړه. د دے سلطان سيد احمد صوفي د ځوی نوم خواجه شهاب الدين کبير امام کعبه وه. او ډيره موده ئے په کعبه مکرمه کښې امامتی کړے وه. د دے د سلطان شمس الدين التمش متوفی سنه ۶۳۳ هـ په زمانه کښې ميرټهه ته راغے. دلته استوګن شه او بيا په سنه ۶۵۸ هـ کښې په حق او رسيده.

د ده د ځوی "خواجه فخرالدين خداداد بزرګ" نوم وو. او د اسلام په اشاعت او تبليغ کښې ئے ډيره لويه حصه اخيستے ده. د خواجه فخرالدين د ځوی نوم خواجه شهاب الدين وو. چه روستو په "حق ګو شهيد" لقب باندے مشهور شويدے. څه وخت چه د دهلی په تخت باندے د سلطان علاءالدين خلجی ځوی سلطان قطب الدين مبارک خلجی

بادشاه شو. نو چونکه دے سلطان دَ حضرت خواجه شهاب الدین سره ډیر عقیدت لرلو. نو دَ هغے په وجه ئے حضرت خواجه شهاب الدین حق گو شهید دَ میر ټهه نه دهلی ته را اوبللو او دلته ئے دَ هغوی دَ استوګنے دَ پاره خانقاه وغیره جوړ کړل. دَ خلجی خاندان نه روستو دَ تغلق خاندان حکومت چه شروع شو. نو دے خاندان اولنے بادشاه غیاث الدین تغلق هم دَ شهاب الدین ډیر معتقد وو. چنانچه دَ خواجه شهاب الدین ځوئ چه فخر الدین ثانی نوم ئے وو. هغه له سلطان غیاث الدین تغلق خپله لور هم ورکړے وه.[له] لیکن چه په غیاث الدین تغلق پسے روستو محمد تغلق بادشاه نو دَ هغه او خواجه شهاب الدین تعلقات خراب شول. دَ تعلقاتو خرابیدلو وجه داوه. چه محمد تغلق داغوښتل چه خواجه شهاب الدین دے هم لکه دَ نورو عالمانو دستخط اوکړی چه سلطان محمد تغلق یو "عادل سلطان" دے. ددے په جواب کښې دَ حضرت خواجه شهاب الدین جواب داوو. چه زه دا دستخط نه شم کولے. ځکه چه زه ظالم ته عادل نشم ویلے. چنانچه هم په دغے باندے محمد تغلق اولګیده. او خواجه شهاب الدین ئے دَ تغلق آباد دَ قلعه دَ دیوال نه سنګته ګذار کړ. شهید ئے کړ. او ددغے په وجه "حق گو شهید" دَ دوی لقب اوګرځیده. ددے واقعے ذکر دَ ابن بطوطه په سفرنامه "عجائب الاسفار" کښې، تاریخ فرشته، منتخب التواریخ. اخبار الاخیار او ګلزار ابرار کښې راغلی دی. ددے نه دا هم معلومیږی چه دَ هغه زمانے په اولیاء کرام کښې خواجه شهاب الدین حق گو شهید ته هم اهم مقام حاصل وو.

دَ اخبار الاخیار دَ روایت مطابق د حضرت خواجه شهاب الدین حق گو

له خواجه فخر الدین ثانی دویم واده هم کړے وو. او دَ حضرت شاه صلاح الدین (چه مزار ئے په محله چوکهنډی بهار شریف کښې دے) لور بی بی ئے په نکاح کړے وه. اثر

شهید دَ څوئ حضرت خواجه فخر الدین ثانی مزار مبارک هم په دهلی کښې
دَ حضرت شاه عبد العزیز دهلوی دَ قبر سره نزدے اوَدَ حوض شمسی خوا
کښې دے. دَ خواجه فخر الدین گنج ځامن و و. چه په هغوی کښې دا څلور
ځامن ئے زیات مشهور شوی دی. (۱) شیخ حاجی چراغ هند (مزار مظفر آباد)
(۲) شیخ صدر عالم (مزار جونپور) (۳) شیخ بهاء الدین گنج دوامی (مزار
کالپی) (۴) شیخ بدر الدین بدر عالم زاهدی.

په دوی کښې حضرت شیخ بدر عالم زاهدیؒ په بهار او بنګال کښې
د دین اسلام تبلیغ اوکړ. او ډیر لوی نوم ئے پیدا کړ. او ګله چه مخکښې ذکر
اوشو دے په ګنړ والقابو سره یادیږی لکه شیخ الاصفیاء. قطب بنګاله.
مخدوم. شاه. پیر بدر الدین بدر عالم زاهدی په مشرقی پاکستان مغربی بنګال
اراکان. برما کښې په "پیر بدر" او "بدر شاه" نومونو یادیږی. اوَد شمالی بهار
په علاقه کښې دَ "جلو پیر" په نامه یادیږی.

حضرت پیر بدر عالم زاهدی په سنه ۷۰۴ھ کښې په "میرټھ" کښې پیدا
شوے وو. په هغه زمانه د دوی مشران دلته اوسیدل. بیا چه حضرت
خواجه شهاب الدین حق گو شهید دهلی ته لاړ. او هلته استوګن شو.
نو دے هم ورسره وو. او هلته ئے تعلیم او تربیت حاصل کړ. دَ خپل والد
ماجد خواجه فخر الدین زاهدی نه ئے په سلسله زاهدیه کښې لاس نیوه
وکړه. پیر بدر عالم دَ دهلی نه روان شو. جون پور ته لاړ. هلته د ده مشر
رورحضرت شیخ صدر عالم زاهدی اوسیدلو. څه ورځے ئے دَ هغوی سره
تیرے کړے. اوَدَ هغه ځای نه دَ مشرق په طرف روان شو. بهار شریف ته
لاړ. او هلته دَ حضرت مخدوم الملک شیخ شرف الدین بهاری په خدمت
کښې حاضر شو. اوَدَ هغوی په صحبت کښې ئے څه موده تیره کړه. حضرت
مخدوم الملک ورته اوفرمائیل. چه بنګال ته لاړ شه هلته د دین

اسلام دَ تبلیغ ضرورت لا پاتے دہ. دد ے نه روستو حضرت پیر بدر
عالم زاهدی دَ مختلفو مقاماتو دَ سیاحت نه پس په ٧٤٢ سنه هـ کښې
مشرقی پاکستان ته راورسیده اول سونارګاوں (ډهاکے) ته راغے.
بیا چاټګام ته ئے تشریف یوړلو.

## چاټګام

حضرت پیر بدر عالم زاهدی چه چاټګام ته تشریف راوړلو. نو دغه
ئے خپل مرکزی مقام اوګرځولو او په چارچاپیره علاقو کښې دَ اسلام
تبلیغ شروع کړ. په دغه زمانه په سونارګاوں باندې سلطان فخرالدین مبارک
شاه حکمران وو. او هغه دده معتقد او مرید وو. دَ ابن بطوطه بیان
نه معلومیږی چه دَ حضرت پیر بدر عالم زاهدی په سلطان مبارک شاه
او دَ هغه په وزیرانو باندې ډیر زیات اثر وو. او دغه نامور سلطان هم
دد ے پیر بدر عالم په هدایت خپل جرنیل غازی قدل خان دَ چاټګام
غزاله لیږلے وو. او دا علاقه ئے فتح کړے وه. او دَ هغے نه روستو دوی خپله
په چاټګام کښې استوګنه اختیار کړے وه. دا واقعه په ٧٤٥ سنه هـ کښې پیښه
شوے ده. ابن بطوطه دد ے نه یو کال پس په ٧٤٦ سنه هـ کښې چه چاټ
ګام ته راغلے وو. نو حضرت پیر بدر عالم زاهدی دلته په چاټګام کښې وو.
دے بندرګاه ترقی کړے وه. چین. جاوا. سماترا ته به دد ے ځای نه
جهازونه تلل. دَ حضرت پیر بدر عالم زاهدی سره چه په تبلیغی کم کښې
کوم ملګرو حصه اخستے وه. په هغوی کښې دَ حضرت محسن المعروف به
حاجی خلیل رح نوم دَ یاد ولو دے.

---

په کومه زمانه کښې چه حضرت پیر بدر عالم زاهدی "چاټګام"
ته تشریف راوړے وو. په هغه نیټه دا علاقه تور ځنګل. وړانے ویجاړے
کنډے او شاړه وه. هر طرف ته وحشت او بربریت وو. دَ اسلام دَ تعلیم نه

خلق بے خبرہ وو - دَ مقامي خلقو د روايت مطابق دا علاقه دَ پير يانو. ديوانو
او بلاګانو نه ډکه وه. په داسے حال کښے دلته قيام کول او ځنګلي ځناورو
ته تعليم او تبليغ کول څه آسان کار نه وه. ليکن خداى پاک چه پير بدرعالم
ته کوم روحاني طاقت ورکړے. هغے ته دا هرڅه آسان شول. دَ چاټ
ګام په خلقو کښ دَ پير بدرعالم په حقله دلچسپے قيصے مشهورے دى.
وئيلے شى چه د دے زمکے خلق به دَ پير بدرعالم تشريف راوړلو نه
وړاندے دَ پيريانو. ديوانو. ښاپيرو او مګهه نومے قبائيلي خلقو دَ لاس نه
ډير تنګ وو. چاټ ګام ته چه حضرت پير بدرعالم راورسيده. نو دَ يو غر
په لمنه باندے ئے چراغ روښانه کړ. دَ ځان نه ئے ګير چار پيره اوه کرښے (حصار)
تاؤ کړ. کښيناستلو. دَ چراغ بليدلو سره سمدستي پيريان ديوان تهول
او تښتيدل. چه کوم کوم ځاى ته دَ چراغ رڼا رسيدله هغه ټوله علاقه
محفوظه شوله. چونکه د دے علاقے په مقامي ژبه باندِ چراغ ته "چټي"
وائى. په دغه مناسبت سره د دے ځائى نوم "چټي ګرام" شو. او په کثرت
استعمال سره چاټګام او چټګاون شو. نن ورځے په چاټ ګام کښ دَ "قدم
مبارک مسجد" وسره نزدے چه کوم غر دے. هغے ته "چهير پهاړ" وائى. يعنے دَ
چراغ غر ورته وائى. او کوم ځاى چه دَ سرکاري عدالتونو آبادي وه. هغے ته
پرګي پهاړ وائى. يعنے دَ پيريانو غر ورته وائى. وئيلے شى چه هم په دے ځاى کښے
حضرت بدر پير چراغ روښانه کړے وو.

حضرت پير بدرعالم په مشرقي پاکستان، چاټ ګام کښ څه دَ پاسه
شلويښت کاله تيرولو نه پس په سنه ۷۸۲ هـ کښ دَ حضرت مخدوم الملک
شيخ شرف الدين بهاري رح په بلنه سره بهار شريف ته رار وان شو. دَ دوئ
دَ رارسيدلو نه مخکښ دَ حضرت شيخ شرف الدين انتقال شوے وو. دوئ
رانغلل او دَ هغوئ مزار مبارک له ئے غيږ ورکړه جُنت ورسره کښيناست. دَ هغے

نه پس دَ بهار شریف په قلعه کښې ئے څه ورځې قیام اوفرمائیلو۔ او بیا سوره ډیهه "نومے مقام ته لاړ۔ هلته استوګن شو۔ دَ حضرت مخدوم الملک نه روستو دَ بهار دَ علاقے دَ "شاه ولایت" مرتبه دوئ ته ورکړے شوه۔ په سنه ۷۹۴ھ کښې تقریبًا دَ شلو نیمے شلو کالو په عمر وفات شو۔ دَ وفات ماده تاریخ ئے ددے جملے نه راخیژي "بدرحق پیوست" هم په دغه "سوره ډیهه" نومے کلي کښې وفات شوے وو۔ آستانه ئے هم دغلته دَ دالو په محله ده۔ دَ شهنشاه فیروز تغلق په حکم سره دلته یو جماعت هم جوړ شوے وو۔ دَ پیر بدر عالم زاهدی درګاه او مزار په "چهوټي درګاه" یادیږي۔ او دَ حضرت مخدوم الملک زیارت په "بړي درګاه" یادیږي۔ دَ دواړو ترمینځه تقریبًا نیم میل فاصله ده۔ په "چاټ ګام" کښې په کوم ځائ کښې چه دوئ چله اوکښلے وه۔ هلته ئے هم یو مصنوعي زیارت او قبر جوړ دے۔ خلق زیارت له ورځي۔ په مغربي بنګال کښې په مقام دَ کالنا (بردوان) کښې هم ددوی چله خانه موجوده ده۔

په بهار شریف کښې په "چهوټي درګاه" کښې چه دَ پیر بدر کومه آستانه ده۔ دَ هغے احاطه ډیره لویه ده۔ په هغے کښې دوه حلقے دي۔ په اولنی حلقه کښې دَ دوئ دَ ځوی شاه سلطان زاهدی مزار دے۔ په دویمه حلقه کښې پخپله دَ پیر بدر" او دَ دوئ دَ دویمے بی بی حضرت بی بی نتهی علیها الرحمة زیارتونه دي۔ دَ فیروز شاه تغلق په زمانه کښې چه دلته کوم جماعت جوړ شوے وو۔ هغے له اوس دَ عیدګاه شکل ورکړے شوے دے۔ دَ حضرت پیر بدر عالم په آثار وکښې دَ چاټ ګام چله خانه لوئ اهمیت لري ځکه خلق دَ نا وقفیتیا په وجه دغه دَ دوئ اصلي مزار ګڼړي حالانکه دغه خیال غلط دے۔ دا چله خانه دَ چاټ ګام په بخشي بازار کښې ده۔ عمارت ئے شاندار او وسیع ده۔ دننه یکښې ګڼړے حلقے دي۔ په مینځ کښې یوه حلقه

د هغه دَپاسه پرے گنبد جوړ دے. په هغے کښې یو اوچت مصنوعی قبر دے. په هغے باندې غلاف او سپین څادر پروت دے - لوبان. اگر بتئ او نورے خوشبوئې پکښې لګیدلے وی. دَ چاټګام خلق د دے دَرګاه سره ډیر زیات عقیدت لری. دلته دَ هرے طبقے او هر مذهب خلق حاضریږی. نذر او دَ خیر او برکت په خیال اګربتئ چه دلته بلے کړی نو هم دغه شان بله کړے یئ کور ونو او د وکانونو ته وړی. او که په لاره کښې مړه شی. نو بدفالی ئے ګنړی. په چاټګام. غریبژه علاقه. اراکان. اکیاب او دَ برما په ساحلی علاقو کښې کنړ ځایونه - قدیم عمارتونه. جماعتونه پیر بدر ته منسوب دی. او هغے ته بدر مکان. بدر کنوان. بدر کمالی وغیره وئیلے شی. او په کوم ځای کښې چه دَ دوئ چله خانه ده هغے ته "بدر ریټهی رو ړ" وئیلے شی.

واقعات دادی چه حضرت پیر بدر عالم زاهدی رح دَ پاکستان دَ مختلفو علاقو علاوه په تری پوره - اراکان. اکیاب او دَ برما نه یو رتئ علاقه او دَ خلیج بنګال په مختلفو جزیرو کښې دَ اسلام تبلیغ کړے وو - او څه دَ پاسه څلویښت کاله زمانه ئے دلته تیره کړے وه - دَ دوئ کوم مبارک آثار چه په دے علاقو کښې ترننه ورځے پورے موجود دی. دا دغه زمانے سره تعلق لری.

دَ مشرقی پاکستان او مغربی بنګال دَ عوامو په زړه او دماغ باندے دَ پیر بدر رح زبردسته غلبه ده - خصوصاً دَ ملاحانو (مانړکیانو) لکه دَ خضر علیه السلام په شان محافظ او دستګیر ګنړلے شی - دَ مشرقی پاکستان مانړکیان چه په طوفان کښې ګیر شی نو دا سے چغے اوباسی. الله نبی. پنج پیر بدر - بدر دَ چاټګام په علاقه کښې چه مانړکیان دَ خپلے کشتئ یا جهاز لنګر پرانیزی نو دَ الله نبی رح دَ نوم اخیستلو نه روستو دا سے نعره وهی - "مدد بدر" دَ چاټګام ډویژن په کلو کښې دَ کشتئ کانو جنګولو ډیر رواج دے. پهلوانان چه کشتئ جنګوی یا په پرزولو ورځی نو هم دَ "پیر بدر" نوم یادوی - خدای

نه پوهیږي. د "پیر بدر" په نوم کښې څومره تاثیر دے. چه څومره صدۍ
تیرې شوې. او د هغې باوجود د عامو خلقو په زړونو کښې د دوئ سره بې
دریغه عقیدت هم هغه شان موجود دے. او په هغې کښې څه کمے نه راځي. د
چاټګام نه په وړاندې د اراکان. اکیاب. برما او ملایا پورې د پیر بدر
نوم اخیستلے شي. د چاټګام نه علاوه په سورنا ګاوں کښې هم یو درګاه
د "پانچ بدر پیر" په نوم یادیږي. چه په هغې کښې د دوئ د مریدانو زیارتونه
دي. په بنګال کښې د حضرت شاه جلال تبریزي او حضرت پیر بدر عالم
زاهدي رح په شان مقبولیت نورو بزرګانو ته نه دے حاصل شوے. په بهار کښې
هم پیر بدر په لویو مشائخو کښې شمیرلے شي. او د حضرت مخدوم الملک
شرف الدین نه روستو د دوئ نوم راځي. او هم په دغه وجه د مخدوم ستانے نه
لوئ درګاه والې. او د دلا ستانے ته ورکوچنے درګاه والې. د حضرت پیر بدر
په سینه باندې چه کوم ویښته وو. هغه داسې تاوړا تاو شوي وو. چه د
کلمه طیبه لا اله الا الله محمد رسول الله نقش به معلومیدلو. د دوی بې
شمیره خلیفه ګان وو. په بهار او بنګال کښې زاهدیه سلسله د دوئ نه
خوره شوې ده. دا سلسله د مشهور پیر طریقت حضرت خواجه ابو
اسحاق شهریار کازروني په واسطه سره سید الطائفه خواجه جنید
بغدادي ته رسیږي. په برصغیر پاک او هند کښې دا سلسله د پیر بدر عالم
زاهدي مشر نیکه حضرت خواجه شهاب الدین کبیر امام
زاهدي رائجه کړې وه. او لکه چه مخکښې ذکر اوشو. په بنګال او
بهار کښې ورله دوئ فروغ ورکړے وو.

لکه چه مخکښې ذکر شوے دے سلطان مبارک شاه او
د هغه وزیران امیران د ده مریدان وو. دغه شان په حسین شاهي
بادشاهانو کښې سلطان محمود ثالث ئې د ومره خلوصه عقیدتمند وو.

چه دَ دوئ دَ نوم سره خپل نوم او لقب يې عبد الله را ايښے وو. او په خپله خطبه او سکه کښې به يې هم دغه "عبد الله" نوم استعمالولو.

دَ حضرت پير بدر عالم زاهدیؒ دوه بيبيانے وے. يوه دَ سلطان فيروز شاه تغلق لور وه. دَ هغے نه يې څلور ځامن وو. مخدوم شهاب الدين پير قتالؒ. مخدوم پير شاه ابو سعيدؒ. حضرت شيخ جنيدؒ. مخدوم تيز طبع. دويمه بى بى يې دَ مهاراجه پرتهوى راج دَ خاندان ځنے وه. ددے نه يې يو ځوئ مخدوم شاه سلطان او يوه لور بى بى ابدال پيدا شوى وو. نسلى او روحانى سلسله يې دَ پير قتال. مخدوم شاه سلطانؒ. شاه ابو سعيدؒ او مخدوم بى بى ابدال نه قائمه شوے وه. دَ بنگال او بهار په مختلفو مقاماتو کښې يې تراوسه پورے فيض جارى دے. ددوه نه روستو شاه سلطان ددوئ گدى نشين وو. دغه هم په خپله زمانه کښې مشهور شيخ وو. او دَ بهار په لويو بزرگانو کښې شميرلے شى. دَ خپل والد ماجد سره نزدے په يو ځان له چار ديوارئ کښې يې مزار دے. دَ شاه ابو سعيد مزار په چهوتى درگاه کښې دَ جماعت خوا سره دے. دَ حضرت تيز طبع قبر دَ خپل والد ماجد "پير بدر عالم" دَ مزار سره دے. او دَ حضرت مخدوم شهاب الدين قتال زيارت په سارن کښې دَ قتال پور ځوکئ سره دے. دَ حضرت شيخ جنيد مزار دَ بهار شريف دَ قلعه سره دے. او دَ حضرت مخدومه بى بى ابدال زيارت په محله "ديوى سرائے" کښې دے. حضرت مخدومه بى بى ابدال دَ بهار په خاوره مشهوره بزرگه تيره شوے ده. رحمة الله عليهم

## دَ پير بدر زاهدی همعصر بزرگان

په کومه نيټه چه حضرت پير بدر عالم زاهدی په مشرقی پاکستان کښې اوسيده. په هغه زمانه دَ دوئ چه کوم همعصر اولياء الله وو.

په هغوی کښې د دے خوبزرګانو نومونه دَ یادو لودي. حضرت عثمان اخی سراج. حضرت راجا بیابان. حضرت مولانا سراج الدین عطا. حضرت شاه جلال الدین تبریزی. خواجه نصیرالدین چراغ (دهلی) خواجه احمد سیستانی (بهار) مخدوم الملك شیخ شرف الدین. مخدوم احمد چرم پوش (بهار) مخدوم شاه شعیب (شیخ پوره مونګیر) شیخ علاء الحق (مغربی بنګال پنډوه) مخدوم سید جلال الدین حسین مخدوم جهانیان جهان ګشت (اوچ بهاولپور) حاجی چراغ هند (ظفرآباد) شیخ صدر عالم زاهدی (جونپور) شیخ بهاء الدین ګنج دوامی (کالپی) سید محمود ګیسودراز (ګلبرګه. دکن) حضرت خواجه بهاء الدین نقشبند (بخارا) خواجه سید اشرف جهانګیر (سمنانی) خواجه حافظ شیرازی. (شیراز) حضرت جلال الدین کبیر اولیاء پانی پتی. او لکه چه مخکښې ذکرا وشو مشهور سیاح ابن بطوطه هم په دغه زمانه د دے ملك سیاحت کولو.

مختصر دا چه پیر بدر عالم زاهدی یو باکماله عالم. باکماله مُبلغ. پرجوش مصلح. باشریعته صاحب طریقت. برګزیده صوفی وو. او ټول عمر یې په رشد او هدایت کښې تیر کړے وو. د حضرت سیدنا غوث الاعظم شیخ محی الدین عبدالقادر جیلانی قدس سره نه روحانی فیض ورته حاصل وو. او دَ مشرقی پاکستان او خواؤ شا ټولو علاقو زمکه تراوسه دَ دوی په انوارو روښانه ده.

- علیه الرحمة والغفران -

# حضرت شیخ قاضی سراج الدین صدیقی رحمة الله علیه

سنہ ۸۰۰ھ

(مشرقی پاکستان)

دَ مشرقی پاکستان دَ الیاس شاهي خاندان دریم نامور حکمران حضرت سلطان غیاث الدین اعظم شاه ابن سلطان سکندر شاه ابن سلطان حاجی الیاس شاه وو.

حضرت سلطان غیاث الدین اعظم شاه په سنه ۸۰۳ھ مطابق سنه ۱۳۹۰ء کښې بادشاه شوے او په سنه ۸۲۳ھ مطابق سنه ۱۴۱۰ء کښې وفات شوے وو. دده په زمانه کښې چه دَ سابق بنګال په وطن کښې کوم نامور بزرګان او عالمان موجود دي. په هغوئ کښې حضرت شیخ قاضی سراج الدین صدیقی او حضرت نور قطب عالم علیهم الرحمة نوموړه زیات مشهور دي. لکه چه مخکښې دَ شاه جلال الدین تبریزی په بحث کښې ورته اشاره شوے ده. حضرت سلطان غیاث الدین اعظم شاه دَ بادشاهئ نه علاوه دَ خپل وخت یو دینی عالم، زاهد، عابد او بزرګ انسان هم وو. (دَ حضرت شیخ نور قطب عالم تذکره به راشي)

حضرت قاضی شیخ سراج الدین په قام قریش وو. او حضرت خلیفه اول سیدنا ابوبکر رضی الله عنه په اولاد کښې وو. دَ دوئ دَ خاندان مشر دَ سلطان اختیار الدین بختیار خلجی سره په سنه ۶۰۰ھ کښې بنګال ته راغلی وو. او دده دَ زمانے پورے په تیرو شوو دوه وو سوو کالونو کښې دَ بنګال په زمکه دَ اسلام دَ خورولو په سلسله کښې یے ډیر لوئ خدمات کړی وو.

# حضرت شیخ المشائخ قاضی حمید الدین ناگوری صدیقی

دَدے حضرت قاضی سراج الدین صدیقی په خاندان کښې ددهٔ نه په مخکښې زمانه کښې او ددهٔ نه په روستو زمانه کښې ډیر لوئ مشاهیر بزرګان تیر شوی دی. چنانچه ددے خاندان په مشاهیرو کښې حضرت مولانا شیخ المشائخ خواجه قاضی حمید الدین ناګوری صدیقی الملقب په خواجه ګنج نشین علیه الرحمة (متوفی سنه ۶۴۱هـ) نوم دَیاد ولو دے. چه دَ حضرت خواجه خواجګان حضرت معین الدین حسن چشتی اجمیری علیه الرحمة مشهور او نامور خلیفه وو. او دَ دوئ په برکت دَ سلسله عالیه چشتیه فیوضات په جنوبی هند او سابق بنګال کښې خواره شوی دی. او بے شمیره کافران او مشرکان دَ دوئ په تبلیغ او رشد او هدایت په برکت په اسلام مشرف شوی دی علیهم الرحمة

دغه شان پدے کورنئ کښې چه روستو کوم مشاهیر بزرګان تیر شوی دی. په هغوئ کښې دَ حضرت مولانا حمید الدین دانشمند منګل کوټی نوم دَیاد ولو دے. چه روستو به دَ هغوئ حالات ځان له جدا په تفصیل سره بیان کړے شی.

حضرت شیخ سراج الدین صدیقی دَ حضرت سلطان غیاث الدین اعظم شاه دَ سلطنت (ګوړ. لکهنوتی) قاضی القضاة وو. ددغه نه علاوه دوئ دواړه یعنی شیخ سراج الدین او سلطان غیاث الدین دَ یو استاذ شاګردان هم وو. او ورسره بیا دَ یو پیر طریقت حضرت مولانا شیخ مظفر بلخی مریدان هم وو. دلته دَ سلطان غیاث الدین او دَ هغه دَ قاضی حضرت سراج الدین صدیقی یو واقعه درج کولے شی. چه دَ هغے نه ددے دواړو همعصر و. همدرس. او هم مشرب مشاهیرو په

پاکیزه اسلامی ژوند باندے ډیره ښکلے رڼا بریوځی. او ورسره ځمونږ
د پاره دا اوچت اسلامی کردار یو بهترین مثال گرځیدلے شی. د دے
دواړو مشاهیرو د دے واقعه نه که یو خوا ته د دوئ اوچت اسلامی
کردار واضحه کیږی. نو ورسره مونږ ته دا نتیجه هم په لاس رځی
چه په حقیقت کښ هم دا هغه عظیم الشان اسلامی

"روحانی تړون"

دے. چه دیو ملک حکمران بادشاه او قاضی دواړه په یو صف کښ اودره
وے شی. او د عدالت او بے نظیره شریعت پروری او ایمانداری یو زرین
مثال دنیا ته وړاندے کولے شی.

خبره داسے وه چه یوه ورځ سلطان غیاث الدین په "غشی
لینده" باندے نښه ویشتله. چه په هغے کښ د سلطان د یو غشی په
گذار د یوے کنډے زنانه ځوئ اولگیده - او مړ شو. هغه بوډئ فریاد کاره
د حضرت قاضی سراج الدین په عدالت کښ ئے په سلطان خلاف دعوه
او کړله. قاضی خپل چپراسی اولیږه. او د وخت بادشاه سلطان غیاث
الدین ئے په طور د ملزم خپل عدالت ته را وغوښت. بادشاه چه د قاضی
مخے ته راغے. نو قاضی" ورته حکم اوکړ. چه لکه د نورو ملزمانو بشان
سم په قطار کښ اودریږه. خیر مقدمه پیش شوه. او فیصله هم
اوشوه. چونکه هغه هلک د بادشاه نه په غلطئ سره لگیدلے وو. او په
قتل عمد کښ نه راته. نو بوډی په خپله خوښه او رضا باندِ معاف کړ.
او د دواړو ترمنځه صلحه اوشوه. لیکن چه څه وخت بادشاه د قاضی
صاحب عدالت نه وتلو. نو قاضی صاحب ته ئے او وئیے. چه قاضی
صاحب زه ستا نه ډیر زیات خوشحاله یم. چه تا د اسلام د اولنی
پیړئ د قاضیانو د عدالت یاد را تازه کړ. او بیا ئے حکم اوکړ چه

په دے بانده قاضی صاحب ته ډیر انعام او اکرام ورکړے شی. ددے نه پس ئے بیا قاضی صاحب ته مخ راوګرځولو. او ورته ئے اوویئے چه بالفرض که تا پدے موقع بانده ځما لحاظ کړے وے. او ځما د بادشاهی خاطر دے کړے وے. او ددے عاجزے بوډئ سره دے څه زیاتے کړے وے. نو قسم په خدائ چه پدے توره بانده مے ستا سر پرے کولو.

مګر تاسو خبر یئ چه حضرت قاضی سراج الدین څه جواب ورکړ ؟

حضرت قاضی سراج الدین د سلطان د دغه خبرے په اوریدلو بانده د خپل فرش یو ګوټ را واړولو. د هغے نه ئے یوه مضبوطه دُره را اوکښله. او ورته ئے ووئیل. چه اے غیاث الدین واوره. ما ستا د را تلو نه مخکښے دا انتظام کړے وو. چه که ته دلته د حاضریدلو نه پس ددغه عاجزے بوډئ سره یو ځای او نه دریدلے. یا دے نور څه معتبری او د بادشاهی رعب داب ښکاره کړے وو. نو دا دُره مے درله ایښے وه. چه په دے به مے په وهلو وهلو ستا پوټکے بل مخ اړولے وو.

حضرت سلطان غیاث الدین اعظم شاه او حضرت قاضی سراج الدین صدیقی دواړو د طریقت سلسله په یو شو واسطو سره حضرت قاضی حمید الدین ګنج نشین صوفی ناګوری علیه الرحمة ته رسیږی. او لکه چه مخکښ ذکر او شو. مشهور روحانی رهنما حضرت نور قطب عالم د پنډوه هم ددوئ همعصر. هم مشرب او همدرس وو. ددغه علاوه ددوئ په همعصره بزرګانو کښ د حضرت شیخ احمد عبد الحق توشه رودولوی علیه الرحمة او د حضرت شیخ احمد مجد شیبانی نومونه د یاد ولو دی.

حضرت سلطان غیاث الدین اعظم شاه په خصوصیت سره د حضرت

شیخ احمد مجد شیبانی د پیر طریقت حضرت خواجه حسین ناګوری سره زیات عقیدت لرلو. سلطان به دا کوشش کولو چه حضرت خواجه حسین د دوی د لاس نه څه نذر قبول کړی. لیکن هغوی به همیشه انکار کولو. لیکن آخر یې د سلطان غیاث الدین اعظم شاه درخواست قبول کړو. او سلطان چه په نذر کښې هر څو مره د وپۍ پیش کړے حضرت خواجه حسین په هغه رقم باند ے د حضرت خواجه خواجګان خواجه غریب نواز علیه الرحمة او حضرت خواجه حمید الدین ناګوری علیه الرحمة مزارونه مبارک جوړ کړل. او هغه رقم یې په د ے مبارک کار کښې صرف کړو. حضرت عبدالحق محدث دهلوی په خپل کتاب اخبار الاخیار کښې لیکی:-

په هغه زمانه کښې چه اجمیر شریف وران شوے وو. او خواوشا علاقه یې داسے ځنګل شوے وه چه زمری به پکښې ګرځیدل په دغه زمانه کښې د حضرت خواجه غریب نواز په قبر شریف باند ے څه آبادی نه وه. اولنے سرے چه په دغه روضه مبارکه باند ے یې آبادی جوړه کړه عمارت یې ساز کړو. هغه حضرت خواجه حسین ناګوری وو." او لکه چه مخکښې ذکر او شو د ے مبارک تعمیر ټول اخراجات د سلطان غیاث الدین اعظم شاه پرخلوصه نیاز وو. او دا څومره لوی سعادت دے چه د د ے مسلمان بادشاه نصیب شوے دے. علیه الرحمة والغفران.

د مشرقی پاکستان په مشاهیر و او پخوانو بزرګانو کښې د د ے عادل سلطان او انصاف پرور قاضی دواړ ونو مونه ډیر ممتاز دی. او څمونږه د مشاهیر و حکمرانانو هم دغه بے نظیره عدل د ے. او څمونږه د دینی عالمانو دغه بے مثله انصاف د ے. او هم دا هغه مضبوط اسلامی روحانی تړون د ے. چه نن ورځے د د ے په برکت او قوت او طاقت د مغربی او مشرقی پاکستان مسلمانان یې یو ورونړه یو تن جوړ کړل.

# حضرت نور قطب عالم علیه الرحمة

(سنه ۸۱۸ھ)

حضرت شیخ، نور قطب عالم دَ حضرت شیخ علاء الحق فرزند ارجمند وو. او دَ حضرت پیر بدر عالم زاهدی خوریے وو. په سنه ۷۸۳ھ کښې دَ خپل والد ماجد دَ وفات نه روستو دَ حضرت مخدوم جهانیان جهان گشت په واسطه دَ خپل پلار په گدئ بانده ناست وو. او روستو په عواموکښې دَ مقبولیت او شهرت په لحاظ سره دَ خپل والد ماجد نه ئے هم لویه مرتبه موندلے وه. حقیقت دا چه په مشرقی پاکستان کښې دَ حضرت مخدوم شاه جلال الدین تبریزی او پیر بدر عالم زاهدی نه روستو عظیم ترین شهرت او مقبولیت هم دوئ ته حاصل شوے وو.

حضرت نور قطب عالم په سلسله چشتیه کښې دَ خپل والد ماجد شیخ علاء الحق مرید وو. او په سلسله سهروردیه کښې دَ حضرت مخدوم جهانیان جهان گشت مرید وو. دَ سابق صوبه سرحد دَ نامور بزرگ حضرت شهنشاه خراسان پیر باباً سهروردیه سلسله هم دده په واسطه سره حضرت مخدوم جهانیان ته رسیږی. لکه چه مخکښې دَ قاضی سراج الدین صدیقی په تذکره کښې ورته اشاره شوے ده. حضرت نور قطب عالم او حضرت قاضی سراج الدین صدیقی دواړه دَ حضرت مولانا مظفر بلخی شاگردان وو. او دَ دینی علومو درس ئے دَ هغوی نه حاصل کړے وو.

دَ حضرت نور قطب عالم دَ ټولو نه لویه کارنامه هغه گڼړلے شی چه دوئ دا چه کنس په زمانه کښې په سیاسی معاملاتو کښې دخل ورکړه. او دَ بنگال مسلمانان ئے دَ ظلم نه خلاص کړل. دا واقعه دا سے بیانولے شی. چه هر کله دَ مملکت بنگاله دَ سلطان

شهاب الدین بایزید خان افغان نه روستو دَ مسلمانانو په قوت او طاقت کښے ضعف راغے۔ او دَ بتهوریار راجه کنس زبردست طاقت او اثر پیدا کړ۔ نو دغه هندو راجه دومره جبر او تشدّد شروع کړ۔ چه مسلمانان عالمان او مشائخ به ئے په زور دربار ته غوښتل۔ او هغوئ ته به ئے حکم کولو چه راجه ته سجده اوکړی۔ چه هغوی به انکار کولو نو سختے سختے سزاگانے به ئے ورکولے۔ او دَ هغوی مال او جائیداد به ئے ضبط کوُل۔ بے شمیره ممتاز عالمان او مشائخ به ئے هم قتل کړل۔ چه په هغے کښِ دَ حضرت نورقطب عالم کشران ځامن شیخ انور او شیخ بدرالاسلام او دَ حضرت مخدوم حسین دهکړپوش دوه ځامن هم شامل وو۔ دَ راجه کنس دَ جبر او تشدّد نه خلقوله دَ نجات ورکولو دَ پاره حضرت نورقطب عالم دَ جونپور سلطان ابراهیم شاه شرقی ته بلنه ورکړه بل خوا ته حضرت مخدوم سید اشرف جهانگیر سمنانی چه دَ حضرت نورقطب عالم دَ والد ماجد مرید وو۔ هغه هم ابراهیم شاه شرقی ته یو مکتوب ولیږه۔ چه دغه مکتوب لوئ تاریخی اهمیّت لری۔ او محکښِ دَ هغے مونږ مختصر شان اقتباس درج کړے هم دے۔ چنانچه ددے دواړو بزرګانو په یاداشت حضرت ابراهیم شاه شرقی لښکرکشی اوکړه او رسیده۔ بیا دَ راجه کنس دومره زور نه وو۔ چه دَ مجاهدین اسلام مقابله ئے کړے وے۔ ورئے دَ حضرت نورقطب عالم په پښوکښِ ئے سر کیښود چه بخم کړی۔ آخر په ئے صلح اوشوه چه راجه کنس بادشاهی خپل ځوئ جیتو ته پریښودله۔ دستبردار اوشو۔ او جیتو اونګیده چه په تخت کښیناسته نو دَ حضرت نورقطب عالم په لاسونو مبارکو ئے ایمان قبول کړ۔ مسلمان شو۔ داواقعه په سکاله هجری کښے پیښه شوے ده۔

هرکله چه ابراهیم شاه شرقی سره دَ لښکرنه واپس شو۔ نو راجه کنس اونکیده دَ خپل ځوئ جیتو نه ئے بیا حکومت قبضه کړ۔ او دَ پخوا نه

په هم زیات ظلمونه شروع کړل. په دې دوران کښې په سنه ۸۱۸ھ مطابق سنه ۱۴۱۵ء کښې حضرت نور قطب عالم په حق ورسیدلو او راجه کنس ته د ظلم کولو د پاره نوره هم لاره خوشې شوله. (نور بحث به روستو راشي.)

د حضرت نور قطب عالم علائی مریدان او خلیفګان د هندوستان په مختلفو مقاماتو کښې خواره وو. چه په هغوئ کښې د حضرت حسام الدین مانک پوري او مخدوم فرید طویله بخش نومونه د یادولو دي. دادواړه د ده د تر ورځامن هم وو. زیارتونه ئې د بهار شریف د چاند پور نومې مقام په مقبره کښې دي. د حضرت شیخ سعادت مزار هم په دې محله کښې دے.

د حضرت شیخ نور قطب عالم د دوه ځامنو نومونه په تذکرو کښې راغلي دي. یو شیخ رفقه الدین او دویم شیخ انور علیهم الرحمة. د حضرت شیخ رفقه الدین د ځوی نوم شیخ زاهد وو چه مخکښې پخپله زمانه کښې لوئ ولي د خدائ تیر شوے دے. د حضرت شیخ نور قطب عالم مزار مبارک د خپل والد ماجد شیخ علاء الحق خواسره په پنډوه (مغربي بنګال) کښې دے. او په چهوټي درګاه مشهور دے. وجه ئې داده چه د بنګال په خاوره د حضرت شاه جلال تبریزي چله خانه په "بړي درګاه" نامه یادیږي. علیه الرحمة والغفران.

## حضرت پیر قتّال زاهدی.

د حضرت پیر قتال اصلي نوم شیخ شهاب الدین زاهدي دے. او د حضرت پیر بدر عالم زاهدي مشر ځوئ وو. د راجه کنس په خلاف د جهاد کولو په وجه د پیر قتال په لقب سره مشهور شوے وو. د راجه کنس د ظلمونو نه خلقوله په نجات ورکولو کښې د حضرت نور قطب عالم نه روستو د دوئ نوم د یادولو دے. وئیلې شي چه هر کله د راجه کنس د ظلم او تشدد سلسله د حدنه واوختله. نو مجبوراً مسلمانانو د حضرت پیر قتال په فتوئ باندې د دغه ظالم او مشرک راجه په خلاف د جهاد اعلان اوکړو. په مرآة الکونین

نورې کتاب کښې روایت دے چه حضرت پیر قتال هم سره د خپلو مریدانو او معتقدانو د راجه کنس د مظالمو ښکار شوے وو. داواقعه داسے وه چه د راجه کنس سره یو خود ښه نسل او زیږے چیلی وو. یوه ورځ دغه په خپلو دربارېانو کښې کوم یو درباري نو چیلے حلال کړے وو. او دغے الزام ئے د حضرت پیر قتال په مریدانو اولګاوه. په دغے باندے راجه کنس اوټکیده پیر قتال ته دلبارته راوغوښتله. د باوونه ئے پرے اوکړل او د دوئ د مریدانو سره ئے هم سپورے سټغ اوکړلے. پیر قتال د چیلی حلالونکی ته بد دعا اوکړله. هم په دغه شپه د هغه په ګیډه کښې سخت درد ولاړ شو او داسے وېریدلو چه راغے د خپل جرم اقرار ئے اوکړ. او د پیر قتال نه ئے معافي اوغوښتله. د دے یو واقعے نه دا اندازه لګیدے شي. چه د راجه کنس سلوک د عامو مسلمانانو سره څه چه د لویو لویو بزرګانو سره هم داسے د بے عزتئ وو.

هر کله چه د راجه کنس ظلمونه انتها ته اورسیدل او حضرت پیر قتال د هغه په خلاف د جهاد اعلان اوکړ. نو د راجه یو دوه خپلوان چه هغه د پیر قتال په لاس مسلمانان شوی وو. د راجه په محل ورننوتل راجه کنس ئے قتل کړ. او دوباره ئے د راجه کنس هغه ځوئ چه جیتو نوم نوم ئے وو. او د حضرت نور قطب عالم په لاس مسلمان شوے وو. او یو ځل په تخت هم ناست وو. دوباره د بنګال بادشاه شو. سلطان جلال الدین لقب ئے خان له کیښوده او د ۸۱۸ھ نه تر ۸۳۵ھ پورے په دغه ملک حکمران وو. لکه چه مخکښې ذکر شوے دے. د حضرت پیر قتال مزار په صوبه بهار ضلع سارن موضع قتال پور کښې دے. د دوئ په مریدانو و خلیفه ګانو کښے د دوئ د خپل ځوئ سید رکن الدین زاهد او خوریئ سید محمود زاهدی نومونه د یادولو دي.

— علیهم الرحمة والغفران —

# حضرت سید محمد گیسودراز علیہ الرحمۃ

دَ حضرت سید محمد ګیسودراز په نوم سره دوه مشهور بزرګان تیر
شویدی. چه یو په مغربی پاکستان او بل په بهارت کښې دے. دَ دواړو نوم
محمد دے. او دواړه حسینی سیدان دی. او دَ دواړو یو لقب دے ګیسودراز
په دے وجه د دوی د دواړو حالات سره ګډ وډ شویدی. او دَ یو دَ حالات نسبت
بل ته کوُلے شی. حالانکه دَ دواړو دَ زمانے ترمینځه څلور سوه کاله فرق دے.

۱ - په دوی کښې یو سید محمد ګیسودراز هغه دے چه په تاریخی لحاظ سره
دَ سنه ۴۰۰ھ (۴۳۰) دَ زمانے بزرګ دے. او سلسله دَ نسب ئے په دیارلسمه پیړۍ
کښې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته رسیږی. او دَ دوی ذکر په ټولو تاریخی
کتابونو کښې موجود دے. لیکن دَ برصغیر پاک او هند په بزرګانو کښې ذکر نه دے
راغلے. مزار مبارک ئے په کوه سلیمان کښې دے. او ددوی په اولاد کښې په خصوصیت
سره دَ دوی یو ځوئ مشوانی او لاد سادات مشوانی دَ لکهونو په تعداد کښې دَ مغربی
پاکستان په کوټه او قلات ډویژن. سنده. پنجاب. پېښور او ډیره ډویژنو نو-
قبائیلی علاقو او افغانستان او بهارت خواره دی.

۲ - دویم سید محمد ګیسودراز هغه دے. چه دَ سنه ۸۲۵ھ دَ زمانے دے.
او سلسله دَ نسب ئے په پنځویشتم پښت کښې حضرت محمد صلی الله
علیه وسلم ته رسیږی. او دَ وی ذکر دَ برصغیر پاک او هند دَ بزرګانو په ټولو
تذکرو کښې موجود دے. مزار مبارک ئے په ګلبرګه دکن کښې دے. ددوه فقط
دوه ځامن وو. سید محمد اکبر حسینی او سید محمد اصغر حسینی چه اولاد ئے
په دکن. بهار او بنګال کښې دے.

هر کله چه دد دے دواړو بزرګانو نومونه. القاب. قومیت هر څه یو
شان دی. په دے وجه بعض خلق په اشتباه کښې پریوتلی دی. دَ اولنی سید

سید محمد گیسودراز دَ اولاد خصوصاً سادات مشوانی شجرهٔ دَ نسب ئے د دغه دویم سید محمد گیسودراز سره تړلے دهٔ. په دے وجه د امناسب معلومیږی چه دلته اول دَ سید محمد گیسودراز ثانیؒ متوفی سنه ۸۲۵ھ تذکره په اختصار سره او بیا دَ سید محمد گیسودراز اولؒ متوفی سنه ۴۳ھ لږه په تفصیل سره درج کړلے شی۔ دَ بارهٔ د دے چه فائده ئے عامه شی۔

## سید محمد گیسودراز ثانیؒ

دَ حضرت سید گیسودراز ثانی اصلی نوم محمد دے۔ ابوالفتح ئے کنیت دے۔ او عام طور په خواجه بنده نواز گیسودراز سره مشهور دے۔ په لاندینو کتابونو کښ دَ دوئ حالات په تفصیل سره بیان شویدی۔

(۱) دَ سلسله عالیه چشتیه دَ بزرگانو تولے تذکرے۔ (۲) تذکره اولیائے دکن تالیف دَ عبدالجبار (۳) بزم صوفیه (۴) انوار صوفیه (۵) اخبار الاخیار۔ (۶) مکتوبات دَ سید اشرف جهانگیر سمنانی (۷) بیاض دَ ابوالقاسم نصیر الدین۔ (۸) خزینة الاصفیاء (۹) سیر محمدی (دا کتاب دَ دوئ خصوصی سوانح عمری دهٔ) (۱۰) معراج العاشقین (دا کتاب د دهٔ خپل تالیف دے) په دے کتاب کښ دَ سیر محمدی دَ بیان مطابق دَ دوی شجرهٔ دَ نسب دا سے دهٔ۔

محمد بن یوسف بن علی بن محمد بن محمد بن یوسف بن حسن بن محمد بن علی بن حمزه بن داؤد بن زید بن ابوالحسن جیندی بن حسین بن ابی عبدالله بن محمد بن عمر بن یحیٰ بن حسین بن زید المظلوم بن علی اصغر بن امام زین العابدین علی بن امام حسین بن علی ابن ابی طالب و فاطمه بنت محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم۔

دَ سید محمد گیسودراز مورث اعلیٰ دَ هرات نه دهلی ته تشریف راوړے وو۔ او دهٔ دَ والد ماجد سید یوسف په «سید راجا» باندے مشهور وو۔ دَ

د سلطان المشائخ خواجه نظام الدین اولیاء سره یې عقیدت لرلو. د مور
د طرف نه نیکه یې هم د خواجه صاحب مرید وو. سید محمد گیسو دراز په
۷۲۱ سنه هـ کښې په دهلی کښې پیدا شو. بیا د سلطان محمد تغلق په زمانه
کښې چه د دهٔ پلار د دهلی نه دیوگیر ته په کډه لاړ. نو په هغه وخت
سید محمد گیسو دراز د درې څلور کالو په عمر وو. په دیوگیر کښې شیخ بابو
نومې یو بزرگ وو. د حضرت گیسو دراز والد ماجد به د دوئ په صحبت
کښې کیناسته. پدې وجه به هم د خپل پلار سره د هغوئ مجلس ته حاضریده
چنانچه د دغه دینی صحبت په دوئ باندې هم نیک اثر اوشو او په ورکوټې
والی کښې یې د دین سره شوق پیدا شو. بیا چه د دهٔ عمر لس کاله ته
اورسیده. والد ماجد یې په دولت آباد کښې وفات شو. او هم هلته یې مزار
جوړ شو چه نن ورځ هم مرجع د خاص او عام دې. د هغه نه وروستو د مور
د طرف نه نیکه به یې تربیت کولو. او په دغه منځ کښې د مختلفو استاذانو نه
یې تعلیم حاصل کړو. د تعلیم په دوران کښې د خواجگان چشت سره محبت
پیدا شو. او دا یې آرزو وه چه د حضرت خواجه نصیر الدین چراغ دهلوی
سره یې ملاقات اوشولې. څه موده پس چه د دوئ ماجده والده د دهلی نه
دولت آباد نه راغلله نو دې هم د خپلې والدې سره دهلی ته راغې. په
دهلی کښې به یې د جمعې مونځ د سلطان قطب الدین ایبک په جامع مسجد
کښې ادا کولو. دغلته یې د حضرت خواجه نصیر الدین چراغ دهلوی
سره لیدل اوشول. او د پنځلسو کالو په عمر کښې په ۱۶ رجب ۷۳۶ سنه هـ کښې یې
د هغوئ نه په سلسله عالیه چشتیه کښې لاس بیعت اوکړو. او یو ږه یو ویشت
کاله یې د خپل پیر په خدمت کښې تیر کړل. او بیا چه په ۷۵۷ سنه هـ کښې حضرت
نصیر الدین چراغ دهلوی وفات شو. نو دې د هغوئ په ځائ کښې گدی
نشین شو. او په دهلی کښې یې قیام اوفرمایه.

د تذکره اولیاءِ دکن د روایت مطابق د سلطان فیروزشاه بهمنی په زمانه کښې په سنه ۸۱۵ هـ کښې د دهلی نه گلبرگه دکن ته تشریف یوړلو- او په سنه ۸۲۵ هـ کښې ئې هلته انتقال اوفرمایه. علیه الرحمة والغفران.

حضرت سید محمد گیسو دراز ډیر لوئی فاضل عالم هم وو. د دوئی بې شمیره تصنیفات او تالیفات یادگار پاتې دی. د یو څو کتابونو نومونه ئې دا دی.

ملتقط. تفسیر کلام پاک. حواشی تفسیر کشاف. شرح مشارق. ترجمه مشارق. معارف. ترجمه معارف شرح عوارف المعارف. شرح تعرف. شرح آداب المریدین. شرح فصوص الحکم. شرح تمهیدات. ترجمه رساله قشیریه. خطائر القدس. رساله استقامت بطریقة الحقیقة. دد ے نه علاوه ۱۲ نور کتابونه او ۶۱ مکتوبات ئې دی. او په دکنی ژبه کښې اشعار ئې هم شته دی. په اشعار وکښې به ئې شهباز تخلص کولو. تالیفات او اشعار ئې په عربی. فارسی او دکهنی اردو کښې دی.

## سید محمد گیسو دراز اول.

د حضرت سید محمد گیسو دراز حسینی اول علیه الرحمة تذکره د پښتنو وغیره مؤرخانو په دے لاندې یو کتابونو کښې راغلے دے.

تاریخ فرشته[۱]. آئین اکبری[۲]. مخزن افغانی[۳]. تاریخ الافغان[۴]. صولت افغانی[۵] تاریخ خورشید جهان[۶]. حیات افغانی[۷]. تاریخ افاغنه[۸]. بیاض سادات قلعه عبدالله[۹] کوئټه بلوچستان. شجره اکهلیه وبیاض سادات شرارود[۱۱]. بیاض سادات پلوسئ[۱۲]. خزینة الاسرار[۱۳] - المعالی شرح آمالی[۱۴]. حالات مشوانی[۱۵]. گزیټیر آف دی هزاره ډسټرکټ بابت سنه ۱۹۰۷ء تالیف ایچ. ډی. والټن. نارتھ ویسټ[۱۶] فرنټیر پراونس ډسټرکټ گزیټیر جلد ع الف بابت پشاور وهزاره[۱۷] بلوچستان ډسټرکټ گزیټیر. کوئټه پشین ډسټرکټ تالیف آر. هیوز بټلر[۱۸]. ودیوان جمعیت رائے باب ع ۲ ځ رصف پروموشن آف لرننگ[۱۹]

ان محمدن پریس. لوکل گورنمنٹ بحواله دفعه ۱۵ ایکٹ ۳۳ سال ۱۸۷۳ء
شجره نسب مشوانی گزیٹیر دی باجوړ ټرایبس تالیف ډ هنټر -

ددے پورتنو تاریخی یاداشتونو مطابق ددے اولنی سید محمد گیسو دراز حسینی شجره د نسب داسے ده. میر سید محمد گیسو دراز بن سید غفار بن سید عمر بن سید جعفر المعروف په سید قاف بن سید قائم (رقایم) بن سید الرجال محمد بن سید اسماعیل بن امام جعفر صادق بن امام محمد باقر بن علی زین العابدین بن سید الشهداء امام حسین بن بتول الجنة بنت رسول الثقلین و بن اسد الله الغالب علی ابن ابی طالب کرم الله وجهه

دده په حقله حضرت میاں محمد عمر نقشبندی مجددی (متوفی سنه ۱۱۹۰ هـ) پخپل کتاب المعالی شرح آمالی کښ فرمائی :- حضرت سید محمد گیسو دراز صحیح نسب حسینی سید ده. د بلوچستان ډسټرکٹ گزیټیر، کوټه پشین ډسټرکٹ بابت سنه ۱۹۰۶ء په صفحه ۲۷ کښ چه کوم تفصیل درج دے. د هغے نه هم د حضرت میاں صاحب د پورتنی بیان تصدیق کیږی لیکی: د سید محمد گیسو دراز سلسله د نسب په دیارلسم پښت کښ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته رسیږی. دے د بغداد شریف په مضافاتو کښ د اوش نومے کلی نه د کوه سلیمان علاقے ته راغلے وو. او د ر ودِ فرمل (برمل) په غاړه استوګن شوے وو. دده لوړه بی بی د کاکړ قبیلے وه. د هغے نه ئے مشوانی نومے ځوئ پیدا شو. بله بی بی ئے د شیرانی قبیلے وه چه د هغے نه ئے اشترانی نومے ځوی پیدا شو (چه نن ورځے ددے اشترانی اولاد د بلوچستان د لورالائی په علاقه کښ آباد دی. بله بی بی ئے د کرلانی قبیلے وه د هغے نه ئے دوه ځامن پیدا شول. وردګ. هنی (چه ددے دواړو نسل په ټول بلوچستان - افغانستان او سابق صوبه سرحد قبائلی علاقو او سرحدی ریاستو کښ خور دے.

دَ علم اصول تاریخ په بناء دَ سل کاله زمانے دَ پاره حد درجه درے کسان
اندازه کوولے شی. هر کله چه سید محمدؒ گیسو دراز دَ پاک نبی علیه السلام
نه په دیارلسمه پیړۍ کښ دے. نو پدے اعتبار موبزه او ویل چه دے سنه ۴۳۰ھ
دَ زمانے سره تعلق لری. او هر کله چه سید محمدؒ گیسو دراز ثانی په پنځویشتمه
پیړۍ کښ دے نو دَ اصول تاریخ په بناء دَ هغه زمانه سنه ۸۳۰ھ کیږی. او دغه
هم دا دی چه هغه په سنه ۸۲۵ھ کښ وفات شوید ے.

دا خبره چه سید محمدؒ گیسو دراز اول په سنه ۴۳۰ھ دَ زمانے دے.
ددے تائید دَ هغه شجره نسب نه هم کیږی چه مرحوم سید یوسف شاه مشوانی
دَ سری کوټ ضلع هزاره پخپل کتاب "حالات مشوانی" کښ درج کړے ده. یعنی:
سید یوسف شاه بن حاجی سید محمد نور بن سید ناصر بن سید زوتا بن
سید شایسته بن سید عظمت شاه بن سید نعمت شاه بن سید ولی
داد بن سید سلطان شاه بن سید رحیمداد شاه بن حاجی سید عمر
شاه بن حاجی سید سلیمان شاه المعروف په لنډه بابا علیه الرحمة بن
سید حسین بن سید یوسف بن سید شاه مراد بن سید تفاحص
بن سید غفور بن سید عبدالله بن سید کریم بن عبدالرؤف بن
عبدالجلال بن عبدالغفور بن عبدالرحیم بن سید محمود بن سید
یوسف بن سید صدور بن سید نغمض بن مشوانے بن سید محمد گیسو دراز
علیهم الرحمة والغفران دے.

ددے پورتنۍ شجرے دَ درج کولو نه دا غرض وو چه هر کله چه سید یوسف
شاه دَ سنه ۱۹۲۱ء دَ زمانے سرے دے. او دَ سید محمد گیسو دراز نه په ۲۹ پیړۍ
کښ دے. نو ظاهره ده چه سید محمد گیسو دراز په دے حساب سره دَ دَ
نه ۹۶۳ کاله مخکښ زمانے یعنی دَ سنه ۱۰۴۸ء مطابق سنه ۴۳۹ھ دَ زمانے دے. او
په دے حساب دَ سلطان محمود غزنوی همعصر دے. ځکه چه سلطان

محمود علیه الرحمة په سنه ۱۰۳۰ھ مطابق سنه ۱۴۲۱ء کښې وفات شوی دی.

په دې سلسله کښې د سید محمد گیسودراز په حقله د ټولو پښتنو مؤرخانو بیان داسې دی. (د تاریخ خورشید جهان فارسی بیان لفظی پښتو ترجمه داده.) امابعد کیفیت د حالاتو د سید السادات میر سید محمد گیسودراز داسې وو. چه په زمانه د ژوند د مورث اعلیٰ شیرانی کښې یو سړی صالح. دیندار متشرع. پرهیزگار. صاحب د کراماتو چه سید محمد نوم ئې وو. په منځ د آبادۍ د درې ټمن (قبائیل) کښې راغې. قرار او سکونت ئې اختیار کړ. او د پاره د استوګنې خپلې مینه جوړه کړه. چه یو خواته ترینه د کاکړ د تومنې زمکه وه. بل خواته ئې د کرانی ټمن وو. او بل طرف ته ئې د شیرانی ټمن وو. ډیره موده ئې په دغه مکان کښې اقامت وکړ. او د درې واړو ټمن خلق د الله د دغه برگزیده انسان د ذات عالی صفات نه مستفید وو. اتفاقاً بلاګانې. وباګانې. لوئې بیمارۍ او سخته ویره. آفات په درې واړو ټمن راد وخاره شوې. ډیره نزدې وه. چه دوئ د حادثاتو د لاسه پایمال شي. رئیسان د درې واړو ټمن په یو اتفاق (په اتفاق د التجاء خواست) په جانب د میر سید محمد ورغلل. او همت او امداد د دُعا ئې له هغه ولی الله نه اوغوښت نذر، هدایا او فتوحات ډیر ئې او منل. منښے ئې اوکړې. حق سبحانه وتعالیٰ په برکت د دعا او توجه او همت د بزرگوار نو بلاګانې او وباګانې د دغه پلے نه برطرف کړے. او د دغه پس اعتقاد او یقین د درے واړو ټمنو په احوال خیرمال د میر سید محمد زیات شو. او تحفه د خپلو منلو شوُو منښتو ئے راغونډه او په نظر فیض منظر، کیمیا اثر د سید میر محمد کښې تیره کړله. حضرت سید هیڅ یو څیز ته له هغه څیز ونو التفات او نه فرمایه. قبول ئے نه کړل. د دغه ټولے د مشرانو د درے واړو ټمن مایوسه شو. وئے غوښتل چه کوم یو خدمت غوره چه منظور په نظر شریف

دَ دوئ کښې اوګسو ځیږي - ورانده ے کول پکاردي. یوله بله مصلحت اوکړه. اودَ پسه رئیس دَ هر یو ډمن بچلے خپلے په طور دَ نذراو نیاز دَ حضرت سید په خدمت کښې پیش کړے. میر سید محمد (دَ درے وارو ډمن دَ مشرانو) درے وارو بچلے دَ باره دَ دے چه نکاح کړي منظور کړے. او په عقل صحیح شرعي محمدي سره ئے واده کړے. له هرے یوے ماینے ئے اولاد نارینه پیدا شو. سید محمد بخپل هغه ځوئ چه له کاکړے بي بي ځخه پیدا شوے وو. مشوانے نوم کیښودہ. اوله شیراني تبرلا پیدا شوي ځوئ باندے ئے شیراني نوم اوله کوړاني تبرلا پیدا شوُ و غبرګو نو ځامنو نوموننه ئے وردګ او هنی کیښودل. له دے ځلور وارو ځامنوئے کوم نمسي پیدا شول په ترتیب سره نومونه ئے دادي.

مشواني | دَ مشواني بنه ځامن پیدا شول نونونه ئے دادي. تفضل. لودین. متکاني. یالکاني. سلماني یا سماري. روغاني. کز بوني یا کزبوتے غریب. خوبارے یا زربارے ریاض یا غز په دوئ کښې دَ مشري ځوئ تفضل ځلور ځامن وو ترک[1] کیسور[2] (خیسور) مهمند[3]. بدور[4] او بیادَ بدور ځلور ځامن وو. سنجر. موسیٰ. آدم. یوسف بیا دَ یوسف نه عثمان او محمود.

استراني | دَ استراني پنځه ځامن وو. سنځي. تري. مریري. امراخیل. سیدعمر (عمر)

وردګ | دَ وردګ ځلور ځامن وو. سید نور. سید داني. سید میر سید کدا

هني | دَ هني پنځه ځامن وو. دولت. برغزے. مردون. مجکے. زوشت (یا دوست محمد)

روستو دَ سید محمد کیسودراز دَ هر یو ځوئ دَ نسل نه لوئ لوئ قومونه او قبیلے جوړے شوے دي. په برصغیر پاک او هند او افغانستان کښې خوارۀ

خوارہ پراته دی. او تعداد ئے د لکھونونه زیات دے. د پښتنو موږ خانود روایت مطابق حضرت سید مشوان. اشتران. وردک او هنی پخپله زمانه کښې مشهور اولیاء الله وو. او د دوئ زیارتونه د کوه سلیمان په مختلفو حصو کښې دی. او مرجع د خاص او عام دی. د دے ټولو رواړه بزرګانو اولاد په افغان قبائیلو کښې سید زادګان ګڼړلے شی. سیدان هم ورته وائی. او چونکه د دوئ میندے پښتنې وے. په دغه وجه افغانان هم ورته وئیلے شی. لیکن په خصوصیت سره د "سادات افاغنه" په امتیازی نوم سره یادیږی. یعنے دوئ هم سیدان دی. (د پلار د طرف نه) او هم افغانان دی (د مور د طرفنه) ځکه د "سادات الافغان" په خصوصی نامه یادشول او "ستانه دار" ګڼړلے شی.

په ټوله پښتونخوا او برصغیر پاک وهند کښې د "سادات افاغنه" قبائیل لکه د نورو پښتنو قبائیلو په شان د تعداد او آبادئ په لحاظ سره ډیر زیات شوی دی. او هر کله چه ستانه دار ګڼړلے شی. په دے وجه د دے سادات و مختلف خاندانونه د مختلفو پښتنو قبائیلو سره د ملک په مختلفو حصو کښے خوارہ وارہ پراته دی. او د روحانی پیشوایانو په طور د قوم رهنمائی کوی.

## اشترانی سادات

په دوئ کښې اشترانی سادات په بلوچستان کښې د کاکړ او ترین وغیره قبائیلو سره او په ډیره ډویژن کښې د وزیر محسود. بیټنی. د وړ قبائیلو سره یوځای اوسیږی. په مغربی او مشرقی پنجاب کښې هم آباد وو. حضرت شیخ ملهی قتال او شیخ صدرجهان په دے کورنئ کښې لوئ بزرګان تیر شوی.

## وردک او روغانی سادات

وردک او روغانی سادات په بلوچستان سابق صوبه سرحد. قبائلی علاقو او افغانستان کښې خوارہ دی. په خصوصیت سره روغانی

سادات په ضلع مردان کښې. او د ریاست دیر په درے درو کښې درهٔ تورمنګ. دره ډوګ. درهٔ ملاکنډ کښې زیات آباد دی. او ورډک سادات په بلوچستان ضلع پیښور. ریاست دیر. سوات او د برصغیر پاک وهند په نورو مختلفو علاقو کښې او په خصوصیت په سمت جنوبی افغانستان کښې ډیر زیات آباد دی۔

## هنی سادات

دا سادات هم د پښتنو د مختلفو قبائیلو سره شریک او خوارهٔ وارهٔ پراته دی. یو خاندان ئې په قبائیلی علاقه باجوړ کښې موجود دے. په دے خاندان کښې ډیر لوئ اولیاء الله تیر شوی دی۔

## سادات مشوانی

د سید محمد گیسودراز په اولاد کښې زیات شهرت د دهٔ د مشری ځوئ "مشوان" اولاد ته حاصل شوے دے. او لکه چه مخکښې ورته اشاره وشوه. په برصغیر وهند او افغانستان کښې خواره دی. د مشوانی قبیلے سادات د خپل نوم سره لفظ د میر یا میران استعمالوی. لکه چه نور سادات د خپل نوم سره لفظ د شاه لیکی. په بلوچستان کښې ځینې کښې لیکی چه مشوانی سیدان دی. د سید محمد گیسودراز د نسل نه دی. چه سلسله د نسب ئې په دیار لسم پښت کښې پاک رسول ص ته رسیږی. او د بغداد شریف د اوچ نومے کلی نه راغلی وو. د مشوانی سادات خلق چه په مختلفو علاقو کښې آباد دی. دلته په اختصار سره د فائدے په خاطر یو اجمالی تذکره ئې درج کول مناسب گنړو.

۱ — د غزنی خیل قبیلے په علاقه کښې مشوانی خلق زیات دی. پنجپاے. محمد خیل. چمی زاے کښې مشهور قبیلے دی۔

۲ — د دے درے واړو قبیلو خلق د افغانستان د کرم سیر نومے ملک په شرار ود نومے علاقه کښې هم آباد دی. شرارود د

دَ قندهار ښهر نه جنوب طرفته واقع دے. پنجپائی. میخانی زائے. سرکوزی.
سعید خیل او محمد خیل ئے دَ کلونو نمونه دی. په سنه ۱۹۲۶ء کښ سید
محمد اختر المعروف په اختر جان آغا ژوندے وو. او دَ قلمی یاداشتونو
یوه لویه ذخیره ورسره موجوده وه. چه څما کران دوست سید
نصرالله جان مشوانی داسماعیلا ضلع مردان ورسره ملاحظه کړے وه.
په سنه ۱۹۰۷ء کښ په شرار ود کښ دَ سادات مشوانی مردم شماری
۵۰۰ کوره وه. په آئین اکبری کښ دَ شرار ود دَ مشوانی ساداتو ذکر
موجود دے. دد ے "شرار ود" دَ مشوانی ساداتو څینے مشران دَ احمد
شاه ابدالی په زمانه کښ دَ سابق صوبه سنده علاقے ته راغلی وو. دَ
لاړکانه سټیشن او جنکشن روک ترمنځه په موضع منډیجی کښ دد ے
ساداتو دَ نسل خلق ترننه ورځے پورے موجود دی.

۳ دَ بلوچستان په تاریخونو کښ دَ سادات مشوانی ذکر دَ اچک زی
کاکړ. کاسی وغیره قبائیلو دَ لومونو سره یوځائے کوو لے شی. او
ستانه دارکنړ لے شی.

۴ دَ هرات او قندهار ترمنځه یو تاریخی مقام دے. چه نوم ئے "فراه"
دے. (دا مقام دَ قندهار او هرات په سرک دَ قندهار نه ۲۳۳ میله په
فاصله دَه. چه دد ے نه بیا تر سبزوار ۹۴ میله او دَ سبزوار نه تر هرات ۸۰
میله فاصله دَه.) په فراه کښ چه کوم مشوانی سادات آباد دی. هغوی ځان ته
فاطمه خیل وائی. دَ دوئ دَ مشهور کلی نوم جان محمد دے. خبره دا سے دَه. چه
په فاطمه خیل ساداتو کښ درے مشاهیر بزرګان وُو. جان محمد. خیر محمد.
ولی محمد. په دوئ کښ دَ مورث اعلیٰ جان محمد دَ نسل سادات په فراه کښ اوسیږی.
دَ ولی محمد دَ نسل سادات دَ شرار ود په پنجپایه. محمد خیل او سعید خیل
نومے کلو کښ آباد دی. (په پنجپائی کښ سید محمد امیر چه محمد خیل او سعید

محمد خیل کښې سید شیر محمد بابا. په چمې زائ کښې سید رسول بخش او په موضع سرکوزی کښې سید فیض محمد یادکسان وو ) او دَ مورث اعلیٰ خیر محمد دَ نسل خلق دَ دکن حیدرآباد په بهرو چ نومې علاقه کښې آباد وو.

۵ دَ افغانستان په هرات نومې ښهر کښې دَ مشوانی ساداتو شپېته او یا کورونه موجود دی دوئ ته شکورخیل وائی. دَ نورو ساداتو په شان جاګیردار دی. سید عبدالرحمان او سید مؤمن پکښې یاد سړی تیرشوی دی. د دغې نه علاوه دَ هرات په صوبه کښې دَ مشوانی ساداتو تقریباً یو زر خانداونه آباد دی. په موضع خوشاب (دِه قلعه نو) ضلع باد غیس صوبه هرات کښې سیّد بهاء الدین ولد صوفی عبدالغفار نامور سړے وو. او دَ خپلې علاقې نه دَ حکومت افغانستان دَ مجلس عالی اعیان رکن وو. په دے علاقه کښې سید حاجی راز محمد خیل مشوانی او سید عبدالرحمان مشوانی نامور سړی وو.

۶ په قندهار افغانستان کښې دَ مشوانی ساداتو تقریباً یو زر خاندانونه آباد دی. دَ ښهر قندهار بازار هرات سید شرف الدین اخند زاده لوئ عالم او دَ جامع مسجد امام وو. دَ قندهار دَ قلعه سره نزدے ئې خانقاه وه. دَ قندهار ښهر نه جنوب طرفته دَ څلویښت میله په فاصله په موضع سنګ حصارک کښې دَ مشوانی ساداتو دَ قبیله حسن خیل. چمې زائے. پنجپائ او میخانی زائ قبیلو خلق تقریباً پنځه سوه کورونه آباد دی. دوئ دَ سنه ۱۸۷۰ ء په خواؤشا کښې دلته راغلی دی. سید محمد اکبر او سید جان محمد پکښې نیکان خلق تیرشوی دی.

۷ دَ افغانستان په کوه دامن نومې علاقه کښې دَ کابل ښهر نه شمال طرفته دَ ۱۲ کوس په فاصله دَ مشوانی ساداتو تقریباً شپږ سوه کورونه آباد دی. دَ دوئ دَ مشهور کلی نوم "قره باغ" دے. دلته دَ آکاخیل قبیلې خلق زیات آباد دی. دغه شان دَ کابل هم پدے

شمالی کوهستان کښې دَ ۱۸ کوس په فاصله په قلعه سفید کښې او په مشهور تاریخی مقام "انغر" کښې هم دَ مشوانی سادا تو تقریبًا څلویښت کورونه آباد دی.

۸ — دَ کوټه ډویژن په مرکزی ښهر کوټه او مضافاتو کښې دَ مشوانی سادا تو تقریبًا اوځیا خاندانونه آباد دی. دَ دینی علمونو عالمان او نیک خلق پکښې موجود دی.

۹ — دَ ریاست سوات دَ مرکزی مقام منګوره سره نخا مخ په موضع ګناله کښې مشوانی سادات موجود دی.

۱۰ — دَ ضلع مردان په کومو کلو کښې چه مشوانی سیدان آباد دی. دَ هغو کلو نومونه دادی. شمو زائی. بابو زائی. کوټکې. اسماعیلا. یارحسین. سره چینه.

## سید محمد کرم و سید محمد اکرم مشوانی رح

دَ ضلع مردان په پورتنو کلو کښې چه کوم مشوانی سادات آباد دی. دا ټول دَ یو سړی اولاد دی. چه دَ هغه نوم حضرت سید محمد کرم علیه الرحمة وو. او په سلسله عالیه نقشبندیه کښې دَ حضرت شیخ یحیی المعروف په حضرت جی صاحب دَ اټک علیه الرحمة خلیفه او مرید وو. دَ حضرت سید کرم دَ مشر رور نوم محمد اکرم وو. دا دواړه په قوم حسن خیل المعروف سین خیل وو. دَ خپل پیر طریقت په حکم سره په سنه ۱۱۰۰ھ کښې دَ ضلع مردان اسماعیله ضلع ته راغلی وو. او دلته دَ اکوخیل نومې تمام دَ ملک زی نومې قبیلې دَ خلقو سره یوځائی آباد شوی وو. او په احمد خیل قبیله کښې ئې واده کړې وو. څه موده پس حضرت سید محمد اکرم علیه الرحمة دَ تحصیل پلیښور ریګی نومې کلی ته په کډه لاړ او هلته آباد شو. هر کله چه په سنه ۱۱۳۶ھ کښې حضرت جی صاحب

وفات شو. نو حضرت سید محمد اکرم بیا د حضرت جي صاحب د اټک د مشر خلیفه حضرت میاں صاحب محمد عمر د څمکنو نه تجدید د بیعت کړے وو. او د حضرت میاں صاحب د نامورو خلیفه ګانو نه شمارلے شو. د مسعود ګل پاسني د روایت مطابق حضرت شیخ سید محمد اکرم لوئ بزرګ وو. او په مرتبه د اوتاد وکښ وو. د میاں صاحب د مناقبو په تولو کتابونو او تذکرو دده ذکر راغلے دے. دده اولاد په ریکي کښې ؟

۱۱ د افغانستان او مغربي پاکستان په سرحد باندے د افغانستان د سمت مشرقي (صوبه ننګرهار) په انتهائي مشرق کښې پر دا لګام، اسمار. نور ګل. نورستان. پیچ. ساؤ. ناړئ کښې او د مغربي پاکستان د قبائلي علاقو باجوړ په دره باتوار کښې او د موجوده ریاست دیر په دره برول بالا. دره جندول. دره کامبټ. دره مسکیني. دره شاهي. دره جان بټئ. دره میدان کښې آباد دي. د شمال مشرقي پاکستان او شمال مغربي پاکستان دا بورتنۍ علاقے د یو بل سره پیوستے پرتے دي. په دے ټولو علاقو کښې تقریباً د پنځوس زره په تعداد کښې مشواني سادات آباد دي. او هیر لوئ لوئ عالمان او بزرګان پکښې تیر شویدي. چه د هغوي خانقاهو او مزارونه ترننه ورځے پورے مرجع د خاص او عام دي. په دے زمانه کښې د دره مسکیني وادۍ جندول په بوسته نومے کلي کښې د مشواني قوم په آکا خیل قبیله کښې مولانا سید محمد ګل زمان ولد سید محمد بصیر المعروف په باباجي صاحب د بوستے علیه الرحمة پکښې عالم او بزرګ سړے تیر شویدے. د مغربي پاکستان په دے شمالمغربي علاقو کښې او ورسره د افغانستان په متصله شمالمشرقي علاقو کښې د مشواني ساداتو د کومو قبیلو خلق چه آباد دي. د هغو قبیلو نومونه دا دي.

کاني خیل. آتو خیل. شنو خیل. کلے زي. رستم خیل. علي خیل. عثمان خیل.

میروخیل. باباخیل. مغلکی. آکاخیل. دَ آکاخیل قبیلے خلق په خصوصیت سره په مواضعات بوسته. بنی. چهل. ساپوکی. کوه گنج کښں آباد دی. او ددے قبیلے مورث اعلیٰ دَکوه دامان (افغانستان) نه راغلی دی.

۱۲ | په پیښور ښهر او شاوخوا علاقو کښے مشوانی سادات موجود دی. او ډیر لوئی عالمان او بزرگان پکښں تیر شویدی. په دوئ کښں دَ پلوسئ نومے کلی دَ سادا تو خاندان زیات مشهور دے.

۱۳ | په ضلع هزاره کښں چه کوم مشاهیر سادات دی. دَ دوئ په حقله دَ لندن په اخبار مانچسټر گارډین بابت ۲۲ ستمبر سنه ۱۹۲۲ کښں دَ مستر جے. کوټ مین یو مضمون چاپ شوی وو. په هغے کښں ئے دَ دوئ دَ ټولو لویو وړو نارینه وزنانه و مجموعی تعداد دیرش زره ښودلے وو. دَ هغے نه روستو ترننه ورځے په تیر وشوُ دوه ځلوبیښتو کلونو کښں دَ دوئ تعداد به یقیناً چه ځلوبیښت زره ته رسیدلے وی. ددے سادا تو خلق دَ ضلع هزاره په دے لاندینو کلو کښں آباد دی...

سری کوټ. کنلهی. امرخانه. گډوالیان. پیپل په دے کښں سری کوټ دَ دوئ مرکزی مقام دے. او په مجموعی لحاظ سره دَ کوه گنگر نه واخله دَ تربیله پورے او دَ میدان هزاره. میدان یوسفزاے. میدان چهچهه په علاقو کښں خوا ره پراته دی. دَ سری کوټ تحصیل هری پور ضلع هزاره په علاقه کښں دَ دوئ دَ کلو او بانډو شمیر تول یو شپیته دے. او دَ کنلهی او امرخانه سره متعلقه اوه بانډے دی. په دے حساب په ضلع هزاره کښں مشوانی سادات تقریباً په اویا وړو او لویو کلو کښں آباد دی.

دَ ضلع هزاره علاقے نه دَ مشوانی سادا تو دَ راتللو په باب چه دَ "حالات مشوانی" نومے کتاب فاضل مؤلف سید یوسف شاه مشوانی ځو مره روایتونه راجمع کریدی. په هغے کښں دَ تاریخ په رڼا کښں صحیح سنه

تاسیری۔ البته دومره صحیح دهٔ چه دَ سید محمد گیسو دراز نه را شکته
اوَدَ هغه په نمسو کښې په دولسمه پیړۍ کښې نمسے حضرت سید عبدالغفور
المعروف "کپورشاه" اولنے مورث اعلیٰ دے چه سری کوټ ته راغلے
وو۔ بیا ددهٔ دوهٔ نمسی رو۔ یو ابوسفیان چه دَ هغه اولاد په مواضعا
کنډی او امرخانه کښې آباد شول۔ او دویم شاه مراد وو چه ددهٔ
اولاد په سری کوټ او خواؤشا علاقه کښې آباد شول۔

## حضرت سیّد سلیمان علیه الرحمة

دَ حضرت سید شاه مراد په اولاد کښې حضرت حاجی سید سلیمان
علیه الرحمة المعروف په لنډه بابا علیه الرحمة مشهور روحانی
پیشوا تیر شوید ے۔ چه دَ زمانے په لحاظ دَ لودهی خاندان دَ بادشاهیٔ
بزرګ دے۔ محامهربان دوست سید نصر من الله مشوانی پی۔ اے دَ
"شمالی وزیرستان" ددغه نامور بزرګ په اولاد کښې دے۔ چه یو
نیک دینداره او عالم فاضل انسان دے۔

۱۴ | په ضلع ډیره اسماعیل خان۔ وزیرستان او علاقه خوست افغا
نستان کښې هم دَ مشوانی سادات کنږ خانونه موجود دی۔

## حضرت سید الطائفه سیدنا آدم بنوریؒ

په مشوانی ساداتو کښې چه کوم جلیل القدر بزرګ تیر شوید ے۔ اوَدَ
هغه فیوضات په ټول مغربی پاکستان خصوصاً دَ سابق صوبه سرحد۔
قبائیلی علاقے سرحدی ریاستونو او افغانستان په علاقو کښې خوارهٔ دی۔
هغه دَ حضرت سید الطائفه سید السادات شیخنا ومولانا حضرت سید
آدم بنوریؒ ذات بابرکات دی۔ جمو بزید ے ملک کښې ددے نامور روحانی
رهنما مریدان او خلیفه ګان دَ دین اسلام روښانه مشعلونه دی۔ خلاندهٔ
ستوری دی چه داټول ملک پرے روښانه دے۔ حضرت سیدنا شیخ

حبیب[1] پشاوری. حضرت سیدنا مولانا محمد فاضل[2] پاپینی دمته مغل خیل. حضرت سیدنا حاجی عبد اللہ[3] بہادر کوهاتی. حضرت سیدنا میاں نور محمد[4] د سلامپور سوات حضرت سیدنا اخون[5] الیاس د ریاست دیر حضرت سیدنا محمد عمر[6] د چینکئ اتمان خیل باجوړ. حضرت سیدنا محمد امین[7] صدیقی د پیښور ښهر. حضرت سیدنا محمد صدیق[8] د آسو قاسمی ضلع مردان. حضرت سیدنا محمد صدیق[9] د تهکال ضلع پیښور. حضرت شیخ محمد گل[10] ولد شیخ رحمکار کاکا صاحب د پیښور د نوښهر. حضرت مولانا سعد اللہ خان[11] صاحب د وزیر آباد پنجاب. حضرت مولانا شیخ سعدی[12] د لاهور او د اسے بے شمیره نور مشاهیر بزرګان او بیا د هغوی مریدان او د مریدانو مریدان یو عظیم الشانه سلسله ده چه څومره په دے ملک کښې د د ریاے آمو نه تر مشرقی پاکستان پورے خوره ده. او دا ټول ملک د حضرت سیدنا آدم بنوری د انفاس قدسي په خوشبوئے معطر دی. حقه خبره دا ده که په سادات مشوانی کښې بل یو بزرګ هم نه وے پیدا شوے نو یوا ځې د حضرت سیدنا آدم بنوری علیه الرحمة په وجود مبارک چه دے مبارک خاندان ته کوم افتخار حاصل شویدے. هغه ورله پوره دے. په وادئ پیښور کښې حضرت میاں محمد عمر د څمکنو. حضرت سید محمد د سدهوم میاں مانون د شاه منصور. میاں محمد مؤمن د ماشوګګر. شیخ عبد الغفور د پیښور ښهر. شیخ جنید پشاوری. د بشونی صاحب. د عمرزو صاحب. د تور ډهیری صاحب. د سوات صاحب. د کربوغے صاحب. د چارسدے میاں رامباز. میاں محمد شیخ سنت د تنګی د شیر و صاحب. د چارسدے د ځږه حافظ محمد صادق صاحب د شیرپاؤ. بابا ګان. د مؤمن خان ډهیرئ شیخ محمد مؤمن. د میاں ګوجر و شیخ رحیمداد صاحب. د اکبر پورے شیخ رضوان. د ریګی شیخ محمد اکرم. د ګوجر ګړهی میاں عبد الحکیم بخاری. میاں عبد الحکیم

کاکړ دَ بلوچستان او بے شمیره نور مشاهیر دا ټول دَ حضرت سیدنا آدم بنوری
دَ سلسلے هغه بزرګان دی چه دَ سلسله عالیه نقشبندیه په فیوضاتو
ئے ځمونږ په دے ملک کښې دَ شریعت محمدی خدمت کړے دے. او دَ دوئ
دَ تعلیماتو له برکته په دے ملک کښې اسلام ته عزت. حرمت. شرافت او
وقار حاصل دے. (روستو به دَ دے اکثرو مشاهیرو بزرګانو تذکره راشی)

دَ حضرت سیدنا آدم بنوری علیه الرحمة دَ ځامنو او نمسو اکثر
مزارونه ځمونږ په دے علاقه کښې دی او دده اولاد په بنور خیل ساداتو
مشهور دی. په شرار و دافغانستان کښې او په کوټه کښې چه کوم بنور خیل
سادات دی. دَ هغوئ مورث اعلیٰ سید داؤد په نهم پشت کښې دَ حضرت
سیدنا آدم بنوری علیه الرحمة نمسے دے. بنوری سادات په پیښور. کوهاټ.
کابل. باجوړ. سوات. مردان. کوټه. پنجاب. سنده او هر وطن کښې
موجود دی. او دَ لوئ عزت. قدر او منزلت او دَ علم او بزرګئ خاوندان دی.

## سادات تارن

دَ سمت مشرقی افغانستان او شمال مغربی پاکستان هغه علاقے چه په فقره ۱۱
کښې ئے ذکر اوشو. په هغے کښې چه کوم مشوانی سادات آباد دی. دَ دوئ
سره دَ "سادات افاغنه" دَ یو بل شاخ سادات هم یوځائ آباد دی. چه هغوئ
ته تارن او تاران سادات وئیلے شی. تارن سادات په قبائیلی علاقه باجوړ.
دره یا بوقره. وادئ جندول. وادی میدان. وادئ برول وغیره علاقو
کښې اوسیږی. او دَ بلوچستان په مختلفو علاقو خصوصاً فورټ سنډیمن او دَ
افغانستان په علاقه کوه دامان کښې هم آباد دی. او دَ ریاست کشمیر په زمکه
کښې هم دَ دے ساداتو کورنئ موجود دی.

## حضرت سید طاهر حسینی

دَ تاریخ صولت افغانی دَ روایت مطابق دَ پښتنو مورث اعلیٰ کاکړ نیکه په وخت

ځمنو کښې ئې یو خوی نوم تارن وو. د ده اصلی نوم سید طاهر وو. او
لقب ئې تارن وو. او کاکړ نیکه چپل خوی ښولې وو. په دغه وجه په ویش
کښې د کاکړ قوم سره حسابیږی. او هر کله چه د سید مشوان مور بی بی هم
د کاکړ نیکه لور وه. په دغه وجه سادات مشوانی او سادات تارن په اکثرو
ځایونو کښې سره یو ځائے اباد دی. د دے سادانو نوم په بلوچستان کښې په
تارن او تارنړ یادیږی. او په قبائیلی علاقه باجوړ وغیره کښې د تاران او
تارانړ په نامه یادیږی. د دوئ د مورث اعلیٰ حضرت سید طاهر علیه الرحمة
شجره د نسب دا سے ده.

سید طاهر[1] الملقب په تارن بن سید ناصر[2] بن سید علاء الدین[3] بن
سید قطب الدین[4] بن سید داؤد[5] بن سلطان کبیر[6] بن سید شمس[7] الدین بن
سید احمد[8] بن سید علی[9] رفاعی بن سید حسن[10] بن سید محمد[11] بن سید
جواد[12] بن سید امام علی[13] رضا بن سید امام موسیٰ[14] کاظم بن سید امام
جعفر[15] صادق بن سید امام محمد[16] باقر بن سید امام علی زین العابدین[17]
بن سید الشهداء امام حسین[18] رضی الله عنه بن سیدة[19] النساء بتول الجنة
بنت رسول الثقلین محمد مصطفیٰ صلی الله علیه وسلم۔

د حضرت سید تارن علیه الرحمة د خوئ نوم اخبر وو. د هغه د خوئ
نوم حضرت خواجه کبری وو. بیا د هغه پنځه ذامن وو. مکانون. ادین.
اسماعیل. نور. ابراهیم چه روستو هم د دوئ نه د دے تارن سادانو د
نسب سلسله خوره شوے ده. او هر کله چه سید تارن او سید مشوان دواړه یو وه
زمانه ده. په دغه اعتبار سره د دے دواړو زمانه ۸۲۳ھ اندازه کولے شی. د قطب
بنگاله حضرت شیخ علاء الحق عمر ابن اسعد لاهوری الافغان د نوم سره د اخوند رویزه په کتاب کښې
لفظ "نوری" لیکلے شوے ځیال دا دے. چه دے هم د "تارن" سادانو د یلی شاخ "نور" د کورنئ
څخه وو. او په دے اعتبار د سادات افغانیانو ممتاز فرد وو. علیهم الرحمة والغفران.

# حضرت شیخ خواجه یحیی کبیرؒ

ولادت: ——————— شهر علی سنه ۷۰۲ھ

وفات: ——————— شهر علی سنه ۸۳۴ھ

دَ سنه ۴۰۰ھ په شاوخوا کښې دَ غور غښتي. نیازي. لودهي پښتنو خلق دَ مغربي پاکستان دَ ډیرو ډیرو او کوټه ډیرو په قبایلي علاقو کښې دَ وادئ ګومل او وادئ ژوب دَ غزنیو دَ علاقو تر منځه دَ کوه سلیمان او کوه کسي په سناخونو کښې آباد وو. او په خصوصیت سره دَ غرغښتي قبیلې دَ درې واړه سناخونو کاکړ ناغر. دانۍ دَ نسل خلق دَ وادئ ژوب په خواوشا کښې اوسیدل. او بیا روستو هم دوی ځایونو ځنې دوئ په ټول مغربي پاکستان او بهارت کښې اوسید او هلته خواره شوي وو.

دَ تاریخ دَ بیانونو نه معلومیږي. چه هسې خو په پښتون قام کښې ډیر لوی لوی بزرګان تیر شوي دي. لیکن داسې هم شوي دي چه دَ سړبن. غرغښت بیټ په یو نه یو قبیله کښې یو داسې عظیم الشان بزرګ شخصیت پیدا شوی دی. چه هغه ددې درې واړه تمن یعنې سړبن. غرغښت. بیټ دَ ټولو قبیلو او خیلونو روحاني رهنما او پیشوا ګرځیدلی دی. لکه شیخ مستي خلیل سړبني علیه الرحمة شو. چه هغه دَ ټول پښتون قوم دَ تمامي تمنونو روحاني رهنما وو. روایت دی چه هم دَ دغه شان اوچت روحاني مرتبې خاوند او دَ پښتنو دَ ټولو تمنونو روحاني پیشوا او یو بل بزرګ حضرت خواجه یحیی کبیر علیه الرحمة وو. چه دَ سنه ۷۰۰ھ په ابتدائي زمانه کښې دَ کوه سلیمان په غرغښتي قوم کښې پیدا شوی وو. او دَ هغه فیوضات په ټول برصغیر پاک او هند کښې خواره شوي وو.

دَ تاریخ صولت افغاني مؤلف زرداد خان ناغر دَ دوئ په تذکره

کښې لیکي. دَ حضرت برهان الواصلین۔ قطب السالکین۔ متحلّی په متجلّی دَ ذات۔ متحلّی په حلیه دَ صفات۔ معدن دَ الهامات ربانی۔ منبع دَ انوار یزدانی۔ هغه غریق دَ فناء دَ وحدت۔ هغه لامبوزن دَ دریاب دکثرت۔ گنجینه دَ حقایق آلهی۔ خازن دَ مخزن لامتناهی خواجه یحی کبیر غورغشتی۔ چشتی، سهروردی علیه الرحمة دَ نیکه نوم محمد بختیار وو۔ دَ پلار نوم سید ابی سعید اسحاق وو۔ او په شیرانی قبیله کښې اوسیده۔ چه دَ مغربي پاکستان دَ کوټې په ویژه دَ کوه سلیمان په سناخونو کښې دَ دوی دَ قبیلے استوگن وو۔ دغلته په مقام دَ شهرعلی کښې په سکښره دا نیک انسان پیدا شوے وو۔ دا روایت دے۔ چه دے په ماشوم والے کښې هم دَ برخے خاوند وو۔ او دَ ولایت او دَ بزرگۍ نخښے پکښې موجود وے۔ دَ رمضان شریف روژے به یې نیولے۔ او یکه دَ نورو ماشو مانو خوشے لوبے به یې نه کولے۔ هیله به ځوانی ته رسید لے وو چه دَ دینی علمونو دَ تحصیل نه فارغه شوے وو۔ او بیا چه دَ پوخ ځلمی توب عمر ته رسیدلو۔ نو دَ پاکیزه اخلاقو معنوی او روحانی فضیلتو نه یې کمال ته رسیدلی وو۔ او دَ معرفت او حقیقت په تالاش کښې دَ ملک نه دَ سفر کولو آرزومند وو۔ چه دَ کوم یو مرشد کامل نه بیعت اوکړي۔ او دَ طریقت او معرفت کمال حاصل کړي۔

په دے سلسله کښې یو روایت داسے دے۔ چه په کومو ورځو کښې دَ دوی په زړه کښې دا خیال گرځیده [illegible] غه ورځو کښې یوه شپه یې په خوب کښې دَ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دیدار نصیب شو۔ دوی ته یې اوفرمایئل چه ستا پیر دَ اوچ بهاولپور سید جلال الدین حسین مخدوم جهانیان جهان گشت دے۔ چه دَ خوب نه رابیدار شو۔ نو پیر زیاتے خوشحاله شو۔ اراده یې اوکړه چه دَ شهرعلی نه روان شی۔ دَ بهاولپور اوچ ته ورشی۔ او هلته دَ حضرت مخدوم جهانیان نه بیعت اوکړي۔ لیکن اتفاق ته گوره چه هم په دغه منځ کښې حضرت مخدوم جهانیان چه دَ دنیا یې اسلام دَ سیاحت یې یاره

په کوم اولنی سفر تلے وو. دَ هغے نه دَ ایران او سیستان په لاره واپس چه بهاولپور ته راروان وو. دَ کوه سلیمان د غه شهر علی نومے مقام ته را ورسیده. او دمے دَ پاره د غلته پاتے شو. دَ دوئ دَ راتللو نه چه خواجه یحیٰ خبر شو نو بے اختیاره راروان شو. ویلے شی چه په دغه وخت کښې مخدوم جهانیان په جماعت کښې ناست وو. ناګاه یو هاتف پرے غیبی آواز وکړو. چه دَ کوه سلیمان دَ غرغشتی قوم یو سید خامے چه دَ نیکه نوم ئے محمد بختیار دے. او دَ هغه دَ پلار نوم ابی سعید اسحاق دے. ستا سلام له راروان دے. پاسیږه دَ هغه استقبال اوکړه. ځکه چه خدائ پاک هغه له دَ بزرګئ لویه رتبه ورکړیده. ستا په ذمه دَ هغه تربیت کوڵ دی. چه دَ طریقت او معرفت په مشهور و څوارلسو سلسلو کښې اجازت او خرقه دَ خلافت ورله ورکړے. چنانچه مخدوم جهانیان پاسیده. دَ خواجه یحیٰ مخے له ورغے. په غیږ کښې ئے اونیولو. او ډیره مهربانی ئے ورسره اوکړله.

په تاریخی اعتبار سره دا دَ سنه ۷۴۹ھ واقعه ده. د دغے نه روستو حضرت خواجه یحیٰ کبیر دَ حضرت مخدوم جهانیان سره اوچ بهاولپور ته راغے. او دَ مخدوم جهانیان دَ وفات سنه ۷۸۵ھ پورے خلوبینت کاله زمانه ئے د دے خپل پیر سره په سفر او حضر کښې په ملکرتیا کښې تیره کړله. او حضرت مخدوم جهانیان چه دَ دغے نه روستو هر څو واره دَ دنیائے اسلام سیاحتونه کړیدی. دے په ورسره وو. په سنه ۷۷۰ھ کښې ئے دَ هغوئ سره یو ځائ حج کړے وو. او دَ خراسان. بلخ. بخارا. سمرقند. عراق عرب. عراق عجم. شام وغیره ملکونو سیاحتونه ئے کړی وو. او په ایران. خراسان. برصغیر پاک و هند خصوصاً دَ پښتونخوا په ټولو علاقو کښې دَ اسلام دَ تبلیغ دَ پاره ئے دورے کړے وے. عام او خاص خلقو ته ئے دَ شریعت او معرفت تعلیم ورکوڵو. ډیر نیکان خلق ئے مریدان شول. او دَ بزرګئ او ولایت لوړ [illegible] ته ئے اورسول.

بلکه د اسلام د رڼا بے شمیره مشالونه ئے د ټول مغربی پاکستان په کوټ
کوټ کښې خوارۀ کړل. او بیا چه په سنه ۷۸۸هـ کښې د دۀ پیر طریقت حضرت
مخدوم جهانیان په حق اورسیدۀ نو د بخاری سادا تو د خاندان کښې
خاندانونه هم د دے حضرت خواجه یحیٰ کبیر غور غشتی په صلاح بانده
د کوټې نه ویړن پښین نومے مقام ته راغلل. او بیا روستو د دے ځائ نه
د مغربی پاکستان په ډیرۀ ویړن پیښور نه ویړن او نورو بے شمیرۀ علاقو
کښې د سادا تو دغه خاندانونه په تابین تابین خوارۀ شول. د پارۀ د دے چه
د اسلام د شریعت او معرفت کومه رڼا چه خواجه مخدوم جهانیان او خواجه
یحیٰ کبیر ځائ په ځائ روښانه کړے دۀ.

حضرت خواجه یحیٰ کبیر له خدائ پاک ډیرا اوږد عمر ورکړے
وو. شپږ ځلوېښت[۴۶] کاله د خپل د وفات نه روستو هم ژوندے وو. او د
یوسل اوۀ ویشت[۱۲۷] کالو په عمر کښې په دویم تاریخ د صفر المظفر سنه ۸۲۴هـ
کښې په حق اورسیدۀ. په دے روستنو شپږ ځلوېښتو کالو کښې ئے هم خپل
پیر طریقت حضرت مخدوم جهانیان هغه طریقه (یعنې د اسلام د دین
د تبلیغ د پارۀ دورے کول) جاری او ساتله. د مغربی پاکستان په بیله بیله
علاقه کښې ئے د تبلیغ او هدایت د پارۀ دورے به کوڵے. او خپل عمرئے د
خدائ په یاد او د خدائ مخلوق ته په فیض رسولو کښې تیرۀ ولو.

د مغربی پاکستان په خاورۀ چه هر څومرۀ قومونه او خلق په
هغه زمانه آباد وو. په هغوئ کښې چه هر څومرۀ خلقو ته د دوئ نه
روحانی فیض رسیدلے دے. د هغې مثالونه ډیر کم موندلے شی. د چشتیه
او سهروردیه بزرګانو په تذکرو کښې لیکلی دی. چه د حضرت خواجه
یحیٰ کبیر غور غشتی د باقاعده مریدانو او خلیفه ګانو تعداد یو لکه
درے سوۀ شپیته (۱۰۰۳۶۰) وو. په دومرۀ لوئ تعداد کښې کښې

مریدان یا خود دلته دَ پیر حضرت مخدوم جهانیان یادیږی - او یا دلته نه روستو دَ حضرت سید نا آدم بنوری علیه الرحمة دومره په لکهونو مریدان یادشویدی - خصوصاً په پښتنو بزرگانو کښې دَ بل چا دومره زیات مریدان نه دی یاد شوی۔

دَ حضرت خواجه یحیٰ کبیر غورغشتی هغه مشهور او لوئ لوئ بزرگان مریدان چه هغه په نام پښتانه دی۔ او بل دَ هغوئ زیارتونه دَ ټول مغربی پاکستان په مختلفو علاقو کښې خوارهٔ دی۔ او دَ دین اسلام روښانه او منور مشعلونه دی۔ چه ترننه ورځ دَ هغوئ په روحانی انوار و دا ملک روښانه دے۔ دَ تبرک په طور فقط دَ هغوئ دَ نومونو یو فهرست دلته درج کوو لے شی۔ رحمة الله علیهم۔

(۱) حضرت شیخ داؤد بیټنی۔ چه دَ حضرت خواجه یحیٰ کبیر مخدوم هم وو مزار مبارک ئے په وزیرستان کښې دے۔

(۲) حضرت خواجه عیسیٰ دوتانی کلان۔ علیه الرحمة۔

(۳) حضرت خواجه عیسیٰ دوتانی خورد۔ علیه الرحمة۔

(۴) حضرت خواجه حسن سرخ بیټنی۔ چه دَ حضرت خواجه یحیٰ کبیر سخر وو۔

(۵) حضرت خواجه ترک دوتانی۔ علیه الرحمة۔

(۶) حضرت خواجه مولانا ایوب سربنی علیه الرحمة۔

(۷) حضرت خواجه محمد ابراهیم استرانی علیه الرحمة۔

(۸) حضرت خواجه حسین حلوانی علیه الرحمة۔ چه دَ خواجه یحیٰ کبیر خوریے وو۔ او مزار مبارک ئے دَ ضلع مردان په موضع شاه منصور کښې دے۔

(۹) حضرت خواجه شمس الدین خضرخیل سروانی علیه الرحمة۔ چه مزار مبارک ئے دَ پیړے پوړن په موضع خضرخیل کښې دے۔

(۱۰) حضرت خواجه ملهی هندی، سرمیر سروانی علیه الرحمة. چه مزار مبارک ئې په بلند شهر نومې ښهر (بهارت) کښې دے.

(۱۱) حضرت خواجه جلال سروانی علیه الرحمة چه مزار مبارک ئې په ښهر دَ لاهور کښې دے.

(۱۲) حضرت خواجه ذکریا سوری علیه الرحمة چه مزار مبارک ئې په ملتان کښې دے.

(۱۳) حضرت خواجه مکی کړلانیؒ چه مزار ئې په کوه سلیمان کښې دے.

(۱۴) حضرت خواجه خلیل کړلانی چه مزار ئې په ارکزائې قبائیلی علاقه تیراه کښې دے.

(۱۵) حضرت خواجه رکن الدین میانی علیه الرحمة چه مزار مبارک ئې دَ ضلع بنوں په علاقه مروت کښې دے (میانی قبیله دَ شیرانی قبیلې یو ښاخ دے.)

(۱۶) حضرت مولانا علاء الدین غرغشتی چه مزار مبارک ئې دَ ضلع کیمبل پور علاقه چچ په موضع غرغشتی کښې دے.

(۱۷) حضرت خواجه خیر الدین کاذر علیه الرحمة

(۱۸) حضرت خواجه بلال نسبّاح علیه الرحمة

(۱۹) حضرت خواجه بختیار غرغشتی چه مزار مبارک ئې په حیدر آباد دکن کښې دے.

(۲۰) حضرت خواجه حسن بختیار غرغشتی چه مزار مبارک ئې دَ ضلع مردان تحصیل صوابی په کهون نومې علاقه کښې دے.

(۲۱) حضرت خواجه خان بختیار علیه الرحمة

(۲۲) حضرت خواجه شیخ سهیل بختیار غرغشتی علیه الرحمة چه مزار مبارک ئې په ایران کښې دے.

(۲۳) حضرت خواجه شیخ علی لاغری علیه الرحمة چه د خواجه یحیٰ کبیر غرغشتی سکه رور وو۔

(۲۴) حضرت خواجه احمدک علیه الرحمة

(۲۵) حضرت خواجه شیخ گدا علیه الرحمة

(۲۶) حضرت خواجه شیخ الک علیه الرحمة

دا درے واړه روستنی بزرگان سکه رونړه وو. په قام سروانی وو. د دوئ زیارتونه مبارک د ډیره اسماعیل خان د ویژن په علاقه سروانی کښې دی۔ علیهم الرحمة.

(۲۷) حضرت خواجه ارغند موجازائی علیه الرحمة

(۲۸) حضرت خواجه شیخ اسماعیل علیه الرحمة. دے په سلسله عالیه نقشبندیه کښې د حضرت مولانا عبد الرحمان جامی هروی علیه الرحمة هم مرید وو. په قام فرملی پښتون وو. د ده اولاد د ضلع کیمبلپور په علاقه چچ موضع فرملی کښې دے. او بچپله د دوئ مزار مبارک په ښهر لاهور (پنجاب) کښې دے.

(۲۹) حضرت خواجه کالو نوحانی علیه الرحمة

(۳۰) حضرت خواجه حید رذرکنی علیه الرحمة. د دوئ ولادت د کوټه د ویژن په موضع ساوان کښې شوی دے. مزار ئے په پیښور کښې دے.

(۳۱) حضرت خواجه معروف علیه الرحمة. دے د حضرت یحیٰ کبیر فرزند ارجمند وو. د خپل والد د وفات نه روستو په مقام د پیښور ښهر او بیا روستو په مقام د کابل ښهر کښې شیخ الاسلام او صدر الصدور وو. په پیښور ښهر گنج دروازه کښې یو جامع مسجد دے چه هغه په "مسجد جامع خواجه معروف" نوم یادیږی او تر ننه ورځے د دوئ یادگار پاتے دے. دا ډیر مبارک جماعت دے.

د روستو زمانے مشهور و بزرگانو یکښې قیام او اعتکافونه کړیدی
لکه اخون درویزه بابا علیه الرحمة. حضرت سید عبد اللطیف
المعروف بری امام د نورپور شاهان. حضرت شیخ جنید پښاوری
علیه الرحمة او میاں صاحب محمد عمر د چمکنو علیه الرحمة. د خواجه
معروف دے مبارک جامع مسجد لولوی بختور والے داد ے چه د
نیروشپږ وسو کلونو د دینی علمونو درسگاه او مدرسه پاتے
شوید ے. ماعبد الحلیم اثر د علم حدیث صحیح بخاری. صحیح مسلم
صحیح ابوداود او صحیح نسائی دوره هم پدے جامع مسجد کښې کړیده.
حضرت میاں محمد عمر د چمکنو په د خپل کلی چمکنو نه د جمعے مونځ گذارلو
له دلته راتللو. د حضرت خواجه معروف په مزار مبارک کښې اختلاف
دے. په یو روایت په کابل کښې دے او په بل روایت په پیښور ښهر کښې دے.
(۳۲) حضرت خواجه شیخ صدر الدین علیه الرحمة. دے هم د
حضرت خواجه یحیٰ کبیر فرزند ارجمند وو. دے او ده رور خواجه
معروف د کرامت او بزرگئ د اوچت عرفانی مقام خاوندان وو.
د ابو رته چه یاد شول. دا ټول څلور هغه روحانی رهنمایان
دی. چه ترننه ورځے د دوی د کوششونو په برکت څلور زرونه
او سینے د اسلام په انوارو روښانه دی. او دوی چه څلور د پاره
کوم عظیم الشان " روحانی ترون "
قائم کړے دے. د هغے په رشته مونږه ترلی شوی او ټول

(یو رونړه یو. خدائے
دے ورله نیک
اجر ورکړی
(کتبه سعید کامل)

# حضرت شیخ صدرالدین صدر جهان

## ۹۳۲ سنه

دَ ډیره اسماعیل خان ډ ویژن دَ دراین په علاقه کښې پښتنو دَ سروانی نومے قبیلے خلق اوسیږی. په دے کښې یوه وړه قبیله ده. چه دَ هغې نوم دے هری پال. او دَ هری پال دَ پلار نوم دے سروانی ده او ده رونړه وو. یوسینی. دویم سپلی (صولت افغانی ۲۸۶ و ۴۸۹)

دد دے سری پال نیکه نه او په سنکته په دواسم پښت کښې یو ډیر لوئ روحانی پیشوا او بزرګ سړے تیر شوے دے. چه هغه دَ شیخ احمد زنده پیر سروانی په نوم سره مشهور وو. چه په تاریخی اعتبار سره دَ ننه دَ زمانے بزرګ وو. دد دے شیخ احمد شجره دَ نسب داسے ده.

"شیخ احمد[۱] زنده پیر ولد شیخ علی شهباز[۲] ولد شیخ ملهی[۳] قتال. ولد شیخ سلیمان[۴] دانا ولد شیخ احمد[۵] جوانمرد ولد شیخ موسیٰ[۶] ولد شیخ محمود[۷] زاے ولد ابراهیم[۸] ولد ملک یار[۹] ولد شهباز[۱۰] ولد جعفری[۱۱] وند هری پال[۱۲] ولد سروانی[۱۳]

په دے شجره کښې دَ شیخ احمد زنده پیر نه بره تر شپږمے پیړئ یعنے تر شیخ موسیٰ پورے دا ټول نیکونه لوئ لوئ بزرګان تیر شویدی. چه دَ تاریخ کتابونه دَ دوئ دَ حالاتو نه ډک دی.

## حضرت شیخ ملهی قتال

په دوئ کښې په خصوصیت سره حضرت شیخ ملهی قتال هغه جلیل القدر بزرګ دے چه دَ حضرت غوث العالم بهاء الحق والملة والدین ذکریا ملتانی علیه الرحمة نه او دَ حضرت سید عثمان الملقب په لعل شهباز قلندر نه ئے فیض حاصل کړے وو. او دَ سلسله عالیه قادریه او سهروردیه مشهور

روحانی رهنما وو. او دَ دوئ دَ روحانی فیوضاتو نه په وادئ ګومل.
وادی ژوب او وادی کرم په میدانی او غرنیزه دواړو علاقوکښې دَ اسلام
رنړا خوره شوې ده. او هر کله چه غزا ګانې یې کړې دی په دې وجه
دَ قتال په لقب یادولے شي. دَ شیخ احمد زنده پیر په مشرانوکښې هم
دغه شیخ قتال اولنے بزرګ دے چه دَ قبائیلی علاقې سروانی نه دَ ډیره
اسماعیل خان دَ رابن نومې مقام ته راغلے وو. او مزار یې هم دغلته دے.

دَ حضرت شیخ احمد زنده پیر ولد شیخ علی شهباز
پنځه ځامن وو. چه په هغوئ کښې دَ ټولو نه دَ مشر ځوئ یې شیخ
صدرالدین نوم وو. او روستو په حضرت شیخ صدر جهان نامه
باندې مشهور شوې وو. او په خپله زمانه فاضل عالم. ولی کامل
او خدائ ته رسیدلے بزرګ وو.

---

حضرت شیخ صدر جهان دَ خپل اصلی وطن یعنې دَ رابن
ضلع ډیره اسماعیل خان نه دَ تبلیغ په غرض هندوستان ته روان
شو. او هغه ځائ ته ورغے چرته چه نن ورځ دَ "مالیرکوټله" نومې ښهر
آباد دے. دَ ستلج دریاب په غاړه دَ یوې وړې چړې (دَ دریاب سناخ)
په غاړه یو کوم ځائ کښې چه حضرت صدر جهان استوګنه فرمائیلې
وه. دَ هغې نخښې تراوسه پورې شته دے. په دغه زمانه راجو ده
مالیرکوټله نومې ښهر نه وو آباد شوې. څه نوم نښانه یې هم نه وه.
صرف یو وړکوټے شان کلے دلته موجود وو. چه دَ هغې نامه وه "جهوم"
هر کله چه حضرت شیخ صدرالدین دغلته دیره شو. او دَ خدائ پاک
عبادت یې شروع کړ. نو دَ دوئ دَ عبادت خانې حواته یوه عاجزه لوړئ
اوسیدله. مسلمانه وه مسالی نوم یې وو. دَ ټولو نه اول هم دغه بوډئ دَ
شیخ صدرالدین مریده شوې وه.

څه زمانه پس دَ دهلی مشهور پښتون بادشاه سلطان بهلول لودهی اونکیده. خپله لور یې شیخ صدرالدین له په نکاح ورکړله. څه زمانه پس دَ ډیرے خوانه دَ خدائی مخلوق پرے رامات شو. دَ مریدانو سلسله یې ورځ په ورځ زیاتیدله. دَ دوئ دَ روحانی فیوضاتو په برکت دَ لاهور او سرهند ترمنځه په دغه لویه علاقه کښې اسلام خور شو. په لکهونو کفار او مشرکان مسلمانان شول. نو په رښتیا سره چه په دغه علاقه کښې چه اسلام خور شو. ځکه چه دَ دوئ لقب هم زنده پیر وو.

دلته دا نیا دلرل پکار دی. چه سلطان بهلول لودهی په ۱۷ ربیع الاول سنه ۸۵۵ھ په تخت ناست وو. او په دویم تاریخ دَ شعبان سنه ۸۹۴ھ وفات شوید ے. دد ے نه دَ حضرت شیخ صدرالدین دَ زمانے اندازه لګیدے شی. او دا وئیلے شو چه په شیخ صدرالدین باندے دَ سلطان بهلول لودهی لور چه واده شوے وه. نو دَ هغه دَ بادشاه کیدلو دَ زمانے سنه ۸۵۵ھ نه روستو وه.

دَ هندوستان دَ دغه دور په تاریخ کښې دَ "صدر جهان زنده پیر" نوم لکه دَ نمر په شان ښکاره دے. دَ "لودهی خاندان" دَ دهلی بادشاهان لکه په ظاهری شکل دَ هند حکمرانان وو. نو "صدر جهان زنده پیر" دد ے هیواد روحانی بادشاه وو. حضرت "زنده پیر" علاوه دَ روحانی بزرګئ نه په پرلوئ عالم او فاضل هم وو. دَ علم فقه او شریعت په کتابونو کښې "فتاوی صدر جهان" دده اهم تالیف او مشهور کتاب دے. او هم دَ دوئ په برکت دَ موجوده مشرقی پنجاب په علاقه کښې "دَ علم رنړا" خوره شوے وه. او دلته کنړا اسلامی درسګاهونه او جماعتونه جوړ شوی وو.

هرکله چه دَ "شیخ صدرالدین" دَ روحانی کشش او اثر په وجه دَ خلقو ګڼړه زیاته شوله نو حضرت

" زندہ پیر" دَ یو نوی لوی کلی جوړولو اراده اوکړله. او په هغې باندې هم دَ هغهٔ مرید ے او عاجزے بوډئ چه مالی نوم ئې وو. دَ هغې په مناسبت سره مالیر نوم کیښود لو. او بیا چه په سنه ۹۳۲ هـ کښې حضرت شیخ صدرالدین صدر جهان وفات شو. او هم په دغه مالیر کلی کښې دفن شو. نو د هغه نه روستو د اور کوټے مالیر نومے کلے ورځ په ورځ آبادیده. آبادی ئې زیاته شوه. ان تردے چه ښهریه ترینه سازه شوه.

دَ حضرت شیخ زنده پیر دَ وفات تاریخ د دے دوه جملونه خیژی "فضل ایزد" ۹۳۲ "عارف المتقي" ۹۳۲. دَ حضرت صدر جهان دوه بیبیانے وے. یوه بی بی په نام باندے راجپوته وه. او دویمه پښتنه شهزادګۍ وه. دَ شهزادګۍ دَ نسل نه ئې چه کوم اولاد پاتے وو. د دغه کورنئ خلق ترننه ورځې پورے دَ حضرت شیخ دَ مزار منجوران دی. او دَ دویمې راجپوتې بی بی اولاد روستو د دغې علاقې حکمرانان شوی وو. مګر مقامی خلق د دے دواړو خاندانونو هر یو فرد ته خان صاحب وائی. دَ حضرت شیخ دَ مُنسوب وستو دَ مالیر خوا ته چه کوم حکومتی قلعه دَ کوټله په نوم جوړه کړے وه. دَ دے په وجه دغه ښهر دَ مالیر کوټله په نوم یادید لو. په سنه ۱۸۵۷ هـ کښې چه دَ مالیر کوټله په دے عزتمند خاندان کښې کوم نواب وو. دَ هغه نواب سکندر علی خان نوم وو. شجره دَ نسب ئې داسے وه.

نواب سکندر خان بن نواب محبوب علی خان بن امیر خان بن وزیر خان بن بهیګن خان بن جمال خان بن شیر محمد خان بن فیروز خان بن بازید خان اول. او دَ سنه ۱۹۴۷ نه مخکښې چه دَ ریاست مالیر کوټله کوم نواب وو دَ هغه نوم وو. نواب ذوالفقار علی خان چه یو علم دوست او علم پرور انسان وو. او دا به هیر وکمو خلقو ته معلومه وی. چه دَ پاکستان دَ نظریے دَ بانی علامه محمد اقبال مرحوم پرورش هم دغه نواب ذوالفقار علی خان کړے وو. په لاهور کښې چه دَ علامه اقبال کوم محل دے. او په "جاوید منزل"

نامه یادیږی. دغه مکان او کوټی د نواب ذوالفقار علی خان ملکیت و وجه د علم نوازئ او ادب پروری په طوریئے علامه مرحوم ته بخښش ورکړے وُ. د علامه اقبال په اشعارو کښ ځینے اشعار د "زنده پیر" په عنوان سره موجود دی. قطع نظر د دے نه چه په دغه اشعارو کښ مخاطبه د چا سره ده. پس منظر ئے دا دے چه په هغ کښ د حضرت شیخ صدرالدین خصوصی او خاندانی لقب "زنده پیر" ته بابیغه اشاره ده. علیهم الرحمة والغفران

---

یادګیرنه :- مخکښ د سید احمد زنده پیر په دوسم پشت کښ د بره نیکه نوم هری پال درج شوے دے. د ده اصلی نوم سید عارف الله بن سید باقر الملقب په عطاء الله المعروف په شیخ اتو شوریانی خویشکی غرغشتی ابن سید محمد الملقب په بختیار ابن سید ابی سعید اسحاق حسینی دے.

د ده نوم عارف الله دا سے لوستلے شوید ے. عارف آل. عارف دال. هری پال. سری پال (د حوالے د پاره ملاحظه کړئ د مجله اولس کوټیه خصوصی ګڼړه بابت سنه ۱۹۶۳ صفحه ۳۱۶) د اشترانی سادات خاندان د کوه سلیمان په علاقه شیرانی کښ د قبیله شیرانی سره یو ځائے آباد ده. د شیرانی قوم وصلی قبیله ده. وجه ئے دا ده چه د سید محمد بختیار والده ماجده حضرت سنجره بی بی علیها الرحمة په قام شیرانی ده یدے وجه د بختیاری خاندان آوزی سادات خصوصاً عارف آل (هری پال) په شوریانی نامه یادیږی.

د تفصیل د پاره ملاحظه کړئ زمونږ.
دویم کتاب "سادات افاغنه"
(عبدالحلیم اثر)

# حضرت سید علی ترمذی پیر باباؒ

ولادت : ـــــــــ خواجه غلطان قندز سنه ۹۰۸ھ

وفات : ـــــــــ گدائی زی بونیر سنه ۹۹۱ھ

حضرت شیخ الاسلام والمسلمین محی السنة وماحی البدعت غواص دَ دریاب دَ اسرار واو رموز والهی سید علی ترمذی بخاری المعروف په پیر بابا شهنشاه خراسان چشتی نظامی، قادری، سهروردی. کبروی، شطاری قدس سرهٔ العزیز په خصوصی لقب دَ "پیر بابا سره زیات مشهور دے. دَ دوئ دَ والد ماجد نوم سید قنبر علی وو. او دَ نیکه نوم ئے سید احمد نور علیه الرحمة وو. شجرهٔ دَ نسب ئے داسے دہ.

سید علی غواص بن سید قنبر علی بن سید احمد نور بن سید یوسف نور بن سید محمد (الملقب په نوربخش) بن سید احمد بیغم بن سید براق بن سید احمد مشتاق بن سید شاه ایوب ابوالتراب بن سید حامد بن سید محمود بن سید اسحاق بن سید عثمان بن سید جعفر بن سید عمر بن سید محمد بن سید حسام بن سید شاه ناصر خسرو بن سید جلال الدین جعفر بن سید امیر علی بخاری بن سید محمود مکی بن سید محمد مهدی بن سید امام حسن عسکری بن سید امام علی نقی بن سید امام محمد تقی بن سید امام موسیٰ رضی بن سید امام موسیٰ کاظم بن سید امام جعفر صادق بن سید امام محمد باقر بن سید زین العابدین علی بن سید الشهداء امام حسین رضی الله عنهم اجمعین

## سید شاه ناصر خسروؒ

دَ حضرت پیر باباؒ په دے مبارکه سلسله کښې دَ دوئ درے نیکونه داسے تیر

شویدی چه دَ هغوئ مزارات مبارک په مغربی پاکستان کښې دی.

(۱) یو سید جلال الدین جعفر گنج علم شهید دے چه مزار ئے په ریاست دیر تالاش کښې دے. او مخکښې دَ دوئ تذکره په تفصیل سره بیان شویده.

(۲) حضرت سید شاه ناصر خسرو شهید قدس سره دے. چه مزار مبارک ئے دَ ریاست کشمیر دَ تخت سلیمان نومے غرونو په سلسله کښې دَ چیلاس او تانګیر په غرونو کښے دَ تانګیر په یو ډیر اوچت سر باندے دے. دغه علاقه نن ورځ دَ پاکستان یوه حصه ده. او په گلگت ایجنسئ کښې شامله ده. دَ شاه ناصر خسرو والد ماجد سید جلال الدین جعفر بخاری گنج علم چه دَ تالاش په مقام شهید شو او ورپسے روستو دَ دریاے سوات په جنوبی غاړه دَ بریکوټ. غالیګی. هوډی گرام په غرا کښې مشهور غازی ملک عارف المعروف په ملک خوشحال شهید شو. او دَ صفی الله خټک دَ کتاب "نظم الدرر فی سلک السیر" دَ روایت مطابق دَ دریائے سوات په شمالی غاړه دَ کانجو په مقام په غرا کانو کښې دَ سلطان محمود غزنوی دوه حامن شهیدان شول. چه زیارتونه ئے اوس هم دغلته دی. او بیا ورپسے دَ غازیانو لویه حصه دَ بونیر او مالاکنډ په لار وباندے دَ مردان دَ سمے علاقے ته راښکته شول. او دَ سمے په هره یوه حصه کښې دَ کفارو په مقابله کښې ئے غزاگانے اوکړے. نو په دغه دوران کښې حضرت سید شاه خسرو علیه الرحمة دَ موجوده ریاست سوات دَ کوهستان دَ رانولیا او مجبوتی وغیره علاقو دَ کفارو سره دَ غزاگانو کولو او په دغه زمکه دَ اسلام دَ بیرغ اودرولو نه روستو دَ چیلاس او تانګیر علاقو ته رسیدلے وو. او هم دلته شهید شوے وو.

دَ حضرت شاه ناصر خسرو مزار مبارک دَ تخت سلیمان په اوچتو سرونو دَ اسلام یو روښانه مشعل دے. چه چار چاپیره ملکونه او

علاقے پورے روښانه دی. په مسلمانانو کښې نن هم د جهاد روح تازه کوی. او دا ورته ښائی چه د اسلام بیرغ چه دوئ تر چیلاس او تانګیر پورے رسولے دے. هغه دے د اسلام غازیان وا خلی او د کشمیر د تخت سلیمان د غرونو د سلسلے تر آخری سر پورے دے او رسوی. حضرت شاه ناصر خسرو د سنه ۴۰۹ھ په خواؤ شا کښې شهید شوے دے.

## سید شاه ابوایوب ابوترابؒ

د حضرت سید جلال الدین جعفر گنج علم په نمسو کښې په یو ولسم پښت کښې د یو نمسی نوم سید شاه ابوایوب ابوتراب دے. چه د سنه ھ د زمانے بزرګ دے. او مزار مبارک ئې د مالاکنډ ایجنسئ ریاست دیر په سند ه نومے علاقه کښې د دریائے پنجګوړه په شمالی غاړه بانډے د منجائی او هوړی کرام نومے کلو تر منځه د شهیدانو په مشهوره اډیره کښې دے. چه د بهارئې، هوړی کرام او منجائی د کفارو سره په غزا کښې شهید شوے دے.

## سید قنبر علیؒ

د حضرت پیر بابا علیه الرحمة د والد ماجد حضرت سید قنبر علیؒ مزار مبارک د افغانستان د سمت شمالی د ولایت مزار او میمنه په شمال مشرق طرف په علاقه د قندوز نومے علاقے په چاردره نومے تپه کښې دے. او په کوم کلی کښې چه د دوئ مزار مبارک دے د هغه کلی نوم خواجه غلطان دے. د قندوز او چاردرے د دغه علاقه د تاریخ په پخوانو کتابونو کښې په "ترمذ" نامه یادیږی. حضرت سید قنبر علی په ژوند هم په دغه ځائے کښې اوسیدلو او مزار مبارک ئې هم په دغه مقام "خواجه غلطان" کښې دے. علیه الرحمة والغفران

## سید علی غوّاص پیر باباؒ

حضرت سید علی غواص المعروف پیر بابا علیه الرحمة دَ حضرت سید قنبر علی په کور کښې په مقام دَ خواجه غلطان (چاردره قندوز) په سنه ۹۰۸ھ کښې پیدا شو۔ ابتدائی تعلیم ئې دَ خپل نیکه حضرت سید احمد نور علیه الرحمة نه اوکړ۔ دَ علم نحو دَ مشهور کتاب شرح جامی پورې کتابونه ئې دَ هغوئ نه اولوستل۔ او دَ ظاهری علمونو نه علاوه دَ طریقت او معرفت فیض ئې هم دَ هغوئ نه بیاموندلو۔ پدې سلسله کښې دَ حضرت اخون درویزهؒ دَ روایت مطابق دَ پیر بابا خپل بیان دا سې دې۔ فرمائی:۔

"ځما دَ مشفق پلار نوم "قنبر علی" وو۔ دَ خپلې زمانې دَ بادشاهانو سره ئې تعلق وو۔ دَ خپل پلار نیکه هغه زړه دَ زهد او ریاضت طریقه ئې پرېښې وه۔ او دنیاوی منصب ئې حاصل کړې وو۔ دَ حکومتی دربار خلقو به ورته "امیر نظر بهادر" وئیلو۔ لیکن ځما نیکه یعنې ځما دَ پلار والد ماجد سید احمد نور علیه الرحمة دَ علم او فضل خاوند وو۔ خپل قیمتی وخت به ئې په درس او تدریس او زهد او ریاضت کښې صرف کوُلو۔ دَ پلار نیکه په سجاده بانده ناست وو۔ دَ سلسله عالیه کبرویه پیر طریقت وو۔ په قندوز کښې اوسیده۔ دَ دنیا او دنیاداری نه بې پرواه وُو۔ مگر دا چه نظر دَ مهربانئ ئې ځما په حال لرلو۔ مور او پلار مې ځما دَ نور درونړو خویندو سره به مینه کوُله۔ زهٔ دَ دوارو په نظر کښې نه راتلم۔ لیون سارې ورته ښکاره کیدلم۔ نیکه به مې فرمائیل چه علی ځما څوئ دې۔ تاسو دهٔ دَ قدر نه خبر نه یئ۔ چه دا دهٔ نه څو مره ښه سړې جوړیږی۔ چنانچه ځما تعلیم او تربیت ئې په خپله ذمه واخیسته۔ سلسله عالیه کبرویه ځموږ په خاندان کښې نسلاً بعد نسلٍ دَ شیخ جمال الدین کبرئ علیه الرحمة نه تردې وخته پورې جاری ده۔

کله چې څما نیکه علیه الرحمة وفات کیده زه یې خپلې خوا ته را او بللم راته یې او وئیل قرآن مجید تلاوت کړه. ما ورته سورت تبرک الذی تلاوت کړے او فرمائیل بیا یې تلاوت کړه. ما دوباره تلاوت کړ. دے وفرمائیل بیا یې تلاوت کړه ما بیا تلاوت کړ. بیا یې راته او فرمائیل را نژدے شه. زه ورنژدے شوم راته یې او وئیل اے ځویه! هر یو برکت او نعمت چه د خپلو نیکونو او پلرونو نه مې نسبًا او د سلسله شریفه کبرویه نه اذنًا موندلے وو. او ماته حاصل وو. هغه هر څه مې تا ته او بښل. چنانچه په سلسله عالیه کبرویه کښې ما ماجزه ته اذن او اجازه د خپل نیکه نه حاصله شوے ده. د خپل مهربان نیکه د وفات نه روستو زه پریشان پاتے شوم. د دنیا د خلقو سره مې ترون هم نه راتللو. او د تیښتے لار مې هم نه وه. په دغه حال کښې مې گذران وو. تر هغې چه کله سلطان همایون د هند په لورے عزم او کړ. څما والد ما جدهم د تبرک په طور ځان سره هند ته روان کړ. او زه هم ورسره روان شوم.

د حضرت پیر بابا رح د دے قول چه هر کله همایون بادشاه هند ته تللو نو څما پلار یې د ځان سره په طور د تبرک بوتللو - تاریخي پس منظر دا سے دے. چه د همایون پلار بابر بادشاه په ۶ محرم سنه ۸۸۸ھ کښې پیدا شوے وو. او په ۵ رمضان المبارک سنه ۸۹۹ھ د دولسو کلو په عمر د ماوراءالنهر په اندجان نومے مقام حکمران کړے شوے وو. روستو د سنه ۹۳ھ پورے زمانه یې د ماوراء النهر، خراسان (د موجوده افغانستان قدیم نوم خراسان دے) او د وادئ پیښور په کشالو کښې تیره کړے وه. چه د پیښور ره ویژن د یوسفزو قبیلے سره جنگونه او بیا روستو د ملک شاه منصور یوسفزي لور بي بي په نکاح کوڵ. او د دغه بي بي د پاره د باجوړ په مرکزي مقام شهر باجوړ کښې محل جوړول د یادولو دي. په سنه ۹۳۲ھ کښې چه د وادئ پیښور نه د هند په لور روان شو. نو هم په دغه کال لاهور ته او رسیده. او په آخر کښې دهلي فتح کړ.

بیا دغے نه روستو چه په ۹۳۷ سنه ھ کښ بابر وفات شو۔ او دَ ھغه ځوئ همایون دَ نولس کالو په عمر په اکبرآباد (آګره) کښ په ۱۴ جمادی الاول ۹۳۷ سنه ھ کښ باد شاه شو۔ نو دَ ھغے نه پنځه کاله روستو په ۹۴۲ سنه ھ کښ افغانستان ته دَ خپل پلار دَ قبر زیارت او نورو انتظاماتو دَ پاره راغلے وو۔ او بیا دغه ۹۴۲ سنه نه روستو چه همایون واپس هند ته تللو نو دَ حضرت پیر بابا علیه الرحمة والد ماجد ئے دَ ځان سره هند ته بوتلے وو۔ او هم په دغه موقع کښ حضرت پیر بابا دَ خپل پلار سره دَ هند په سفر کښ ملګرے وو۔

دَ ترک بابری دَ بعض بیانونو نه معلومیږی چه دَ بابر بادشاه کیدلو په ابتدائی ورځو کښ چه دَ ھغه سره کوم مخصوص اعتباری ملګری او سرکرده فوځی مشران وو۔ یو په ھغوئ کښے سید قنبر علی وو۔ لیکن روستو بیا دا نه معلومیږی چه هر کله په ۹۳۲ سنه ھ کښے بابر دَ هند په لور روانیده یا دَ ھغے نه مخکښ چه په کابل۔ باجوړ۔ سوات۔ سمه او وادی پیښور کښ ئے جنګونه کول چه په دغه نیته حضرت سید قنبر علی دَ بابر سره یو ځائ موجود وو۔ که نه وو۔ په دے سلسله کښ دَ پیر بابا علیه الرحمة چه خپل کوم بیان دے دَ ھغے نه خو دا معلومیږی چه سید قنبر علی دَ بابر سره دَ هند په دغه سفر کښے ملګرے نه وو۔ او همایون باد شاه چه په ۹۴۲ سنه ھ کښ دے دَ ځان سره بوتللو نو غالباً وجه ئے دا وه چه دَ سادات دَ یوے روحانی خاندان ممتاز فرد وو۔ بله دا چه دے دَ همایون دَ والد شهنشاه بابر پرَیځوانو فوځی سالارانو کښ ممتاز سپه سالار وو۔ او بله دا چه دَ همایون او سید قنبر علی تر مینځه دَ قرابت داری یوه رشته هم موجوده وه۔ او دَ همایون دَ پاره دَ ده حیثیت دَ یو خاندانی مشر او سرپرست کیدلے شو۔ (په ۹۴۲ سنه ھ کښ همایون دَ ۱۹ کالو نوے ځلمے وو) په دے وجه زیاته صحیح خبره دا ده چه په ۹۴۲ سنه ھ کښ په اول ځل سید قنبر علی سره دَ خپل ځوئ پیر بابا

هند ته تلے وو۔

دَ همایون بادشاه او سید قنبر علی ترمنځه چه کومه رشته موجوده ده. دَ هغې په حقله اخوند رویزهؒ لیکي:۔ (تذکرة الابرار مطبوعه نسخه ع۱۱) چه حضرت پیر بابا دَ امیر تیمور کورګان دَ خور دَ اولاد څخه وو. د دے مطلب دا کیدلے شي چه دَ پیر بابا په نیکو نو کښے چه کوم یو نیکه دَ امیر تیمور معاصر وو. په هغه دَ امیر تیمور خور واده وه. په د ے سلسله کښ که فکر او کړلے شي. نو حضرت پیر بابا او همایون دواړه معاصر دي بلکه همز ولي دي. (دَ پیر بابا ولادت سنه ۹۰۸ھ او دَ همایون ولادت سنه ۹۱۳ھ د ے.) نو موږ له د د ے دواړو په شجرهٔ نسب نو یو نظر اچول پکار دي. چه دَ امیر تیمور اصلي خور یئے دَ پیر بابا په نیکو نو کښ کوم یو نیکه کیدلے شي. دَ دواړو شجرے دا دي.

(الف) همایون[1] ولد بابر[2] ولد ابوسعید مرزا[3] ولد محمد میرزا[4] ولد جلال الدین میران[5] شاه ولد امیر تیمور کورکاني.

(ب) سید علي[1] ولد قنبر علي[2] ولد سید احمد نور[3] ولد سید یوسف نور[4] ولد سید محمد نور بخش[5] ولد سید احمد بیغم[6]

د د ے پوره نسب نامو نه دا معلومیږي چه په سید احمد بیغم به دَ امیر تیمور کورکاني خور واده وه. او په دے اعتبار دَ اخوند رویزهؒ هغه خبره صحیح ده چه پیر بابا دَ امیر تیمور دَ خور دَ اولاد نه وه۔

د دے پوره تتي وضاحت نه دا معلول غرض و و. چه پیر بابا دَ قندوز افغانستان نه برصغیر پاک او هند ته اول ځل په کومه نیټه راغلے د ے. او هرکله چه په سنه ۹۴۲ھ کښے دَ د وی راتګ معلوم شو. نو د ے له مخه دَ سبا غلی شیخ محمد اکرم مؤلف رود کوثر (ص۳۶۳) هغه بیان صحیح نه معلومیږي چه حضرت پیر بابا علیه الرحمة دَ حضرت خواجه نظام الدین عبدالشکور بلخي تهانیسري المعروف به نظام الدین تهانیسري نه په بلخ کښ دَ چشتیه طریقے سبقونه حاصل

کړي وو. ځکه چه پخپله موصوف د دغه کتاب په صفحه ۳۶۲ کښې دا لیکلي
چه دغه شیخ نظام الدین تهانیسري د جهانګیر د لاس نه د خسرو د بغاوت
د فتنې دفع کولو (سنه ۱۰۱۶ه) نه روستو بلخ ته جلا وطن شوے وو. او ظاهره
دا چه هرکله حضرت پیر بابا د دغه سنه ۱۰۱۶ه نه ۶۸ کاله وړاندې په سنه ۹۴۲ه
کښې هند ته راغلے وو. نو بیا په سنه ۱۰۱۶ه کښې ئې د حضرت خواجه نظام الدین
تهانیسري نه په بلخ کښې بیعت کول په فکر کښې نه راځي. او د ټولو نه غټه
خبره دا ده چه د دغه سنه ۱۰۱۶ه نه ډیر مخکښې په سنه ۹۹۱ه کښې حضرت
پیر بابا علیه الرحمة وفات شوے وو. او د پیر بابا د مرګ نه ۲۵ کاله پس نظام
الدین تهانیسري بلخ ته تلے وو.

## حضرت پیر بابا په هند کښې

په هند کښې د حضرت پیر بابا علیه الرحمة د روحاني او عرفاني حالاتو په حقله
د دوئ د خیل بیان نه معلومیږي چه اګرچه د خیل واللماجد د اسرار
په وجه به ئې شاهي درباري لباس اغوستلو. لیکن چه د بادشاه د دربار
نه به راووتلو. نو هغه لباس به ئې سمدستي اوښکلو. او د نیکانو او عالمانو
خلقو د صحبت په تلاش کښې به ګرځیده. پیر بابا فرمائي: "هرکله چه
رب الجلیل ځما په باب دا مقرر کړے وه. چه د دنیا او اهل دنیا نه م کناره
اوساتي. پدغه وجه د درباري کاروبار سره تعلق لرل راته ګران شول".
چنانچه په دا سے حالاتو کښې چه څه وخت دا شاهي قافله منزل په
منزل د پاني پت مقام ته اورسیدله. نو پیر بابا روان شو. او د حضرت
شیخ شرف الدین پاني پتي مزار مبارک ته لاړ. فرمائي: "د حضرت
شیخ مزار ته چه ورغلم نو د هغوئ په توجه ځما په زړه کښې تاثیر پیدا
شو. او ټول وجود م په لړزان شو". نتیجه ئې دا شوه چه د دنیا کاروبار
نه ئې هم پسے زړه تور شو. د دے نه پس دوه روایتونه دي. یو روایت

دا دے۔ چه دا خیال ئې اوکړ چه که بیرته ځي او د خپل پلار نه اجازت غواړي نو شاید چه هغوئ رضا نه شي۔ په دے وجه چه د مزار نه راو وتلو آس وسله هر څه ئې نوکرانو ته ورکړل۔ مخ سر ئې او نغښتل۔ او په یو کوټه ځائ کښې د خدا ئې په عبادت مشغوله شو۔ مګر څه نیټه پس ئې پلار ته درک ولګیده۔ بیا ئې د ځان سره بوتللو۔ او د پلار او ځوئ ترمنځه د بحث او خبرو اترو نه پس پلار ورته اجازت ورکړ۔ چه د علم او معرفت په طلب پسے روان شي۔

په دے سلسله کښې دویم روایت د پیربابا د ځوئ میان مصطفی دے۔ هغه فرمائي چه پیربابا د شیخ شرف الدین پانی پتی علیه الرحمة د مزار مبارک نه په بله لاره اوونړو۔ بیا ئې او وکړه۔ لاړ په ځنګلونو کښې پناه شو۔ څه ساعت پس چه څه نوکران ور سره راغلي و و هغه ورپسے زیارت ته ننګاره شول۔ نو که څه ګوري د حضرت پیربابا هیڅ پته نشته دے۔ تالاش ئې ورپسے اوکړ۔ لیکن پیدا ئې نه کړ۔ چه پلار ئې خبر شو۔ نو هغه پوهه شو چه د معرفت په طلب کښې به ئې بیا څه کړي وي۔ چنانچه د خدائ په کړو ئې صبر اوکړ۔ میان مصطفی فرمائي: څه موده پس چه په ګجرات کښې د پلار او ځوئ ترمنځ ملاقات شوے وو۔ د دغه د دوی د پانی پت په مقام دیوبل نه څه د اکید لو نه پس اولنی او آخرینے ملاقات وو۔

بهرحال حضرت پیربابا چه د پانی پت نه روان شو۔ نو مانک پور ته ورسیدلو۔ د غلته د یو دیني عالم او روحاني شیخ طریقت په درس کښې شامل شو۔ چه د هغه نوم وو۔ "شیخ سیلونه" د علم نحو کتاب کافیه ئې دوباره د هغوئ نه اولوستله۔ او د علم فقه د مشهور درسي کتاب هدایه پورے کتابونه ئې ترینه اولوستل حضرت شیخ سیلونه چه د دوی روحاني استعداد طلب او تنده ته اوکتل نو هغه ورله د حضرت شیخ سالار رومي په نوم باندے خط ورکړ۔ او ورته ئې اوفرمائیل چه هغه ستا پیربهائي دے۔ مونږ دواړه د شیخ بهاء الدین صاحب مریدان یو۔ لیکن چونکه ما نه

دَ مريد انو نيولو اجازت نشته دے۔ نو ته داسے اوکړه چه هغه له ورشه. او دَ روحانيت او طريقت درس دَ هغه نه حاصل کړه. حضرت شيخ سيلونهؒ چه دَ شيخ سالار رومي په نوم کوم خط ليکلے وو. په هغے کښ يې دَ پير بابا دَ حسب او نسب او نورو حالاتو تفصيل هم ليکلے وو. او دَ دغه تعارفي خط سره يې دے اجمير شريف ته اوليږه.

حضرت شيخ سالار رومي دَ چشتيه طريقے پير طريقت وو. او په دغه زمانه په اجمير کښ دَ دعوت او ارشاد په گدۍ ناست وو. پير بابا دَ هغوئ په خدمت کښ حاضر شو. بيعت يې اوکړ۔ څه موده يې دَ خپل پير په حضور کښ تيره کړه. دَ نمانځه دَ مصلے او سجادے ورکولو اوغوړلو، په اوبه کرځولو خدمت به يې کاوه. او بيا ورته هغوئ په سلسله چشتيه. شطاريه. سهرورديه. ناجيه. جلاليه څلورو سلسلو کښ خلافت ورکړ. دَ دے درے واړه طريقو شجره يې دا دي:-

(۱) طريقه چشتيه

سيد[۱] علي ترمذي پير بابا له شيخ سالار[۲] رومي هغه له شيخ بهاءالدين[۳] صامت هغه له شيخ[۴] حامد الدين هغه له شيخ حسام[۵] الدين هغه له شيخ نور قطب[۶] عالم هغه له شيخ علاءالدين[۷] عمر اسعد الله نوري هغه له شيخ عثمان اخي سراج[۸] هغه له شيخ المشائخ نظام الدين[۹] اولياء هغه له شيخ فريد[۱۰] الدين گنج شکر هغه له قطب الدين[۱۱] بختيار کاکي هغه له شيخ معين الدين حسن چشتي اجميريؒ۔

(۲) طريقه سهرورديه

سيد[۱] علي ترمذيؒ له شيخ سالار[۲] رومي هغه له شيخ نظام الدين[۳] مهاجري هغه له شيخ قطب الدين[۴] مهاجري هغه له شيخ فخر[۵] الدين محبوبي هغه له شيخ جلال[۶] الدين حسين مخدوم جهانيان هغه له شيخ ابوالفتح رکن الدين[۷] هغه له شيخ صدر[۸] الدين عارف هغه له شيخ حضرت بهاءالدين[۹] ذکريا هغه له شيخ شهاب الدين سهروردی.

(۳) سلسله شطاریه او (۴) سلسله ناجیه جلالیه اجازت هم ورته دَ شیخ
سالار رومی نه حاصل وو. لیکن دَ خپلو دے دواړو سلسلو دَ طریقت دَ شجرے
نومونه یے اخوند رویزه ته نه دی بیان کړی. ځکه دلته ذکر نکړے شول.

(۵) سلسله کبرویه

دَ سلسله کبرویه اذن ورته دَ خپل نیکه نه حاصل وُو.
شجره یے داده. سید[۱] علی ترمذی له سید احمد[۲] نور هغه له
سید یوسف[۳] نور هغه له سید محمد[۴] نوربخش هغه له شیخ ابواسحاق[۵] ختلانی
هغه له شیخ سید[۶] علی همدانی هغه له شیخ علی[۷] لالا هغه له شیخ نور
عبد[۸] الرحمان هغه له شیخ نجم[۹] الدین کبری هغه له شیخ عمار[۱۰] بن یاسر هغه
له شیخ نجیب سهروردی[۱۱] هغه له شیخ احمد[۱۲] غزالی هغه له ابا[۱۳] بکر نساج
هغه له ابوالقاسم جرجانی[۱۴] هغه له ابوعثمان[۱۵] مغربی هغه له ابوعلی[۱۶] کاتب
هغه له شیخ علی[۱۷] رودباری هغه له شیخ جنید[۱۸] بغدادی هغه له شیخ سری
سقطی[۱۹] هغه له معروف[۲۰] کرخی هغه له امام علی[۲۱] رضا هغه له موسیٰ[۲۲] کاظم
هغه له جعفر[۲۳] صادق هغه له محمد[۲۴] باقر هغه له علی[۲۵] زین العابدین هغه له
سید الشهداء حسین[۲۶] ابن علی رضوان الله عنهم اجمعین.

دَ خلافت ورکړے کیدو نه روستو حضرت سالار رومی ورته
اوفرمائیل چه کوهستانی علاقو ته لاړ شه. او دا تخصیص یے ورته اونه
کړه چه کوم کوهستان ته به ځے. پیربابا دَ هغه حکم مطابق کشمیر ته دَ تللو په
نیت رَاروان شو. دَ جهلم دریاب نه مغرب طرفته دَ څلور میله په فاصله "پنډ داؤد"
المعروف پنډ دادن نومے کلی ته چه راورسیده نو لویسرے په هغه ورځ کیلاش
نومے وو. دَ هغه چه په پیربابا نظر پریوت. نو ټول کلے یے خبرکړو چه
هغه نیک ولی دَ خدائے دَ ادے (داخبره داسے وه چه دَ هغه کیلاش خوبونه
ځکښی دَ پیربابا حلیه په خوب کښی لیدلے وه. چه پنډ داوت ته راروان او ټول
کلے دَ هغه په انوارو رڼا شو. اوپه صباله کیلاش دَ هغه خوب دَ کلی

خلقوته وئیلي وو. او دَ دوئ رنګ دَ دغ نقشه کړه. کړه وړه هر څه یې دَ کلي خلقوته بیان کړي وُو.) پیر بابا وائي چه څه وخت دغه کیلاش شور جوړ کړو. نو ما ورته او وئیل چه هسې نه چا به په خوب کښې بل څوک لیدلے وي. هغه راته اووے چه دا ته دَ کلي خلقو نه تپوس اوکړه چه ماورته مخکښې ستا رنګ نمونه هر څه بیان کړيدي کنه تر دے حده چه ستا په تندي چه دَ زخم کوم خال دے دغه هم ورته ښودلے دے. پیر بابا دغلته حصار شو. دلته چه هر څو مره ورځې پاتې وو. خلقوته به یې وعظ نصیحت امر بالمعروف کولو. او دَ معرفت او طریقت لار به یې خلقوته ښودله.

---

ددے روایت په بناء چه اول دوئ "پنډ دادن" ته راغلي وو. دا به او وایو چه ددغه نه څه نیږه پس ګجرات ته راغلي وو. ځکه چه پیر بابا پخپله بیان کښې دا هم فرمائي چه دا پورتني واقعه دَ ګجرات په مضافاتو کښې پیښه شوې ده. او دَ هغې نه روستو ګجرات ته راغلم. دلته په ګجرات کښې په سنه ۹۵۰ هـ کښې حضرت پیر بابا سره دَ دوئ والد ماجد سید قنبر علي ملاقات شو. دا هغه ورځې دے چه هر کله همایون دَ شیرشاه سوري دَ لاس نه دَ ملتان، سنده او بلوچستان په لاره ایران ته تللو. نو دَ لاهور په ښاؤ خوا کښې تر ینه سید قنبر علي جدا شوے وو. او دَ جهلم. اټک او پیښور په لاره واپس خپل وطن ته دَ تللو اراده یې کړې وه. لکه چه مخکښې ذکر شوے دے. دَ پیر بابا دَ خوئ میاں مصطفےٰ روایت دے. چه پیر بابا په پاني پت کښې دَ خپل پلار نه جدا شوے وو. دَ هغې نه پس دَ ګجرات په مقام دَ خپل والد ماجد سره دَ دلئے اولني او آخریني ملاقات وو. حضرت پیر بابا وائي. پلار مې راته او فرمائیل چه تما سره وطن ته لاړ شه. لیکن ما ورته عذر اوکړو. چنانچه پلار زما په سر ستر ګو سنګل کړم. او په ے باندے را نه خوشحاله شو. چه دَ خپل پلار نیکه دَ زهد او ریاضت او طریقت او معرفت لار دے را نیګله کړه. بیا پلار مې دَ رخصت په وخت کښې یو کا همیاني

دَ اشرفو اوبله دَ سپینو زرو دَ روپو دَ خرخ دَ پاره راته پرېښودلې. حالانکه
ځما روپۍ څه پکار وې. مګر دَ هغوئ دَ خاطره مې قبولې کړې. پلار مې راته او
فرمائيل چه دا مانذر کړيدي. په فقيرانو ئې خرخ کړه. دَ پلار دَ رخصت کيدو
نه روستو په ګجرات کښې دَ څه ورځو تيره ولو نه پس دوباره دَ خپل پير سلام
له اجمير ته روان شوم. په لاره کښې شير شاه سوري سپاهيان په مخه راغلل.
او هغه دوا ړه هميانئ رانه هغوی واخيستلې.

د دې پوره بيان نه معلوميږي. چه دې دوباره اجمير شريف
ته دَ خپل پير ليدو له دَ شير شاه سوري دَ حکومت په زمانه کښې تلې وو هر
کله چه شير شاه سوري په دولسم تاريخ دَ ربيع الاول سنه ۹۵۲ھ وفات شوې
دې. نو د دې مطلب دا شو چه پير بابا د دغه تاريخ نه مخکښې په سنه ۹۵۰ھ ۹۵۱
کښې اجمير شريف ته تلې وو.

پير بابا فرمائي: دَ خدائ حکم وو. اجمير شريف ته ځما دَ رسيدلو نه
وړاندې ځما پير سالار رومي وفات شوې وو. زه چه دَ هغوئ درګاه ته اورسيدم.
دَ هغه مشر ځوي شيخ حسين په مراقبه کښې ناست وو. څه وخت چه دَ
مراقبې نه سر را پورته کړو. او زه ئې اوليدم. نو راته ئې اوفرمائيل. چه پلار مې
هم دا وخت په مراقبه کښې راته اوفرمائيل. چه ځما دوه چغې او قبا کانې
چه پاتې دي. يوه دَ خرقه خلافت په طور دغه سړي ته ورکړه چه کوم او س
په دلته را اورسيږي. او بله چغه ټوټې ټوټې کړه او ځما په ټولو مريدانو ئې
اووېشه. چنانچه سمدستي ئې هغه دواړه قبا کانې را او غوښتلې په هغې کښې په
يوه خرقه ځما نوم ليکلې وو. هغه ئې ما ته راکړه. سمدستي مې په غاړه کړه. او څه
ورځې مې هلته تيرې کړې.

مخکښې فرمائي:-

څه ورځې پس راته ځما مخدوم زاده (شيخ حسين) اوفرمائيل چه

ستا دَ پارهٔ څما دَ پلار وصيت دا دے. چه په کوهستانونو کښې استوګنه اختيار کړه. او س خو بنه ستا ده. چه دَ هند په شمالی کوهستانونو کښې په کوم کوهستان کښې پاتے کيږی - او که خپل وطن قندوز ته ځے. ځکه چه ستا خپل وطن خو هم کوهستانی ملک دے. زه د دے حکم په آوريدو حيران شوم. ځکه چه زه خواجمير شريف ته دَ خپل پير ليدلو له د دے دَ پاره راغلے وم. چه دَ حقيقت او عرفان پد ے منزلونو کښې چه کوم بوجهه را باندې پريوتلے وو چه دَ هغې نه خلاص شم. ليکن دا خو دَ هغې نه هم زيات بوجهه را په حواله شو. بهرحال دَ خپل مخدوم زاده نه مې پد ے نيت رخصت واخيستلو چه خپل وطن قندوز ته به لاړ شم -

حضرت پير بابا فرمائی -

دَ طريقت او معرفت په لار کښې هر يو سالک او صوفی ته درے مقامات حاصليږی.

۱. اول مقام دَ شهرت دے. چه دَ خدائ مخلوق عام او خاص پرے رامات شی.

۲. دويم مقام دَ کشف او کرامت دے. چه مختلف کرامتونه او خرق عادات کارونه ترے نه ښکاريږی -

۳. دريم مقام هغه دے. چه دَ يو سالک ټول مطلب او مدعا محض دَ الله رضا حاصلول وی. پدے مقام کښې بيا دَ سالک نه ځان ښکاروی نه جهان -

چنانچه زه څه وخت به اول ځل اجمير شريف ته تلے وم. او هلته دَ حضرت شيخ سالار رومیؒ په خدمت مشرف شوے وم. او بيا روستو هغوی په څلور و وارو طريقو کښې خليفه او ماذون کړے وم. نو په هغه نيته دَ تصوف دغه اولنی مقام را ته حاصل شوے وو - او څما دَ نوم شهرت تر لرے لرے پورے خور شوے وو - او دَ هغه په وجه حاجی سيف الله ګګيانی او ملک ګدائی ګګيانی را ته په شريعت کښې لاس بيوه کړے وه. دا د واړه ګګيانی ملکان دَ خپل قام مشران او قومی سرداران وو. همايون بادشاه چه په سنه ۹۴۲هـ

کښې هندوستان ته راتللو نو د سرحد نه دځان سره راوستلې وو. دد ے
نه مخکښې چه په شاهي دربار کښې ځما هم تګ راتګ وو . نو د دوی سره م
پیژندګلو راغلې وه . لهٰذا دا چه زړه په دغه یقینه دد ے شهرت او د خلقو
د ګڼړ ے نه تنګ شو ے وم . نو خپل پیر ته م شکایت کړ ے وو . چه دا خلق
ځوما عبادت ته نه پریږدي چنانچه هغوی را ته د کوهستان طرفته د
تللو هدایت کړ ے وو . او چه د کشمیر علاقے ته د تللو په نیت روان شو ے
ووم . نو په لاره کښې د کجرات په مقام دغه واقعات چه مخکښې بیان شول د
راپیښ شوی وو . او بیا چه په کجرات کښې هم د خدائ مخلوق را باندې راماتې
شو . نو د هغے نه چه پیر تنګ شوم . نو دوباره اجمیر شریف ته دد ے د پاره د خپل
پیر سلام ته ورغلې ووم . چه د شهرت دا بخه را نه واوړي . بوجه او بیتې را نه
کم شي . او خپل ریاضت او عبادت له وخت او کښیل شم . لیکن قسمت ته ګوره
پیر م وفات شو ے وو . او د وفات په وخت کښې بیا ئے را وصیت پریښے وو . چه
کوهستان ته لاړ شه . چنانچه هم دغه وجه ده . چه څه وخت ما د مخدوم
زاده نه د پیر د وصیت دا حکم ...... ریده . نو مخدوم زاده م ته عرض او کړ چه او س
هر څه چه کیږی خپل وطن ترمذ ته ځم د هغوی نه م رخصت واخیست .
په دغه اراده راروان شوم او پیښور ته را ورسیدم .

## حضرت پیر بابا په پیښور کښې

په پیښور ښهر کښې د حاجی سیف الله ګګیانی او ملک ګدائ ګګیانی سره م
ملاقات شو . د سلام او ملاقات نه روستو د هغه مخوانئ عقید تمندئ په
وجه چه ځما سره ئے په اجمیر کښې پیدا شو ے وه . دوی دواړو را نه سوال
او کړ . چه ځمونږ وطن پیښور ښهر سره نزد ے د ے . د یو څو ورځو د پاره
ځمونږ سره تشریف یوسه . چه ځمونږ آل اولاد ما شومان او وطنوالان
ستاسو د صحبت او وعظ نصیحت نه فائده واخلی . او د غلطو کارونو . او

بد عتونو او رسمونو ر واجونو نه لاس واخلی. د دوئ دعوت او بلنه ے قبوله کړه. او د هغوئ سره د دوآبے علاقے ته لاړم. هغه ځائ بے شمیره خلقو ځمانه بیعت اوکړ. او په طریقه کښ داخل شول. ډیر مخلوقات به راتلل. وعظ او نصیحت به ئے آوریده. او د ناکاره کارونو او خلاف شرع بد عتونو نه به توبه گار کیدل. او د سمے لارے ته د او ډیدلو توفیق به ئے ملاؤ کیده. تر څه زمانے پورے خو په سمه لار روان وو۔

## پیر بابا فرمائی.

د دے وجه څه ده. چه دا خلق سمے لارے ته راوختل او بیا کاره شول وجه ئے داده چه د پښتنو دا عادت دے. چه دوئ نبے خبرے او ناکاره خبرے دواړه آوری. لیکن د نیکئ د خبرو پابندی ډیره کمه کوی. او دا هم ځکه چه نن ورځے په دوئ کښے بے علمی ډیره ده. او د دغه بے علمئ په وجه اکثر پښتانه داسے هم دی چه هیڅ د نیکئ او خیر خبر و او نصیحت ته غوږ هسے هم نه کیږدی. او د شر او بدئ خبرے به ښے آوری. ځکه چه علم نشته. او چه سرے ورته فکر او کړی. نو موجب ئے دا دے. چه په دوئ کښے پخپل منځ کښے د یربل سره بغض ارسناد ډیر زیاتی ده. او په دے آفت کښ تر دے معلا را گیر وی. چه که پخپل منځ کښے د یو بل سره د مینے محبت او صلح صفائیے حور او په آرام د شریعت اسلام مطابق ژوند تیره ولو او د اسلام د احکامو د پابندئ کولو د پاره ورته نصیحت کیږی. نو هغے ته غوږ کیښودل هم ورته گران ښکاری.

## پیر فرمائی:-

چه مرکله یه دوآبه کښ په دے شان سره دوغ کال راباندے تیر شو نو خپل وطن قندوز ته د تللو اراده او کړله. مګر په گگیانی قبیله کښ چه ځما کوم مخلص دوستان او عقیدتمندان وو. هغوئ ځما د پاتے کولو د پاره بهانے شروع کړے. راته ئے او وئیل چه د یوسفزو په علاقه کښ

دوه ملحدان پیدا شوی دی. چه د حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم
د سمے لارے نه رغړیدلی دی. او پیرشهرت ئے حاصل کړے دے. د یو کس
پیرطیب نوم دے چه په قام بانډے غلجے پښتون دے. او د دویم پیر ولی
نوم دے. چه په قام بانډے برېڅ دے. دغه دواړه د یوسفزو قام اکثر خلق
د اسلام د سمے او برابرے لارے نه گمراه کړیدی. او نور ئے هم پسے گمراه کوی.
دغه پیرولی برېڅ او پیرطیب غلجی چه په یوسفزو کښ کومه گمراهی شروع
کړیده. هغه دا ده چه دوئ څنګ چونګ او سرود حلال کړی دے. هر
وخت ورته سرود ونه غږیږی. دوئ ئے آوری ښځے او ناریه لوي واړه
کړه وړه ئے د ځان نه راتاو کړی وی. او هغوئ ته خوشے بے هوده او خلاف
شرع خبرے سنائی. او د شریعت د دائرے نه دومره بهر وتلی دی. چه
پیرولی برېڅ خود د خدائي دعوه شروع کړیده (العیاذ بالله)
نوسه خبره دا ده چه تاسو د قندوز تللو اراده پریږدئ. د یوسفزو علاقے
ته لاړشئ. او د دغه علاقے عوام دے گمراهۍ نه بچ کړئ. هرکله چه
د دواړو مخلصو عقیدتمندو دا احوال راته بیان کړل. او د دین اسلام په
منځ کښے راغله. نو هلته تللو م په ځان بانډے واجب او ګڼړل. او د یوسفزو
علاقے ته روان شوم.

## حضرت پیر بابا د یوسفزو په علاقه کښ

حضرت پیر بابا فرمائی:-

چه څه وخت زه د یوسفزو علاقے ته اورسیدم نو په دوئ کښ یو څو عادتونه
او خویونه م اولیدل چه هغه دا دی:-

(۱) دا چه ساده خلق دی. چل، مکر، فریب ئے نه دے زده.
(۲) بله دا چه د مشرانو نه ئے کشران په دینداری او دیانتداری کښ زیات پاخه دی.
(۳) بله دا چه د ناریه ؤ نه ئے زنانه د دین اسلام زیات پابند دی. او مضبوطے دی.

(۴) بله دا چه دَ دوئ ماشومان په عین ماشوموالی کښې دَ دین سره اَوْ دینِ
دَ زده کړے سره مینه لري.

(۵) بله دا چه خه متکاران او مریونه یعنے عاجزه خلق یے دَ خپلو ښیکانو
نه زیات دیندار دی.

لیکن سره دَ دے ټولو خبرو په ګمراهئ کښے ځکه اخته کیږي. چه
علمی مدرسه نه لري. او ورسره پرهیزګاره او عالمان پکښې نشته دے. پدے
وجه دا خلق ټول بے تعلیمه او بے علمه دي. او بل خوا ته ناکره شیطان او ګمراه
پیران پدوئ کښے ډیر زیات دي. هغه دَ دوئ دَ بے علمئ نه فائده اخلی اَوْ شریعتِ
اسلام نه یے غلطه لاره باندے بیائي. او ډیر کسان پدغه شان غلطو پیرانو
پسے روان شوئ هم دي. او دَ اسلام په نامه دَ هغوئ ډیر بدعتونه یے
قبول کړي هم دي.

پیر بابا علیه الرحمة فرمائي:-
دَ پښتنو دا قاعده ده چه کله هم یو څوک نا اشنا عالم یا شیخ یا بزرګ زاهد
دَ دوئ وطن ته راشي. نو دَ هغه دَ نوم آوریدلو سره سم دومره خلق پرے
رامات شي. چه پلے پلے ورله راځي. چه څه ښے خبرے تر ینه واوري. لیکن
عیب یے دا دے چه صرف وعظ او نصیحت آوري. یعنے تش دَ خبرو آوریدو
شوقیان دي. او اکثریت یے داسے دي چه دَ علم نه غافله دي. نتیجه
یے داده چه عام پښتانه دَ خپلے بے علمئ په وجه دا فرق نه شي کولے. چه
په رښتیا بزرګ او عالم یا صحیح مسلمان شیخ څوک دے. او مکرژن او فریبګر
څوک دے. دوئ دَ اهل حق او باطل جدا والے نه شي کولے. دومره علم
نه لري چه پدے پوهه شي. چه دا نوے بزرګ یا عالم چه زمونږ دے علاقے ته
راغے. چه آیا دده عمل او وینا دواړه دَ اسلام په صحیح او حقه لاره برابر دي او
کنه ګمراه دے. البته پوهه خلق پکښې هم شته. لیکن داسے خلق پکښې ډیر لږ دي.

پیر بابا علیه الرحمة فرمائی:۔

لکه چه کښې مې اووئیل۔ د یوسفزو علاقے ته چه په اول سر کښې راغلم۔ نو د "سدوم" نوے علاقے پورے لاړم۔ (دلته دا یاد لرل پکار دی چه پیر بابا کله سدوم ته راغے نو د رستم نوے کلی نه شمال طرف ته دیونیم میل په فاصله په الی نوے کلی کښې چه دا کلے نن ورځ په "الی لنډی" مشهور دے۔ ډیره شو۔ په دغه موقع د ده مشهور مرید اخوند درویزه هم ورسره وو۔ د الی نوے کلی جنوب طرف ته او رستم نوے کلی ته مخامخ هغه ځائ چرته چه پیر بابا ډیره شوے وو۔ اوس هم موجود دے۔

په سدوم کښې د اوسیدلو په ورځو کښې د ډیر چاپیره علاقو نه به لے به لے خلق به ځما صحبت او مجلس ته راتلل۔ او وعظ نصیحت به یې اوریده۔ او د شریعت اسلام هر څومره مسئلے چه ما ته معلومے وے۔ هغه به ما ورته بیانولے۔ او دوئ ته به ما دا نصیحت کولو چه "د علم او عرفان یعنے د شریعت او طریقت د واړو نه د ځان خبرولو د پاره چه څومره درنه کیدلے شی۔ کوشش کوئ علم حاصل کړئ۔ او د حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم په روښانه شریعت باندے ټینګ شی۔ او د اهل هوا او اهل بدعت خلقو نه ځان ساتئ" چنانچه هم دغه شان وعظ او نصیحت مې جاری او ساتل۔ چه موقع به په لاس راغله د خدائ احکام به ما ورته بیانول۔ هر کله چه دا خلق هم د خدائ د حقے لارے لټونکے او د حق طالبان وو۔ ځما خبرو به د دوئ په زړه ونو اثر کولو۔ ځما نصیحتونه به یې اوریدل۔ عمل به یې پرے کولو۔ او د اهل هوا او اهل بدعت او ګمراه پیرانو نه به یې بیزاری ښکاره کوله۔ تردے حده لکه چه آیت شریف دے۔ جَاءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ اِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا یوسفزی خلق چه د باطلو پیرانو په دام کښې ګیر شوی وو۔ د هغے نه خلاص شول۔ بدعتونه او ګمراهی محوه شوه۔ او اسلام غالب شو۔

ددے نه روستو پیر بابا په تفصیل سره هغه واقعات بیان کړیدی. چه د پیر ولی بر څخ او د پیر طیب غلجی سره ئے کوم بحثونه کړیدی - هغه ئے ملا منه کړیدی. او یوسفزی ئے د دعوئ د گمراهئ نه خلاص کړیدی او بیا فرمائی:-

"پیر طیب غلزائے د سے موطن ته د هندوستان نه راغلے وو. هغه ددے نه هم خبر وو. چه نن صبا په خپل وطن قندوزته هم . نو هغه خپله خوځماد راتللو نه روستو هزاره ته تښتیدلے وو. لیکن په خلقو کښې ئے دا مشهوره کړه چه سید علی (پیر بابا) هم ددے ملک نه اوکښلو او قندوزته ئے کډه اړکړلو. ددے خبر و په او ریدلو سره د دوستانو او تعلقدارانو د اولکاوه چه په داسے حالاتو کښې که تاسو لاړ شئ نو پیر طیب به لافے شروع کړی. چه د هغه و بیار ښنتیا شوه. بیا ے و جه بهتره به داوی. چه تاسو یو کال نور هم دلته پاتے شئ چه د پیر طیب د غه دعوئ دروغ ثابت شی. او ددے قوم د کمزورے عقیدے خلق د هغه په مکر او فریب بیرته گمراه نه شی. چنانچه د دوستانو او عقیدتمندانو د امشوره م قبوله کړه - د وطن تللو اراده م پریښوده او د یو کال نور تیره ولو د پاره پدے علاقه کښې پاتے شوم.

(د پیر بابا په یوسفزو کښې واده کول)

پیر بابا فرمائی :- د پښتنو یوه عامه قاعده اصول او رواج دے. چه څوک عالم یا سنه سړے چه هغه په قام د دوئ وو رعزیزنه وی. او هغه دوئ ته سنه سړے سنکاره شی. نو د پښتنو مشران او قبائلی سرداران داسے کار اوکړی - چه بغیر د ولور (مهر) نه بالکل و یړیا خپله لور، خور هغه سړی ته په نکاح ورکړی - د پاره ددے چه د غه سنه سړی د دوئ سره خپلوی او رشته داری پیدا شی - او د تللو اراده پریږدی او د دوئ سره یو ځائ هم د دوئ په وطن کښې پاتے شی. او پد غه طریقه سره د هغه نیک سړی ترترونده روند ه د هغه د روحانی فیوضاتو نه د بهرمندکیدلو موقع دوئ ته په لاس ورشی

(دَ پیر بابا د دے خبرے په تائید کښې دَ حضرت سید محمد گیسو دراز مثال موجود دے.)

چنانچه هم د دے اصول مطابق دَ یوسفزی قام دَ ملی زی قبیلے دَ بارکشاه زی ښاخ یو ملک چه دولت خان نوم ئے دے. هغه راته خپله خور بی بی چه (بی بی مریمه) نوم ئے وو. په نکاح راکړله. بے شکه ما که هر څو مره کوشش کولو چه دَ عیال داری او دَ اولاد کولو دَ پابندئ نه ځان بچ کړم. ځکه چه بال بچه داری یو داسے څیز دے. چه دَ روحانی شغل په لاره کښې دَ مخ ته پیرے کښالے راد وخاره گوی. او بیا سړے په پوره توجه او فراغت دَ زړه سره خدائ چرته یاد ه ولے شی. لیکن هر کله چه واده کول دَ شریعت یو ضروری سنت وو. او بله دا چه دَ یو مسلمان زړه ساتل هم ضروری وو. او دا را ته بے مروتی ښکاره شوه. چه دَ ملک دولت زړه آزار کړم. په دغه وجوها تو دَ ناکامه نه م واده کول او په غاړه کښېنود له. او هغه وخت راته دَ خپل پیر حضرت شیخ سالار رومی علیه الرحمه هغه خبره را یاده شوه چه کوهستان تلل پر شه او هلته استوگنه اختیار کړه. چنانچه واده م اوکړ. د لته پاتے شوم. ځامن لونړه م اوشول. څه موده پس م اراده اوکړه چه خپل وطن (قندوز) ته لاړ شم. او دَ خپل مور او پلار سلام او ملاقات اوکړم. چنانچه بال بچ م په یوسفزو کښے پریښودل. یو اځے قندوز ته لاړم. پلار م وفات شوے وو مور بی بی م ژوندے وه. دَ هغوئ سلام م اوکړ. چه په قلاره شوم. تو مور بی بی را ته دَ تیر وشوو ورځوشپو دَ حال را ته تپوس نه کول. چه دا دومره عمر دے په کوم کوم ځا ے کښې تیر کړ. ما ورته دَ حالاتو بیانولو په سلسله کښې دا عرض هم اوکړ. چه دَ یوسفزو په علاقه کښې م واده کړے دے. او بال بچ م هم پیدا شوے دے. مور بی بی د دے خبرے په آوریدلو سره په ډیر شفقت او مهربانئ راته او فرمائیل چه هر کله واده دے کړے دے نو سبه دا ته اوس نور دلته زیات مه حصار یږه. بیرته زر لاړ شه. که کیدلے شی. نو بال بچ دَ ځان سره را روان کړه.

دلته ئې راوله اوکه بالفرض داسې نه شوه کیدلې نو بیا خپل حق م دربخښلې دے. هم هلته پاتے شه. چه دَ هغوئ حق زمونږ. په غاړه پاتے نه شي: دد غے نه پس مورنۍ بي علیها الرحمة راله دَ سفر تیاری اوکړله. واپس راغلم. اودَ خپلے مورنۍ بي په اجازه سره دلته په یوسفزو کښې پاتے شوم تولو خلقو ته م امر بالمعروف شروع کړ. دَ حق لارے ته به م رابلل. په دے خلقو کښې ځما دَ نصیحت اثر کیدلو. اودَ دین اسلام په حقه لار روان وو.

## تاریخي جایزه

پورته چه دَ حضرت پیر بابا دَ خپل بیان مطابق کوم حالات بیان شوي. په تاریخي اعتبار سره به په دے یو نظر واچوو. حضرت پیر بابا په سنه ۹۰۸ھ کښې په قندوز (ترمذ) کښې پیدا شوے دے. دَ خلور دیرش کالو په عمر په سنه ۹۴۲ھ کښې هندوستان ته راغلے دے. په سنه ۹۴۳ھ کښې دَ شیخ شرف الدین پاني پتي زیارت له دَ ورتللو نه پس ئې دنیا او دنیاداري هر څه پریښې دي. دَ حق په طلب کښې وتلے دے. کال دوه ئې په مانک پور کښې دَ شیخ سیلونه نه دیني کتابونه لوستلي دي. بیا دَ سنه ۹۴۵ھ په نیټه دَ شیخ سیلونه دَ مشورے مطابق اجمیر شریف ته راغلے دے. اودَ شیخ سالار رومي نه ئې بیعت کړے دے. بیا دَ سنه ۹۴۸/۴۹ھ په شا وخوا کښې دَ پنجاب گجرات ته راغلے دے. کال دوه ئې دلته تیر کړیدي. او په سنه ۹۵۰/۵۱ھ کښې دوباره اجمیر شریف ته تلے دے. په کال سنه ۹۵۱/۵۲ھ کښې یوځل بیا دَ اجمیر شریف نه را روان شوے دے. پیښور ته راغلے دے. پیښور ربنهر ته دَ دوئ دَ راتللو زمانه سنه ۹۵۲/۵۳ھ اندازه کولے شو. ځکه چه دا پیره چه دَ اجمیر شریف نه دوئ راتلل نو په لاره کښې په سیالکوټ کښې ئې هم څه ورځے تیرے کړیدي. چه پیښور ربنهر ته دَ دوئ دَ راتللو زمانه دَ غه سنه ۹۵۲/۵۳ھ حساب شي. نو دد ے مطلب دا شو چه بیا ورپسے دوآبے ته هم په دغه نیټه تلے وو. کال ئې هلته تیر کړ. او په سنه ۹۵۴ھ

کښن دَ یوسفزو علاقے سدهوم ته لاړ. او دَ سنه ۹۵۵ھ یو بل کال تیر ولونه روستو یے دَ هغه خلقو په خواست په سنه ۹۵۶ھ کښن یے وادهٔ وکړلو. او هر کله چه دَ بال بچ پیدا کید لو نه روستو قندوز ته تلے وو. نو ممکن دی چه دَ سنه ۹۷۰ھ په شاؤخوا کښن تلے وی. دَ واقعاتو او حالاتو دے پورتنی تفصیل نه چه او کتلے شی نو دا یو څو نتیجے په لاس راځی.

الف) دَ وادهٔ کولو په وخت کښن دَ دوئ عمر اته څلویښت کاله وو. او نن ورځے چه په عوامو کښن کوم روایت مشهور دے. چه هر کله دَ پیر بابا عمر که سل کاله نه زیات وو. نو اخوند درویزه بابا ورته او وئیل پیرهٔ وادهٔ درله کوؤم. چنانچه وادهٔ یے ورله وکړ. نو دا روایت په تاریخی اعتبار سره څکه غلط دے. چه دَ پیر بابا دَ پیدائش کال سنه ۹۰۸ھ سره چه سل کاله جمع شی نو مطلب یے دا کیږی. چه پیر بابا په سنه ۱۰۰۸ھ کښے وادهٔ کړے وو. حالانکه دَ پیر بابا خپل ټول عمر سل کاله نه وو. او دَ یو اتیا کلو په عمر کښن په سنه ۹۹۱ھ کښے وفات شوے وو.

ب) بابا جنره هغه الزام دے. چه حضرت پیر بابا دَ همایون بادشاه په اشاره سره دلته راغلے وو. پدے سلسله کښن دَ یوسفزو علاقے ته دَ پیر بابا دَ راتللو ټول تفصیل څمونږ دَ وړاندے دے. او هغه دا چه همایون ایران ته رسیدلے وو. چه پیر بابا دَ اجمیر شریف نه پیښور ته راتللو. او بیا چه په سنه ۹۶۲ھ کښن همایون دوباره دَ دهلی تخت اخیستلو دَ پاره هند ته تللو نو حضرت پیر بابا پدغه ینته دَ یوسفزو دَ بونیر په علاقه کښن وو. نو آخر په دا سے حالاتو کښن چه دَ پیر بابا او همایون هډو ملاقات نه دے شوے. او پیر بابا دا سد انه درباری ژوندنه دَ امرا نو. بادشاهانو دَ صحبت او دنیا دارئ نه کناره کش وو. نو د همایون سره دَ رابطے او راشه ورشه یے هډو امکان نه شی کیدلے. او بله دا چه پیر بابا هم لکه دَ نورو روحانی پیشوایانو غوندے خپل

پیر حضرت سالار رومیؒ په هدایت سره دے کوهستانی علاقو ته راغلے
وو. دا دے نه معلومیدلے شی. چه دغه پورته الزام څومره تاریخی غلط بیان
دے. بیشکه دَ پیر بابا والد ماجد سید قنبر علی یو درباری انسان وو. امیر
وو. لیکن دا دغے خبر وَ دَ پیر بابا دَ ژوند سره څه تعلق دے. هر کله چه
پیر بابا پخپله دَ فقیرئ ژوند اختیار کړے وو. او دا خو لا دَ پیر بابا والد
ماجد یو سړے وو څو نبر په وړاندِ دَ حضرت ابراهیم بن ادهم. سلطان
جلال الدین تبریزی مثالونه موجود دی. چه بادشاهئ پریښے وه
فقرئے اختیار کړے وو. نو بیئے دَ بادشاهانو سره تعلق نه ساتلو بلے
وجه پیر بابا دا سے الزامونو نه پاک دے. دے علاقے ته خالص دَ اسلام
تبلیغ او اشاعت دَ پاره راغلے وو او پخپل ژوند ئے دغه حق په ښه شان ادا کړے وو.

## اخلاق عادات او طریقه دکار

دَ حضرت پیر باباؒ په طبعیت مبارک کښې ډومره سخاوت وو. چه هیڅ یو
سوالکرے دَ دوئ دَ دروازے نه تش لاس نه وو تلے. مسافرانو له به ئے
دَ لارے خرچ ورکولو. دَ بیمارانو بیمار پرسی به ئے هم کوله. مګر ورسره
ورسره به ئے دَ هغوئ مالی امداد هم کولو. دَ دوئ لنګر به هر وخت جاری
وو. بے شمیره خلق به راتلل په وهئ او جامے به ورکیدلے شول. لویه
صبر ناکه او دَ عفوه او درګذر صفتونه ئے لرل. چه دا دیو کامل انسان دَ پاره
دَ تعریف لایق دیر لوئ صفت دے. دَ حضرت پیر باباؒ دَ "کشف" کرامت او
خرق عادت کارونو واقعات دیر دی چه په شمار کښې نه راځی. اګرچه
دوئ دَ کشف او کرامت اظهار به خوښولو. لیکن څرنګ چه دوی پخپله
بیان کښې فرمائیلی دی چه کشف او کرامت دَ تصوف او سلوک په لاره
کښې یو مقام دے. څوک چه دے مقام ته رسیدلی وی. هغوئ نه بیا

په خوښه یا نا خوښه دَ کرامت اظهار کیږی . اودَ هغې مقصد اوی چه کومو خلقو ته دے تبلیغ کوی دَ دین اسلام رموزاو سرار ورته بیانوی چه ددے صفت پاعلیٰ لودَ هغوی عقیده پخه شی او ددے بزرګ خبرے په غور سره واوری. هرکله چه حضرت پیر بابا روحانی مقام دَ غوثیت و و. نودَ دوی ته دَ کرامتونو اظهار لازمی و و.

دَ دوی طریقه دَ کار داوه چه دَ هر سړی حالات ته به یې کتل او هغه شان تعلیم به یې ورته کولو. عامو خلقو ته به یې چه کوم بیعت کولو. په هغې باندے پیر بابا یو خاص نوم ایښے دو. "بیعت شریعت" ددے مطلب داوو. چه عامو مسلمانانو ته به دَ شریعت دَ احکامو دَ مکمل تابعداری بیعت ورکولو. او چه کوم به دَ علم عقل، پوهے خاوندان به وو. اودَ حق طالبان دَ اسرار او رموز و اهل به وو. هغوی ته به یې چه کومه طریقه کوله هغه ته به یې "بیعت طریقه" ویلو. دا قسم بیعت به یې جاهلانو ته نه کولو. فرمائیل به یې چه په دے لاره کښ که بے علمه او جاهل سړے روان شی. نودَ هغه دَ ګمراهۍ خطره ده. دَ بے علمه او عوامو دَ پاره دَ نجات لویه ذریعه داده چه په حق دین اسلام باندے پوره پوره روان شی. دَ دین اسلام دَ اشاعت او تبلیغ په سلسله کښ چه دَ دوی کوم تعلیمات دی. هغه په تفصیل سره دَ اخوند درویزه په کتابونو کښ ذکر شوی دی. دے پخپله دَ اهل سنت والجماعت په حنفی عقیده باندے و و. اودَ اهل سنت والجماعت صحیح عقیدے ته دَ دوی په سبب تقویت اورسیده. لکه چه مخکښ ورته ښاره شوی ده دَ لوا تیا کا و یه عمر کښ په حق او رسیده. اودَ بونیر په علاقه کداپی زی کښ دفن کړے شو. ورسره جُخت دَ ده دَ ځوی سید حبیب الله قبر دے. دَ مزار مبارک په چار دیواری کښ ئے دَ وه عبرګ قبرونه دی. مرخانه طرف ته قبردَ پیر بابا دے. او مغرب طرف ته قبر ئے دَ ځوی سید حبیب الله دے.

# اولاد او خلیفه ګان

د حضرت پیر بابا فقط دوه ځامن وو. (۱) سید حبیب الله چه د پلار په ژوند لاولده وفات شوے وو. (۲) سید مصطفی چه د پلار په ژوند د افغانستان د سمت مشرقي کنړ نومے علاقے ته تلے وو. هلته آباد شوے وو. او بیا هم هلته وفات شوید ے. او مزار یے د علاقه کنړ په موضع دوناۍ پښت کښ دے. دده میاں مصطفی درے ځامن وو. میاں عبدالوهاب المعروف په میاں عبدل چه زیارت یے د علاقه بونیر په " تخته بند " نومے مقام کښ دے. میاں محمد قاسم چه زیارت یے د سوات په موضع " پیر کلے " کښ دے. میاں محمد حسن چه مزار یے د سوات په موضع کوکړۍ کښ دے. او بیا روستو د پیر بابا د اولاد لوله سلسله دده درے واړه منسوبه شروع شویده. او ډیر لوئ عالمان، بزرګان او صالحان پکښ تیر شوید ی. مشهور تاریخي شخصیت سید جمال الدین افغاني هم دده کورنۍ نامور انسان وو. سید مبارک شاه او سید اکبر شاه هم دده په اولاد کښ داسے نامور کسان تیر شوید ی. چه په مختلفه زمانه د علاقه سوات بونیر بادشاهان وو. او د حضرت سید اسماعیل شهید او سید احمد شهید کلک ملګری وو.

د دوی په خلیفه ګانو کښ د یو څو مشهورو خلیفه ګانو نمونه دا ده.

(۱) حضرت اخوند رویزه ننګرهاری چه دده د آبے د قیام سنه ۹۵۲ھ په زمانه یے مرید شوے وو. او بیا تر آخره عمره پورے د خپل پیر سره ملګرے وو. (روستو به یے تذکره راشي)

(۲) ملا صالح الکوزي چه د خپل وخت ډیر لوئ فاضل عالم وو. په قندهار کښ قاضي وو. مزار یے په علاقه بونیر ریاست سوات کښ دے. په دیوانه بابا مشهور دے.

(۳) ملا یوسف بن الیاس کدائی زے. مزار مبارک ئے د ملندرګه
کنهو په لاره کښې دے چه په اخون یوسف یادیږی.

(۴) میاں عبدالکریم ولد اخوندر ویزه المعروف په میاں
کریمداد او بحر المعانی او محقق افغان او میاں شهید.
مزار مبارک ئے په موضع کاټجو - سوات کښې دے.
په شهید بابا یادیږی
دد ے نه علاوه نور بے شمیره مریدان او خلیفه ګان
ئے دی - چه لوی
بحث غواړی.
علیهم
الرحمة
والغفران

# حضرت شیخ احمد سوڼ علیه الرحمة

## غرغښتي، قادري

(سنه ۱۰۳۰ھ)

حضرت قطب الولایت والهدایت. محرم دَ پردو دَ جلال. مکرم کړې شوې په درجو دَ کمال. واقف دَ اسرارِ دَ دواړو کون. حضرت شیخ احمد سوڼ علیه الرحمة په قام باندې غرغښتې پښتون وو. لوی روشن ضمیر صوفي دَ محبت دَ سوز او گداز او درد خاوند وو. دَ دوآبه بست جالندهر په بجواړه نومې کلي کښې اوسیده. ددغه ولایت چه هر څومره خلق وو. ټول پرې رامات وو. ظاهري تصرفات او کرامات ئې له حده ډیر وو. او هر وخت به دَ درې په دربار کښې دَ خدای مخلوق دومره گڼه جوړه وه. چه څه وخت حساب به ئې نه وو. دَ دوی دَ حالاتو په سلسله کښې یو څو وضاحتونه بیانول مناسب معلومیږي.

۱ — دَ حضرت شیخ احمد دَ نوم سره لفظ دَ "سوڼ" لیکلې شي. ددې لفظ وضاحت داسې دې. چه دَ پښتنو دَ مورث اعلی غرغښت

نیکه درې ځامن وو. (۱) داني (۲) ماني (۳) مندو. پدوی کښې بیا دَ مورث اعلی داني څلور ځامن وو. ناغر. کاکړ. داوی. هني. پدوی کښې بیا دَ مورث اعلی هني (تني) شپاړس ځامن وو. چه نومونه ئې دا دي: متکا. اسوت. مرغزالي. مندو. مرغنین. دهمال. یوانې. امرزي. جدون. سالي. سوڼ. علي. (علي خیل) کرک. (قاسم کرک) توڼ. ختابق. رضي. (موسی)

پدې اعتبار سره شیخ احمد دَ غرغښت قام دَ داني نیکه په خاندان کښې دَ هني کورنۍ دَ یوولسم ښاخ او قبیلې (سوڼ) دَ نسل پښتون وو. ځکه ورته شیخ احمد سوڼ وائي.

۲ — لکه چه مخکښې ذکر اوشو. حضرت شیخ احمد سوڼ په بجواړه نومې کلي کښې اوسیده. نو دې وضاحت داسې دې. چه په دوآبه

بست جالندهر کښې د لاهور ښهر نه پنځه نوی میله نمرخاته طرفته "هشیارپور" نومې مشهور ښهر دے. د دے ښهر نه شپېږ میله نور مخکښې نمرخاته طرفته "بجواړه" نومې کلے دے. دا کلے په هندوستان کښې د اسلام د رڼا خوریدلو نه مخکښې آباد شوېدے. علاقه زرخیزه او آباده ده. د غرونو په لمنو کښې آبادی ده. د درے میلونو په فاصله ورسره نزدې غرونه دی. باغونه پکښې ډیر دی. د پښتنو د غرغښتی قبیلے خلق دلته په سنه ۸۲۱ھ کښې آباد شوے وو. چه په هغې کښې د شیخ احمد سون نیکونه هم وو. او بیا ورستو د حضرت شیخ احمد سون په برکت په دے علاقه کښې چه څوک مشرکان او کافران پاتے وو. هغوی اسلام قبول کړے وو. ورستو د شیر شاه سوری په زمانه کښې په دے علاقه کښې د پښتنو آبادی ډیره زیاته شوے وه. د پښتنو ځو ډیر لوی لوی بزرګان او عالمان د بهلول لودهی د زمانے نه واخله د اسلام شاه سوری تر زمانے پورے چه دلته راغلی وو. هغوی د دے علاقے کوټ کوټ ته د اسلام پیغام اورسولو. په دے سلسله کښې په موضع ټانډه کښې د حضرت یونس خان افغان علیه الرحمة او په موضع علاول پور کښې د حضرت دلاور خان پټهان متوفی سنه ۱۰۲۴ھ زیارتونه دیاد وړ دی.

د حضرت شیخ احمد سون غرغښتی د پلار نوم شیخ محمد الیاس سون غرغښتی وو چه د پنجاب په علاقه کښې په بجواړه کښې اوسیده. په سنه ۹۹۵ھ کښې چه حضرت شیخ محمد الیاس وفات شو. نو د بزرګئ او طریقے ګدئ او سجاده نشینی حضرت شیخ احمد سون ته حواله شوله. حضرت شیخ احمد سون د شریعت او طریقت علمونه د خپل والد ماجد نه او د حضرت شیخ الله داد لاهوری علیه الرحمه نه حاصل کړی وو.

حضرت شیخ احمد سون هغه قابل ذکر او بزرګ ترینه هستی ده. چه د دوی د ژوند حالات او د حضرت شیخ احمد سرهندی

دَ ژوند حالات دواړه دومره ډیر بل سره مطابق دی. او داسے ښو ښکارېږي چه په سرسري نظر دَ سړي گمان پیدا شي. چه شاید دَ شیخ احمد سورن معتقد انو دَ حضرت شیخ احمد سرهندی مجدد الف ثانی حالا او واقعات په دوئ پورے تړلی دی. لیکن هر کله چه دَ "کلزار ابرار" او "مخزن افغانی" دواړو کتابونو مصنفان دَ حضرت شیخ احمد سورن دَ زمانے همعصر مؤرخان دی. او ددے دواړو مؤرخانو دَ حضرت شیخ سورن سره سره دَ ملاقات شرف هم حاصل کړے دے. په دے چه دَ هیڅ قسم شک گنجائش نه پیدا کیږی.

دَ حضرت شیخ احمد سورن او حضرت شیخ احمد سرهندیؒ دواړو دَ ژوند شریکه واقعه دا ده. چه څه وخت دا دواړه بزرگان په جدا جدا وخت کښې دَ مغولی بادشاه جهانگیر دربار ته را او غوښتلے شول. او حاضر شول. نو دوئ بادشاه ته دَ تعظیم سجده او نه کړله او په دغه جرم دغه بزرگان دَ گوالیار په قلعه کښې په بند کښې اچولے شوی وو. صرف دومره فرق دے. چه دَ تاریخ او زمانے په لحاظ دَ شیخ احمد سورن دا واقعه وړاندے پیښه شوے وه. او هم دغه واقعه دَ شیخ احمد سرهندیؒ سره څو کاله روستو پیښه شوے وه.

دَ تاریخ مخزن افغان" مؤلفان نعمت الله هروی او هیبت خان کاکړ لیکی :-

په سنه ۱۰۱۶ھ کښے دَ شهنشاه جهانگیر په حکم سره شیخ احمد سورن آگرے ته را او غوښتلے شو. لیکن چه څه وخت دے دَ بادشاه دربار ته حاضر شو. نو دَ ملاقات په وخت کښې ئے بادشاه ته سجده او نه کړله. په دغه زمانه دَ مغلیه بادشاهانو دَ شاهی دربار دا اصول وو. چه هر څوک چه دَ بادشاه ملاقات له به راتلو نو هغه به دَ بادشاه په مخکښې دَ تعظیم تحریم.

او تکریم په طور باندے سجدہ کوُله. لیکن حضرت شیخ احمد سون د دے نه انکار اوکړ. او وئیل چه بغیر دَ الله نه بل چا ته سجده کول نا روا دی. چنانچه پدغه باندے حضرت شیخ احمد سون ئے دَ گوالیار قلعه کښے بند کړ.

شیخ احمد سونؒ درے کاله دَ گوالیار په قلعه کښ بندیوان وو. مگر ډیر په فراخه تندی ئے دغه ورځے دَ پاک خدائ په عبادت کښ تیرے کړے او ډیرے لوئے روحانی مرتبے ورته حاصله شوے.

په سنه ۱۰۱۹ھ کښ خان جهان لودهی (پیر خان ابن دولت خان لودهی المعروف په خان جهان لودهی) ته دَ صوبهٔ خاندیس او دکن حکومت حواله شو. چه څه وخت خان جهان دکن ته تللو. نو د کتاب مخزن افغان دواړه مؤلفان یعنے نعمت الله خان هروی او هیبت خان کاکړ هم دَ خان جهان سره ملګری وو. چه څه وخت دوئ دَ دکن پدے سفر کښ دَ گوالیار قلعه ته اورسیدل. او دَ شیخ احمد سون دَ حالاتو نه خبر شول. نو حصار شول. بادشاه ته ئے خط را اولیږه. چه شیخ احمد سون د دے بند نه آزاد کړی. چه ځمونږ سره دکن ته لاړ شی. جهانګیر اولګیده. دَ خان جهان دَ زړهٔ سا تلو دَ پاره ئے دَ دغه داسول قبول کړ. چنانچه شیخ احمد سون دوه کاله یعنے دَ سنه ۱۰۲۱ھ پورے په دکن کښ پاتے شو. او دَ کفار وخلاف په جهادونو کښ ئے غزاګانے اوکړے. پدے سلسله کښ په مخزن افغانی کښ لیکی چه څه وخت به دَ کفار وخلاف په جهادونو کښ دَ مجاهدینو فوځونه را اووتل. او صفونه به تیار شول. نو حضرت شیخ احمد سون به داکوشش کوُلو چه په قدم کښ دَ ټولو غازیانو نه مخکښ لاړ شی. او دَ شهادت درجه حاصله کړی.

بیا چه څه وخت خان جهان لودهی دَ خان دیس نه واپس آګرے ته راته. نو حضرت شیخ احمد سون هم ورسره ملګرے وو. په واپسئ کښے

کښې چه دوئ ما نه و نو صحائے ته راو رسیدل نو د کتاب "گلزار ابرار" مؤلف حضرت غوثی منډوی شطاری د شیخ احمد سون سره ملاقات شوے وو.
او د دوئ دواړو بزرګانو ترمنځه په صوفیانه اسرار او رموز و بحثونه هم شوی وو. د حضرت شیخ احمد سرهندی مجدد الف ثانی پشان شیخ
احمد سون هم په تصوف او طریقت کښې د شیخ علاء الدین سمنانی هم خیال وو. او حضرت شیخ سمنانی چه په شیخ محی الدین ابن عربی کوم
اعتراضات کړیدی. او هغه د وحدة الوجود د نظریئے مخالفت او تردید کړیدے. دا دواړه بزرګان یعنے شیخ احمد سون او شیخ احمد سرهندی د
دغه شیخ علاء الدوله سمنانی د نظریئے سره متفق وو. دوئ دواړو د هم د ابن عربی د وحدت الوجود د نظریئے تصحیح او صحیح والے نه مَنلو او حضرت
غوثی منډوی چونکه د شطاریه سلسلے شیخ وو. او هغه د ابن عربی د نظریئے په حق کښې وو. په دے وجه د غوثی منډوی او حضرت شیخ احمد
سون ترمنځه دغه صوفیانه بحثونه پیښ شوی وو.

د "تاریخ صولت افغانی" مؤلف زرداد خان ناغر غرغشتی لیکی:-
چه د حضرت شیخ احمد سون غرغشتی دوه لوئ تعریفونه وُو.

۱ — یو دا چه په شجاعت، سخاوت او همت کښې ئے پخپله زمانه کښې څوک هم سیال نه وُو. بے مثله ننګیالے، غیرتی پښتون وو.

۲ — بله دا چه د حقیقت او معرفت په علمونو کښې ناپایابه سمندر وو. او د عجائبو او غرائبو او رموزو مظهر وو. او ډیر لوئ کشف او
کرامات ئے لرل. او د ډیرو لویو فیوضاتو خاوند وو.

د حضرت شیخ محی الدین ابن عربی په کتاب فصوص الحکم کښے چه د مسئله وحدت الوجود په حقله کوم بحثونه دی. او د هغے سره د حضرت
شیخ احمد سون علیه الرحمة کوم اختلافات وو. او د ابن عربیؒ د نظریئے

تردید ئے پہ کومو دلائیلو پہ کولو پہ دغہ باندے حضرت شیخ احمد سون یو رسالہ لیکلے دہ. چہ دَ هغې "مسیح القلوب" نوم وو. او دغہ رسالہ ئے بیا میاں شیخ عیسیٰ مشوانی سندھی برهان پوری علیہ الرحمۃ تہ لیږلے وہ. او پہ هغې کښې ئے دَ شیخ میاں عیسیٰ پہ دے رباعی باندے سخت تنقید کړے وو. دَ میاں عیسیٰ هغہ رباعی چہ دَ وحدت الوجود دَ نظریئے ترجمانی کوی او شیخ احمد سون پرے تنقید کړے دے. دا دہ.

بخپلہ کار کړی، خپلہ انکار کړی ؛ کلہ بادار کلہ م خوار کړی
تہ خو قادر ئے پہ صفتو نو ؛ کلہ م نور کړی، کلہ م نار کړی
عیسیٰ حیران دے پہ دے شیونو ؛ کلہ م یار کړی، کلہ اغیار کړی

دَ تاریخ صولت افغانی مؤلف لیکی: چہ میاں شیخ عیسیٰ مشوانی هم دَ دغہ رسالے پہ جواب کښې یو رسالہ لیکلے وہ. هغہ ئے شیخ احمد سون تہ رالیږلے وہ.

## (میاں عیسیٰ مشوانی)

دغہ میاں عیسیٰ دَ مخزن افغانی دَ روایت مطابق دَ شیر شاہ سوری زمانہ هم لیدلے وہ. او پہ هغہ زمانہ پہ "داملہ" کښې اوسیدہ. لیکن دَ "گلزار ابرار" دَ بیان نہ معلومیږی چہ دے بیا روستو دَ وادی سند هم پہ برهانپور کښې اوسیدہ. پہ دے سلسلہ کښې دَ گلزار ابرار دَ مؤلف رائے ځکہ قوی دہ. چہ دَ گلزار ابرار مؤلف غوثی مندوی بخپلہ دَ دے عیسیٰ مشوانی مرید وو. او هر کلہ چہ دَ حضرت شیخ عیسیٰ او حضرت احمد سون ترمنځہ علاوہ دَ خط و کتابت نہ بحثونہ هم شویدی. نو پہ دے وجہ دَ تاریخ ادبیات پښتو (صـ۳۴) دَ مؤلف هغہ قول صحیح ندے چہ دَ شیخ عیسیٰ زمانہ تر سنہ ۹۵۰ھ اندازہ کوو لے شی. لکہ چہ مخکښې ورتہ اشارہ اوشوہ. غوثی مندوی بخپلہ پہ دغہ بحثونو کښې موجود وو. پہ دے وجہ دَ نہ قول

بحثونه يې دَ دواړو مشائخو دَ دلائلو په پوره تفصيل سره پخپل کتاب "گلزار ابرار" کښې درج کړی دی.

دَ صولت افغانی مؤلف ليکی چه (حضرت شيخ احمد سونؒ په علم تصوف کښې کنې کتابونه او رسالے نورے هم ليکلے دی (چه اوس نا ياب دی.) مخکښې ليکی چه په سن ۱۰۲ هجری کښې چه کله خان جهان لودهی دَ خان دیس نه راوا پس شو. نو حضرت شيخ احمد سون دَ هغه نه رخصت شو. خپل وطن بجوار ته لاړ. په دغه وخت کښې دَ دوئ عمر مبارک دَ اتيا کاله وو.

دَ دے پوره روايت په اعتبار سره که دَ دوئ عمر مبارک په سنه ۱۰۲۱ هجری کښې اتيا کاله وو. نو وئيلے شو چه دَ دوئ ولادت به دَ کال سنه ۹۳۶ هجری په شاؤخوا کښې شوے وو. البته دَ وفات يې صحيح تاريخ معلوم نه دے. کيدے شی چه دَ سنه ۱۰۳ هجری په شاؤخوا کښې په حق رسيدلے وی. مزار مبارک يې په بجوړ کښې دے.

## نسبتِ رسولؐ

علیه الرحمة والغفران

دَ مخزن افغانی مؤلف ليکی، چه حضرت شيخ احمد سون عليه الرحمة په نام باند مخزن عشتی پيښتون دے. ليکن سره دَ دے دَ دوئ نوم سره "سيد" ليکلے شی.

وجه يې دا ده چه يو ورځ دَ دوئ والد ماجد حضرت شيخ محمد الياس سونؒ په خوب کښې حضرت محمد مصطفیٰ صلی الله عليه وآله وسلم په زيارت او ملاقات مشرف شو. حضور نبی کريم عليه التحية والتسليم ورته اوفرمائيل. چه اے شيخ محمد! ستاسو احمد دَ ما په اولاد کښې داخل دے. سيد دے. هغه ته بيا صرف شيخ احمد هر گز مه وائيے. بلکه شيخ سيد احمد به ورته وائيے. چنانچه دَ هغه ورځې نه روستو لفظ "سيد" په طور دَ "عطائے رسول" لقب باندِ دَ دوئ دَ نوم احمد سره ليکلے او وئيلے شی. دَ صوفيانو او بزرگانو په اصطلاح کښې دے خصوصی اعزاز ته "نسبت رسول" وئيلے شی. عليه الرحمة والغفران.

# حضرت سید پیر ابراهیم بخاری علیه الرحمة

ولادت ـــــــــــــ ملتان

وفات ـــــــــــــ قبائیلی علاقه باجوړ

په قبائیلي علاقه باجوړ کښې د سادات وګڼ خاندانونه آباد دي. لکه سادات بنوړخیل[1]، سادات مشوانی[2]، سادات تارن[3]، سادات ترمذی[4] (د پیر بابا اولاد[5]) سادات مکی (حاجی خیل سادات) سادات ابراهیم خیل[6]، سادات کاکاخیل، په باجوړ کښې د ترکلانی قوم مختلف قبیلے چه په هر څو مره علاقو وادی کانو. درو او رود بار کښې آباد دے. په هغے کښې دے قوم د کل مقبوضه جائیداد پنځمه حصه ددے سادات و سیرئ ده. په دے سادات کښې ډیر لوئ لوئ عالمان او بزرګان تیر شویدی - او هر کله چه د ترکلانی قوم د ټولو قبیلو. لکه ماموند، سلارزائے، اسماعیل زائے، عیسیٰ زائے خلق د عالمانو او سادانو مشائخو ډومره قدر او احترام کوی. چه په خپل مجموعی جائیداد او ملکیت کښے د د غه پنځمه حصه ئے دوئ ته په طور د سیرئ ورکړے ده. نو همدغه وجه ده چه ددے عالمانو او بزرګانو د فیوضاتو له برکته په دے علاقه کښې د دین اسلام عزت او حرمت له حده زیات دے - او خلق ئے په دین مینن دی. دیندار او اهل سنت والجماعت مسلمانان دی.

د قبائیلی علاقے باجوړ د ابراهیم خیلو سادات و مورث اعلیٰ حضرت شیخ المشائخ سید ابراهیم بخاری علیه الرحمة دے. چه مقامی طور په پیر ابراهیم بابا بانده مشهور دے. دے د خپلے زمانے لوئ ولی الله تیر شوید ے. او د دین اسلام د اشاعت او تبلیغ او د معرفت او طریقت د فیوضاتو خورولو د پاره ئے دے علاقے ته تشریف راوړے وو. دده شجرهٔ نسب حضرت سید جلال الدین حسن میر سرخ بخاری علیه الرحمة ته رسیږی -

مخکښ مونږ ګه د حضرت سید جلال الدین میر سرخ په تذکره کښې بحث کړیدے. چه د د وئ د مشر ځوئ نوم سید محمد غوث کبیر وو- او د دوئم ځوئ نوم ئے سید سلطان احمد کبیر وو. حضرت سید جلال الدین حسین مخدوم جهانیان جهان ګشت د دغه کشری ځوئ فرزند رحمند دو-
چه مخکښې ئے تذکره بیان شوه- او د حضرت پیر ابراهیم بابا د شجرے وضاحت دے.

د قبائیلی علاقے باجوړ او قبائیلی علاقے مهمند د بخاری ساداتو په شجرو کښے د حضرت پیر سید جلال الدین میر سرخ د مشر ځوئ نوم سید محمد غوث کبیر درج دے او بیا د دغه د ځوئ نوم سید غوث بیان شوے
چه د حضرت سید ابراهیم بخاری باجوړی علیه الرحمة سلسله د وئ تر سیره شجره د نسب ئے دا سے ده:-

سید ابراهیم بخاری [1] ابن سید عزیزالله [2] بن سید نورالله ثانی [3] بن سید فتح الله [4] بن سید نورالله اول [5] بن سید نور محمد [6] ابن سید نورالدین [7] ابن سید ابو سعید [8] مبارک بن سید غوث [9] بن سید محمد غوث [10] ابن سید ابو البرکات جلال الدین حسن میر سرخ بخاری [11] بن سید علی ابو المؤید [12] بن سید ابو علی جعفر [13] بن سید صفی الدین محمد ابو الفتح [14] بن سید محمد [15] بن سید محمود اصغر [16] بن سید احمد قتال [17] ابو یوسف بن سید عبدالله [18] بن سید علی اشتر [19] بن سید عبدالله [20] جعفر ثانی بن سید امام حسن [21] عسکری بن سید امام علی نقی [22] بن امام محمد تقی [23] بن امام رضا [24] بن امام موسی [25] کاظم بن امام جعفر صادق [26] بن امام محمد باقر [27] بن امام علی زین العابدین [28] ابن سید الشهداء امام حسین رضی الله عنهم اجمعین

مخکښې مونږ دا بحث کړیدے چه د قبائیلی علاقے باجوړ او مهمند په شجرو کښې د سید عبدالله جعفر ثانی د پلار نوم سید امام حسن عسکری شوے دے. لیکن د ګوهر کرهئ د بخاری ساداتو بیان دا دے چه د حضرت سید امام علی نقی

درے ځامن وو- (۱) امام حسن عسکری (۲) سید حسین (۳) جعفر ثانی
په وئ کښې سید ابراهیم بخاری دَموش اعلیٰ میر سرخ. بخاری دَ نسب شجره حضرت
سید، جعفر ثانی ته رسیږی لکه چه دَ حضرت سید علی ترمذی پیر بابا
دَ نسب شجره چه حضرت امام حسن عسکری ته رسیږی. اودَ قبائیلی علاقې
مهمند دَ سید شیخ ذکریا شجره چه حضرت سید حسین ته رسیږی.

حضرت سید ابراهیم قدس سرّه په شجره کښې دَ حضرت میر
سرخ بخاری په یوولسمه پیړئ کښې بنسے دے. هر کله چه حضرت میر سرخ
بخاری په سن ۶۹۰ھ کښے وفات شویدے. اودَ علم اصول تاریخ دَ یو روایت مطابق
په یوسل کاله کښې درے کسان راتللے شی. نو په دغه حساب حضرت پیر ابراهیم
دَ سنه ۱۰۲۳ھ دَ زمانے بزرګ دے. او په تاریخی اعتبار سره حضرت پیر سید
علی ترمذی پیر بابا او حضرت شیخ ابراهیم بابا د واړه دَ یوے زمانے بزرګان دی.
او دواړه دَ شیخ سالار رومیؒ مریدان هم دی.

دَ حضرت سید پیر ابراهیم بابا متعلق دَ باجوړ او مهمند دَ سیدانو
دَ شجرو بیانونه مختلف دی. دَ مهمند و دَ شیخانو سیدانو روایت دا دے. چه دے دَ
باجوړ قبائیلی علاقے ته دَ غزنی نه راغلے دے. اودَ باجوړ دَ پیر ابراهیم خیلو
سیدانو خپل صحیح روایت دا دے. چه دے دَ ملتان نه دَ موجوده ضلع کیمبلپور
چچ نوے علاقے ته او بیا دَ هغه ځائ نه دَ باجوړ دَ ماموندو علاقے ته راغلی وو.
...آباد شوے وو- او هم دلته وفات شوید ے. او مزار مبارک ئے دَ ماموندو په
علاقه کښې په وادئ چارمنګ کښې دَ کوټکی نومے کلی خوا ته دے. دَ ولادت او
وفات دواړه صحیح تاریخ ئے تر دے وخته پورے را ته معلوم شوی ندی- البته
زمانه ئے هم هغه سنه ۱۰۲۳ھ شاوخوا ده. او په سنه ۱۰۰۴ھ کښې باجوړ ته راغلی دے.
دَ باجوړ دَ پیر ابراهیم خیلو سادات روایت دے چه دَ حضرت سید
ابراهیم ځوئ نوم سید اسماعیل رو چه دَ هغه دوه بیبیانے وے. لږ دَ پیر بابا ...

دَ هغه نه یې دوه ځامن پیدا شوي وو.

(۱) میاں نور محمد چه مزار مبارک یې په باجوړ وادۍ بابو قره موضع چورک کښې دے. په چورک بابا یادیږي.

(۲) میاں شاه نور چه زیارت یې دَ بابو قره په ډانډو کئ نومې کلي کښې دے. دَ سید اسماعیل دویمه. لی بی په تمام مومندو کښې تیره وه. دَ هغه نه یې یو ځوئ پیدا شوے وو. سید جلال علیه الرحمة. دے په خپل ژوند کښې دَ علاقه چارمنګ په وادۍ جندول ته راغلے وو. دلته آباد شوے او دلته بیا وفات شوے هم وو. په تاریخي اعتبار سره دَ سنه ۱۰۸۹ھ دَ زمانې بزرګ دے. ددۀ مزار مبارک دَ وادۍ جندول په دره شالکنډۍ موضع چنګنړ کښې دے. دَ حضرت سید جلال درې ځامن وو

(۱) دَ یو ځوئ زیارت دَ تاکره سره نزدے په موضع ډوپ کښې دے.

(۲) دَ دویم ځوئ زیارت په دره شالکنډۍ موضع "کودر" کښې دے.

(۳) دَ دریم ځوئ سید مشهور نوم وو. ددۀ زیارت دَ پلار دَ مزار سره یو ځای دے.

روستو دَ میاں مشهور ځوئ و میاں نشان دَ هغه ځوئ وو. میر سید دَ هغه ځوئ وو سید شمال بیا دَ هغه ځوئ وو سید غلام نور دے پینځم پشت پورې دَ سادا تو دا خاندان دَ باجوړ په جندول نومې علاقه کښې اوسیدۀ. او دَ دوئ پینځو وارو زیارتونه په دره شالکنډۍ کښې دي. چه اولاد یې نن ورځ په دے لاندینو کلو کښې آباد دي. کودر، شیخجي، ډوپ، بازارک. شلاس بغزۍ. مولی. ډیکی. ډینګی سار وغیره (دلته دا یادول پکار دي. چه بغزۍ. مولے نومې کلي دَ وادۍ میدان په دره انګو ړه کښې دي. او دَ بغزۍ کلی نوم نن ورځ په چنار کوټ باندے بدل شوے دے.)

دَ سنه ۱۲۵۴ھ په شاؤخوا کښې دَ حضرت سید غلام محمد علیه الرحمة ځوئ سید محمد دَ وادۍ جندول نه دَ وادۍ میدان چنار کوټ نومې ځای ته راغے. او دلته آباد شو. دَ سنه ۱۲۸۷ھ په شاؤخوا کښې وفات شوید دے.

او مزار مبارک ئې په چنار کوټ کښې دے. د دلۀ د ځوئ نوم سید ابوالحسن وو.
او دَ هغه نه ئې دَ اولاد سلسله پاتے دۀ. چه سید جعفر نوے حوټے ئې
اوس ژوندے دے.

په مجموعي اعتبار دَ بخاري ساداتو دَ ابراهیم خیل خاندان
سیدان دَ باجوړ په علاقه ماموند. بابوقره. جندول. میدان. بړول.
روبار او چارمنګ کښې آباد دي. دَ شریعت او طریقت سجاده نشین
خاندان دے. او دے علاقے دَ دیني او روحاني رهنمائي په سلسله کښې
یوۀ مبارکه کورنئ دۀ.

دَ بابر، همایون او دَ اکبر دَ حکومت په ابتدائي ورځو کښې چه باجوړ
دَ مغلیه حکمرانانو په قبضه کښې وو. نو په باجوړ یو سالانه خراج مقرر
وو. دَ حضرت سید ابراهیم بخاري په زمانه کښې چه دَ شهنشاه اکبر
امیر زین خان کوکه باجوړ دوباره رعیت کړ. نو حضرت سید ابراهیم
له ئې په سنه ۱۰۰۴ھ کښې دَ یو فرمان په ذریعه دَ علاقه باجوړ خراج
په جاګیر کښې ورکړ. دَ شهنشاه جلال الدین اکبر دغه تاریخي فرمان
چه دَ ابوالفضل علامي دستخط هم پرے موجود وو. دَ سید ابراهیم
بخاري دَ خاندان سرۀ موجود دۀ. چه دَ تانبے په یوۀ لوحه تختي
کنده شوے لیک وو. ددے نه هم معلومیږي چه دَ باجوړ دَ قبائیلو
دَ پارۀ ددے ساداتو دَ مبارک خاندان وجود څومرۀ دَ برکت باعث وو.
-علیهم الرحمة والغفران-

| ۹۷۴ھ سنه<br>شهنشاه عبدالاکبر | بسم الله الرحمٰن الرحیم | سنه ۹۷۴ھ<br>شهنشاه عبدالاکبر |
| --- | --- | --- |

در سنه ۹۷۴ھ باجوړ سید ابراهیم ولد سید عزیز الله را بخشیدم وجه آن بود که من بیمار بودم.
در آن وقت او از ملتان آمد دعا از برائے من خواست و دعائے او خدا وند کریم قبول کرد
از آن وقت مرا صحت شد. ازین سبب من باجوړ او را بخشیدم. از دریائے کنړ تا دریائے پنجکوړه
و از بیابان نکنړ تا غار کنور من او را بخشیدم.
جلال الدین اکبر شاه. ولد نصیر الدین همایون شاه     سید ابراهیم ملتاني ولد عزیز الله
ولد ظهیر الدین بابر بادشاه.     ولد سید نور الله. الراقم مفتي ابوالفاضل.

# حضرت شیخ مولانا عبدالوهاب رح

## المعروف اخون پنجو بابا علیه الرحمة

ولادت ــــــــــــ تره کي ضلع مردان سنه ۹۳۷ھ

وفات ــــــــــــ اکبرپوره ضلع پښاور سنه ۱۰۴۰ھ

حضرت مولانا شیخ قدوة العلماء والعارفین عبدالوهاب المعروف په اخون پنجو بابا علیه الرحمة د اکبرپورې د پښتو ریو مشهور عالم او روحاني شخصیت تیر شوی دے - چه د شمال مغربي پاکستان په اولیائے کرام کښې ډیر اوچت مقام ورته حاصل دے - په سنه ۹۳۷ھ کښې پیدا شوے او په سنه ۱۰۴۰ھ کښې د ۱۰۳ کلو په عمر وفات شوی دے - علیه الرحمة والغفران .

څو د مطالعے او معلوماتو مطابق د دوی حالات په لاندې کتابونو کښې ذکر شوي دي . تذکرة الابرار. آئین اکبری - مناقب د شیخ عبدالوهاب . چه په دے نوم کښې و کسانو کښې کتابونه لیکلي دي . مثلاً (۱) مؤلف اخوند سالاک (۲) تالیف د شیخ عبدالغفور (۳) تالیف د شیخ میاں علی (۴) تالیف د ملا خاکی (۵) او تالیف د میاں بادشاه . سلوک الغزاة . آئینه تصوف . بیاض د میاں غلام صدیق . بیاض د میاں ابوحامد . تحفة الاولیاء . د پښتو د ادب تاریخ . پښتانه شاعران . تذکره شیخ رحمکار . تاریخ یوسفزائے مشائخ و علماء سرحد .

دلته اول د تحفة الاولیاء په روایت د مولانا عبدالوهاب حالات په اختصار سره درج کوو ځکه چه د دے کتاب په بیان کښې بعض داسے تاریخي نکتے دي چه د هغے وضاحت او د نورو تذکرو د بیانونو سره ئے تطبیق ضروري دے . وروسته به غله پوره ذکر شوو تهولو کتابونو . او د هغے د بیانونو په تاریخي پس منظر باندے یوه تاریخي او تحقیقي تبصره درج کوول مناسب گنړو . چه د دے مشهور او نامور عالم او روحاني پیشوا

دَ قومیت زمانے او روحانی کارنامو اودَ هغے دَ پس منظر په حقله سپه معلوماتو کښن زیاتوالے اوشی۔

دَ تحفة الاولیاء بیان دا سے دے چه:-

دَ حضرت مولانا عبد الوهاب دَ والد ماجد نوم سید غازی بابا نوسلجامی وو. او په نسب حسینی سید وو. دَ دوئ مشران دَ عرب دَ ملک نه راغلی وو. اودَ روهیلکنډ په سنبهل نومے علاقه کښن آبادشوی وو. (سنبهل په هندوستان کښن دَ روهیل کنډ په علاقه مرآداباد سنبهر سره نزدے دَ یو مشهور مقام نوم دے. چه دَ تاریخ په ټولو کتابونو کښن په سرکار سنبهل سره یاد شوے دے. په آئین اکبری کښن دَ "خدیو نشائین" په عنوان سره دَ دوئ ذکر په "شیخ پنجو سنبهلی نامه سره شوے دے.) دَ خدیو نشائین معنے دا سرداره دَ تیر و شو او راتلونکو دوارو ټولګو دَ عالمانو. عارفانو او صاحبان دَ دین او دنیا او خاوندان دَ ظاهر او باطن.

په سنه ۹۳۲ھ کښن چه دَ بابر مغولی دَ لاس نه دَ لودهی خاندان حکومت زوال بیا موندلو نو دَ دوئ والد محترم سید غازی بابا دَ چچ دَ هزارے په لاره یوسفزو علاقے ته راغے. او په موضع تره کئ تحصیل صوابئ ضلع مردان کښن استوګن شو. (دا کلے دَ موضع یار حسین نه جنوب مشرق طرفته واقع دے. او نن ورځ په ګجوانو ډهیرئ یا ډیرئ. دَ خان ګجو قبر هم دغلته دے.) دَ تره کئ دَ قیام په ورځو کښن سید غازی بابا دَ مولانا محمد صالح علیه الرحمة المعروف په دیوانه بابا دَ تره ورسره وادهٔ اوکړ. او هم په دغه موضع کښن په سنه ۹۲۵ھ کښنے ئے نارینه فرزند پیدا شو. عبد الوهاب نوم ئے پرے کیښو دا چه روستو په اخون پنجو بابا مشهور شو.

په هغه زمانه دَ یوسفزو په علاقه دَ خان ګجو خانی او سرداری وه.

خان موصوف خوب اولیده چه ډیر سخت باران شویده. ملک سرسبز اوشاداب شو. اودے رحمت نزول د یو ماشوم له برکته اوشو. چه نن شپه پدے کلی کښ پیدا شوے دے. او د هغه نوم عبد الوهاب دے.
خان چه صبا له خوب را بیدار شو. که څه ګوری چه رشتیا باران شوے وو. ډیر زیات خوشحاله شو. ځکه چه د دغه نه وړاندے ډیر سخته سوکړه وه. او د خدائے مخلوق د خشک سالئ نه په هلاکت کښ ګیر وو. چنانچه سحر وختی ئے وینځه اولیږله. کور په کور ئے تپوس ونه اوکړو. معلومه شوله. چه د سید غازی په کور کښ نارینه فرزند پیدا شویدے. خان سمدستی راروان شو. د دے بختور ماشوم لیدلو له راغے.
په هغه زمانه د خلقو دا رسم وو. چه د کلی او کندی ځلمی به راغونډ شول. د چاکره چه به نارینه فرزند پیدا شوے وو. د هغه په کوټه کښ به ډیرے ګوډلے خوشحالی به ئے کوډله. او د صحبت په طور وینځه روپئ به ئے ترینه غوښتلے هرکله چه د سید غازی بابا نه هم د کلی ځلمو د صحبت د پاره د ښځو روپو مطالبه اوکړله. او د هغوئ سره د غه رقم موجود نه وو. نو پریشانه شول. لیکن هم پدغه حال کښ یو مجذوب فقیر راغے. حضرت غازی بابا له ئے د دے بختور ځوئ په پیدا کیدو مبارکی ورکړه. د دے ماشوم دیدار ئے اوکړو او یوه اشرفئ ئے د دوئ په خدمت کښ نذر کړله. چه سید غازی هغه د کلی ځلمو له په صحبت کښ ورکړله. بیا چه خان ته د دے ټولے واقعے نه خبر شو. نو حکم ئے اوکړو. او د صحبت غوښتلو دارسم ئے په ټوله علاقه کښ بند کړو. (پدے خیال چه د یو سړی به نارینه فرزند پیدا شوے وی. د حجرے ځلمی به ترینه صحبت غواړی. د هغه به وس نه رسیږی. دوئ به ئے تنګوی. او پدے شان به د ځوئ د پیدا کیدو په ورځ هم د والدینو زړه ته درد او تکلیف رسیږی) چنانچه د دغه سنه ۹۴۵ھ نه را په روستو ترننه ورځے پورے د یوسفزو په علاقه کښے د غه رسم ختم شویدے.

رضوانی مخکښ لیکی :-

سید غازی بابا په تره کښې خو کلونه تیر ولو نه پس اراده او کړله - چه د دے ځائ نه کډه کول پکار دی . وجه یې داده - چه په دغه زمانه یوسفزے اولس ټول باغیان وو . ځکه چه تعلق یې د مغل حکمرانانو سره کړی لو . او دست پرورده د بابر او همایون وو . او مخکښ د دوړ کښ هر کله چه د شیر شاه سوري د لاس نه همایون د هندوستان نه او کښلے شوے وو . او د هغه په ځائ شیر شاه سوري د هندوستان بادشاه شو . او ګجوخان نومے سردار د اولس یوسفزی د شیر شاه سوری نه باغی وو . په دغه وجه مولانا سید غازی په ۹۵۸ کښې په زمانه د سلطنت د اسلام شاه کښې د یوسفزو د علاقے نه د پېښور علاقے ته په کډه رار روان شو . د خاندان په دے افرادو مشتمل وو . سید غازی . د ده مخیل والد ماجد د سید غازی تهبرا او دوه ماشومان یو عبدالوهاب چه په دغه نیټه څوارلس کلو په عمر وو . او دوئیم د عبدالوهاب کشر رور د علی محمد په ګدر (موجوده د مؤمن خان ډهیرۍ ګدر ) راپورے وتل . د مصري پورے په مقام یې کډه وا پړوله - ( کوم ځائ کښې چه نن ورځ د اخون پنجو بابا مزار مبارک دے . د دے زور نوم مصري پوره وو . د اکبر پورے موجوده کلے لا په دغه نیټه (سنه ۹۵۸) نه وو جوړ شوے . ) ښاروی او مال چه ورسره وو . هغه په یې د دے ځائے په ورشو کښې ساتل .

پد غه زمانه چه سید غازی مصر پورے ته راغے . د همایون رور مرزا کامران په پېښاور ښهر قبضه کړے وه . او د قبیله داؤدزی خاق یې کومکیان وو . هر کله چه د مصري پوره (حال اکبر پوره) علاقه هم د قبیله داؤدزی په عملداری کښې وه . په دے وجه مولانا سید غازی د دغه ځای نه تصم کډه او کړه . د پېښور ښهر خوا ته نزدے

چوهاکوجر نومے کلی ته راغے. دلته یے دَ کلی خوا ته ځان له د ولاړ رسېږي نه جوړ کوړ. مال مویشی به یے ساتل او په هغے به یے خپله گذاره کوله.

رضوانی مخکښ لیکی:. هر کله چه مولانا غازی بابا په موضع چوهاکوجر کښې استوگن شو. نو دغلته یو لوئ عالم ود. چه جامع دَ علوم او فنونو وو. خپل ځوئ عبدالوهاب یے هغه ته دَ تعلیم او تربیت دَ پاره حواله کړ. څه موده یے دَ هغوئ سره علم حاصل کړ. بیا دے ځائ نه دَ علم په طلب کښې هندوستان ته لاړ. او په روهیلکنډ کښې دیره شو. په دغه وجه په بعض پښتو اشعارو کښې د ده نوم افغانی نوسلجامی لیکلے شوے دے.

لکه په دے شعر کښې ے

پس له ده نه ابوالفتح لاثانی دے ؛ پس له ده اخون پنجو نوسلجامی دے.

(نوسلجام دَ هند دَ یو بنجوانی مقام نوم دے.) په هند کښې دَ څه زمانے تیرولو نه پس بیا خپل کلی چوهاکوجر ته راغے. دَ حضرت غازی بابا والد ماجد هم دَ چوهاکوجر دَ قیام په دوران کښې په حق او رسیده. او هم غلته دفن کړے شو. په دے کلی کښې تقریباً دیرش کاله زمانے تیرولو نه پس (دَ سنه ۹۵۸ھ نه تر سنه ۹۸۸ھ) په سنه ۹۸۹ھ کښې دَ پیښور ښهر دَ قلعه سره متصل شمال مغرب طرفته شاه ډهنډ نومے مقام ته راغے (دا مقام دَ موجوده بالاحصار پیښور نه مغرب طرف ته په ډوره کښې دے. او نن ورځے دَ جبے په نوم یادیږی.) غازی بابا او دَ هغه ټبر دواړه هم په دغه کال (سنه ۹۸۹ھ) دغلته وفات شول. او هم دغلته (دَ بالاحصار نه مغرب طرفته په ډوره کښې) یے مزارونه جوړ شول.

دَ والد دَ وفات نه روستو (په سنه ۹۹۰ھ) کښې مولانا عبدالوهاب سره دَ خپل کشر رورنه اکبرپورے ته راغے. او دلته یے دَ علمی دینونو په درس او تدریس تصنیف او تالیف او دَ دین اسلام په تبلیغ کښې ژوند

تېره ول شروع کړل. دَ خدائ بې شمېره مخلوق ته ترینه فیض اورسیده. او تقریباً درې سوه کسانو دَ دوئ نه په دیني علمونو کښې فیض حاصل کړیدې. او درجه دَ فضیلت ته یې رسوَلي وو.
دَ تحفة الاولیاء مؤلف لیکي چې. (ص ۱۶۱)

چه په کال سنه ۹۹۳ھ کښې دَ حضرت شیخ جلال الدین محمود الفاروق تهانیسريؒ مشهور مرید حضرت شیخ ابوالفتح کماچي علیه الرحمة وادئ پیښور ته تشریف راوړې وو. په مقام دَ اکبرپوره یې دَ دوئ سره ملاقات روشو. او په سلسله صابریه چشتیه کښې یې دَ دوئ ته خلافت عطا کړ. داهغه زمانه وه. چه د دې نه څلور کاله وړاندې په کال سنه ۹۸۹ھ کښې حضرت شیخ جلال الدین محمود الفاروق تهانیسري وفات شوې وو. او د غه نه دوه کاله وړاندې په سنه ۹۹۱ھ کښې پیر سید علي ترمذي په حق رسیدلې وو. او هم په دې کال مرزا محمد حکیم والي کابل وفات شوې وو. شهنشاه اکبر پیښور ته راغلې وو. او زین خان کوکه په علاقه دَ سوات او باجوړ لښکرکشي کړې وه.

په وادئ پیښور بلکه ټول مغربي پاکستان کښې حضرت مولانا شیخ عبدالوهاب علیه الرحمة دَ سلسله عالیه چشتیه صابریه په مشاهیر و بزرګانو کښې دې. سید علي ترمذي پیر بابا طریقه هم چشتیه وه. لیکن دهغه دَ نظامیه سلسلې شاخ وو. په سلسله عالیه صابریه کښې دَ مولانا عبدالوهاب علیه الرحمة نه دَ وادئ پیښور لویو لویو عالمانو فیض موندلې دې. (چه روستو به یې ذکر راشي.) صابریه طریقه دَ ډېر و سختو مجاهدو او ذکر انو اعمالو او وظائفو طریقه ده. او هم پدغه وجه یې فیوضات هم ډېر زیاته دي. او دغه خبره دا ده. چه دَ حضرت مولانا شیخ عبدالوهاب اخوند پنجو باباعلیه الرحمة نه چه کوم

فیوضات خوارۀ شوېدې۔ هغه مثال نری۔ علیه الرحمة والغفران

## تاریخي او تحقیقي جائزه

دَ حضرت مولانا عبد الوهابؒ دَ ژوند په حقله دا مختصر تذکره چه مُونږ
مخکښې درج کړې شوه۔ دا دَ قاضي میر احمد شاه رضوانيؒ دَ کتاب تحفة
الاولیاء (زمانهٔ تالیف ۱۳۲۱ھ) دَ بیان خلاصه ده۔ مخکښې مونږ دَ دې
کتاب نه علاوه دَ شپاړس نورو کتابونو فهرست درج کړې دے۔ په کومو
کښې چه دَ دوئ ذکر موجود دے۔ اوس مونږ ته دا کتل پکار دی۔ چه دَ
رضواني مرحوم دا بیان دَ څه په استناد او حواله بناء دے۔ په دې کښې کوم داسې
نکتې دی چه هغه په تاریخي طور سره ډېرې اهمې دی۔ لیکن چونکه وضاحت
ئې نه دے شوے۔ نو ورستو دَ هغې نه غلط نتیجې اخیستې شوې دی۔ او مشکلات ئې
پیدا کړېدی۔ او کومې داسې نکتې دی چه هغه په تاریخي لحاظ سره غلطې دی۔
او بله دا چه دَ رضواني مرحوم نه دَ مخکښې زمانې دَ نورو تاریخي تذکرو روایات
څه دی۔ او صحیح حقیقت څه دے۔ په دې خبرو دَ پوهېدلو دَ پاره دا ضروري ده۔ چه
مونږ اول دَ هغه ټولو کتابونو پېژندګلو اوکړو۔ په کومو کښې چه دَ مولانا
عبد الوهاب ذکر راغلے دے۔ او بیا دَ هغې په مندرجاتو بحث اوکړو۔ او دا بحث
ځکه ضروري دے۔ چه څومونږ اکثر مناقب لیکونکي اصحابؒ بنیادي طور مورخانؒ
نه دی۔ روایات ئې راجمع کړي دی۔ لیکن دَ هغې تاریخي ربط او پس منظر ئې
په نظر کښې نه وو ساتلے۔ او بله دا چه دَ عقیدتمندئ په وجه زیات زور ئې
دَ یو بزرګ دَ کشف او کرامت دَ واقعاتو بیان له ورکړے وي۔ کوشش ئې
داوي چه هر څومره ممکن کېدلے شي چه دَ زیاتې نه زیاتې دَ بزرګئ واقعات
خپل ممدوح ته منسوب کړے شي۔ په دې طریقه دَ واقعاتو او حقائقو اصلي
شکل مسخ شي۔ او په غلط رنګ کښې پېش شي۔ دَ رضوانيؒ په دې بیان کښې
هم یو داسې څایونه موجود دی چه روستو به ورته اشاره اوکړو۔
کتابونه دا دی:-

(۱) دَحضرت مولانا عبد الوهابؒ دَتذکرے په سلسله کښې دَ ټولونه اولنے کتاب دَ اخوند رویزه کتاب تذکرة الابرار (زمانه تالیف سنه ۱۰۲۱ هـ) دے.
چه یو غه نیټه مولانا عبد الوهاب اخون پنجو بابا (متوفی سنه ۱۰۴۰ هـ) لا ژوندے وو. او په دے لحاظ دا یو معاصرانه شهادت دے.

(۲) دوئیم کتاب آئین اکبري تالیف دَ ابو الفضل دے. چه دد ے یوه حواله په تحفة الاولیاء کښې نقل شوے ده.

(۳) مناقب شیخ عبد الوهاب. دَ اخوند سالاک متوفی (سنه ۱۰۶۷ هـ) دے. اخوند سالاک دَ حضرت اخون پنجو بابا مشهور مرید دے. دا کتاب اوس نه پیدا کیږی.

(۴) "سلوک الغزات" دَ اخون سالاک دَ مشهور مرید مُلا مست تالیف دے. دد ے یوه نسخه دَ افغانستان "پښتو ټولنه" په کتب خانه کښې ده.

(۵) مناقب شیخ عبد الوهاب. تالیف دَ شیخ عبد الغفور عباسی المعروف په بوټ بابا دَ بیارئ شغارئ علاقه داؤدزائي. چه دے هم دَ مولانا عبد الوهاب مرید وو. دا کتاب هم نه پیدا کیږی.

(۶) مناقب شیخ عبد الوهاب. تالیف دَ میاں شیخ علی مامون زي دَ شیر باؤ هشت نغر. دے هم دَ حضرت اخون پنجو بابا مرید وو. دا کتاب هم اوس نه پیدا کیږی

(۷) مناقب شیخ تالیف دَ ملا خاکی (سنه ۱۱۹۸ هـ) منظوم فارسی، دَ شیخ میاں علی مناقب په فارسی نثر کښې وو ه غه ئے په فارسی نظم کړے دے.

(۸) مناقب شیخ تالیف دَ میاں بادشاه دَ ملا خاکی منظوم فارسی کتاب ئے په پښتو ژبه نظم کړے دے.

(۹) آئینه تصوف تالیف دَ حضرت شاه محمد حسن رامپوری (زمانه تالیف سنه ۱۲۳۲ هـ)

(۱۰) بیاض دَ میاں غلام صدیق قلمی (سنه ۱۲۸۴ هـ)

(۱۱) بیاض دَ میاں ابو حامد قلمی (سنه ۱۳۰۰ هـ)

(۱۲) تحفة الاولیاء تالیف دَ قاضی میر احمد شاه رضوانی دَ اکبر پورے (زمانه تالیف سنه ۱۳۲۱هـ) د دے کتاب لوئ مأخذ ونه دَ ملا خاکی او میان بادشاه منظوم فارسی او پښتو مناقب دی. او څنے ذاتی روایات دی. رضوانی داهم لیکی چه دَ میان بادشاه دَ منظوم مناقب اکثر واقعات غلط دی

(۱۳) دَ پښتو دَ ادب تاریخ. تالیف دَ صدیق الله رښتین. د دے کتاب مأخذ ونه "سلوک الغزات" تالیف دَ ملا مست او تذکرة الابرار دَ اخند درویزه دی.

(۱۴) "پښتانه شاعران" او "پښتانه مؤرخان" تالیف څما عبدالحلیم اثر څما مأخذ ونه دَ میان غلام صدیق او میان ابوحامد قلمی بیاضونه او تذکرة الابرار او نور مختلف تاریخی یاداشتونه دی. چه روستو به پرے بحث راشی.

(۱۵) تذکره شیخ رحمکار. تالیف دَ میان سیاح الدین کاکاخیل.

(۱۶) تذکره علماء و مشائخ سرحد. تالیف دَ سید امیر شاه گیلانی دَ دے دواړو کتابونو لوئ مأخذ دَ رضوانی کتاب تحفة الاولیاء دے.

(۱۷) تاریخ یوسفزائے. تالیف دَ الله بخش یوسفی. د ده لوئ مأخذ بعض روایتونه دی چه هغه هم په تاریخی لحاظ سره غلط دی.

## حقیقت څه دَ ے؟

مناسب معلومیږی چه د دے اهم روحانی شخصیت په حقله بعض تاریخی واقعات او حقایق په تفصیل سره پیش کړلے شی. او دا معلومه کړلے شی چه حقیقت څه دے؟ په دے سلسله کښ دَ دوئ دَ قومیت. دَ والد ماجد دَ نوم. او وادئ پیښو رته دَ دوئ دَ راتللو په باب کښ معلومات په ترتیب سره بیان کړو. او ورسره ورسره چه په مختلفو تذکروکښ کوم بیانونه صحیح نه دی هغه هم په نخښه کړو. چه فائده ئے عامه شی.

دَ تحفه اولیاء دَ مؤلف رضوانی مرحوم کوم بیان چه مخکښ

تیر شوے دے. په هغ کښې یو خو ښتے داسے دی. چه فاضل مؤلف ئې وضاحت نده کړے. مثلاً:-

الف - لیکی :- د مولانا عبد الوهاب" د والد ماجد نوم سید غازی سلی می و(؟) ظاهره ده چه غازی بابا د مولانا عبد الوهاب د پلار لقب کیدلے شی. — محضه ئې نسبتی کیدلے. او سوال پیدا کیږی چه د دوی اسم محضه څه وو.؟

ب - لیکی :- "سید غازی بابا په نسب حسینی سید وو. د دوی مشران د عربو نه راغلی وو. او د روهیلکنډ په سنبهل کښې آباد شوی وو.

دا دړے خبرے شوے او رضوانی مرحوم دا نه ده ښودلے چه :-
(۱) چه حضرت سید غازی بابا په حسینی سادا تو کښے د کوم خاندان وو.؟
(۲) په څویم پښت کښې مشرانیکه ئې د عربو نه راغلے وو.؟
(۳) په څویم پښت کښې نیکه ئې د روهیلکنډ کښې آباد شوے وو.؟

دا دړے واړه سوالونه څکه حل کول پکار وو. چه د دے په رڼا کښې دا معلومول اسانیدے شی. چه سید غازی بابا هر کله د هند نه د یوسفزو علاقے ته تشریف راوړلو نو آخر په کوم یو مناسبت د لته راغلے وو. بیا د یوسفزو په علاقه کښې چه ئې قرار اونه موندلو په کوم مناسبت پیښور ته ئې تشریف وړے وو.؟ او دے سوالونه څکه پیدا کیږی چه بنیادی طور د پښتنو د بیلے بیلے قبیلے سره د سادا تو بیله بیله کورنئ تړلے ده. چه د حضرت سید غازی بابا د خاندان تعین اوشی. نو د غه نه د یوسفزو علاقے ته د دوی د راتللو مسئله په اسانه حل کیدلے شی.

ج - لیکی :- حضرت مولانا عبد الوهاب ته اخون پنجو څکه وائی چه دوی به په خپل تبلیغ کښې زیات زور په پنځ بناء د اسلام باندے محکم پاتے کیدلو له ورکولو. لیکن دا توجیه عجیبه څکه ده. چه آخر هغه کوم یو بزرګ

او روحانی پیشوا دے چه هغه په پنج بناء د اسلام بندے په کلکه سره د عمل کولو وعظ او نصیحت نه کوی. ظاهره ده چه وجه ئے نو رخته ده.

پورته چه کومے نکتے بیان شوے دے د وضاحت د پاره د تذکرة الابرار صفحه ۱۰۷، ۱۱۳ او ۵۹ بیا نو ته د میان غلام صدیق مرحوم او میاں ابو حامد مرحوم د بیاضونو د بیانونو ته د ابی مطالعه کول پکار دی.

۱ — اخوند درویزه بابا فرمائی: (تذکرة الابرار ص۵۹) د وادئ پیښور سمه، سوات دا ملکونه د سلاطین سوات په قبضه کښی وو. بیا پرے د شلمانی قوم دوران راغے. بیا پرے د دلازاک قبیلے دوران راغے. او د هغه نه روستو پرے د خشی او غری په قبیلو کښی د یوسفزو وغیره قومونه قبضه راغله. د اخوند درویزه دا بیان په تاریخی لحاظ سره ډیر اهم دے. ترننه ورځ پورے چه کوم مؤرخانو د وادئ پیښور تاریخونه لیکلی دی. هغوئ پدے ملک د سلاطینو د خاندان او قوم په تفصیل ذکر نه دے کړے. چه دا څوک وو. آیا دا سلاطین ټول د یو قوم خلق وو. اخوند درویزه پخپل کتاب تذکرة الابرار کښی په مختلفو ځایونو کښی د سلاطینو د مختلفو خاندانونو ذکر کړے دے. د مثال په طور په صفحه ۱۰۱ کښی لیکی. چه سلطان بهرام او سلطان پکهل (پکهل چه د ضلع هزاره پکهلی نومے علاقه د ده نوم ته منسوبه ده.) دا دواړه رونړه وو. او د "سلطان پنج" د خاندان څخه وو. روستو په ص۱۱۳ ئے چه کوم تفصیل درج کړے دے (د خپلے والدے ماجدے د شجرة نسب په سلسله کښی) د هغے نه معلومیږی چه دغه سلطان بهرام او سلطان پکهل دواړه د ۸۰۰ هـ د زمانے سره تعلق لرلو.

۲ — پورته د اخوند درویزه په بیان کښی د "سلطانان پنج" د خاندان فقط د دوه سلطانانو یعنے سلطان بهرام او سلطان پکهل نومونه راغلی دی. ظاهره ده چه د سلطانانو کوم پنځه خاندانونه وو.

په هغې کښې دوه خاندانونه شول چه نور درے خاندانونه کوم وو. په
تاریخونو کښې چه وادیٔ پیښور ته د یوسفزو وغیره قبائیلو د راشریک
کیدلو ذکر راغلے دے. ورسره دا بیان هم کیږی چه په هغه زمانه په
پیښور ښهر. چارسده. چکدره. سوات کښې یو څو سلطانان وو. لکه
سلطان هنده. سلطان اویس چه دغه په قام تاجک وو. دد ے نه
د" سلطانان پنج " د خاندان د یو بل کورنیٔ پته لګیږی.

۳ — د بلوچستان په پخوانی تاریخ کښې د سلطان ارغون ذکر موجود دے.
چه دغه سلطان ارغون هم دد ے" پنج" خاندان په سلطانانو
کښې وو. او د سنه ۸۰۰ھ په شاؤخوا کښې قندهار ته لاړ. او هلته حکمران شو.
او د کوټه نه ویړن په سبی باند ے حمله کړے وه. دد ے سلطان ارغون په قلعه
حقله د زیاتی تحقیق په سلسله کښې د میاں غلام صدیق مرحوم د بیاض د
مطالعے نه چه کوم معلومات په لاس راغلی دی. هغه دا دی. چه غلام صدیق
یو فاضل عالم او ادیب وو. د سنه ۱۲۸۴ھ په شاؤخوا کښې په مالامالیٔ د پیښور
ښهر کښې اوسیده او د یو عربی کتاب حصن حصین تالیف د محمد بن جزری
الشافعی په آخر کښې ئے خپله شجره د نسب داسے درج کړیده.

د سلطان ارغش (ارغوش) درے ځامن وو. جان شاه. طوغا شاه.
عبدالله (اودل شاه) پد ویٔ کښې د اودل شاه (عبدالله) دوه ځامن وو.
بوډا بابا. مصحف خان (صفحان خان) په ویٔ کښې بیا د مصحف شاه شپږ
ځامن وو. ایاز خان. خواص خان. احسن خان. نبی خان. بجا خان.
سلطان غازی بابا. پد ویٔ کښے د سلطان غازی بابا دوه ځامن وو. عبدالرحیم.
عبدالوهاب (اخون پنجو بابا) په دے پسے غلام صدیق خپله شجره د نسب
داسے درج کړیده. غلام صدیق ولد محمد جی ولد محمد عظیم ولد نشان بابا
ولد عبدالرحمان بابا ولد تختی بابا ولد جان بیګ بابا ولد احسن خان بابا
علیهم الرحمة

دَ میاں غلام صدیق په دے شجره چه مونږ که زیاتی غور اوکړو نو معلومیږی چه هغه سلطان چه دَ سلطان ارغون په نامه دَ بلوچستان په تاریخونو کښے یاد شوید ے ـ اودغه سلطان چه دَ ارغش او ارغوش په نومونو سره دَ میاں غلام صدیق په بیاض کښں درج دے ـ د ادرے واړه په حقیقت کښں دَ یو سړی نومونه دی ـ چه په تاریخی لحاظ سره دَ سنه ۸۰۰ھ دَ زمانے سړے دے ـ او بله دا چه ارغش ـ ارغوش او ارغون په حقیقت کښں د دے سلطان نوم نه دے ـ بلکه دا دَ یو کلی یو کوهستانی یوے علاقے نوم دے ـ ارغش دَ قندهار په صوبه کښں دَ ۵۵ میله په فاصله دَ قلات غلزائی نه جنوب مغرب طرفته واقع دے ـ او هم دغه قندهار په علاقه کښں دَ چهل خانه نومے کلی نه جنوب طرفته په دهله نومے علاقه کښں یو غر نوم هم ارغش دے ـ او ارغون او ارغوان هم دَ خاشرود او بکوا په علاقه کښں دَ قندهار او فراه ترمینځه دَ یو غرنیز مقام نوم دے ـ په دے اعتبار دَ سلطان ارغش معنے دا که دَ ارغش نومے علاقے سلطان ـ

څه مونږ د دے بیان نه دا یو څو نتیجے په لاس راځی ـ یو دا چه سلطان ارغش په حقیقت کښں نسبتی نوم دے ـ لکه سلطان پیښور ـ سلطان سوات وغیره شول ـ او اسم مخصه نه دے ـ بله دا چه دَ سلطان ارغش دا خاندان دَ " سلطان پنج " (پنځه) سلطانانو په کورنئ کښں دَ سلطانانو یوه بله کورنئ ده چه دَ سنه ۸۰۰ھ په شاؤخوا کښں دَ فراه ـ قندهار او بلوچستان په علاقه کښں ئے حکومت کولو ـ او بله دا چه حضرت مولانا عبدالوهاب هر کله چه دَ دغه " سلطانان پنج " دَ خاندان څخه وو ـ ځکه ورته اخون پنجو بابا وائی ـ او د دے لقب کومه وجه تسمیه چه رضوانی مرحوم بیان کړیده که صحیح نه ده ـ

دَ میاں غلام صدیق د دے بیان نه دا خو معلومه شوه چه دَ حضرت اخون پنجو بابا دَ والد ماجد نوم سلطان غازی بابا وو ـ او په پنځمه پیړئ کښں دَ نیکه نوم ئے سلطان ارغش وو ـ لیکن څرنګ چه مونږ مخکښں هم ورته اشاره کړیده که

ظاهره ده چه داد دوئ القاب دی. اصلی نومونه ئې نشي کیدلے. سوال دا پیدا کیږي چه اصلي نومونه ئې څه دی. او بله دا چه د سلطانانو دا خاندان په اصل بانډے په قام څوک دی. ځکه چه رضوانی مرحوم تصریح کړیده چه حضرت اخون پنجو بابا په قام باند حسینی سید دے. نو چه څومره دے پورته ذکر شو معلوماتو سره د رضوانی مرحوم د بیان تطبیق څرنګ راتللے شي. ؟ که فکر او کړو دا یو اهم سوال دے. لیکن د میاں ابوحامد مرحوم د قلمی بیاض نه چه کوم معلومات ما ته په لاس راغلی دی. د هغے په ذریعه حل کیدلے شي. موصوف د حضرت مولانا عبدالوهاب شجره داسے بیان کړیده.

مولانا سید عبدالوهاب[1] ابن مولانا سید برهان الدین[2] ابن سید عبد الملک[3] ابن سید شمس الدین عبدالله[4] ابن سید ابراهیم[5] ابن سید جلال الدین[6] ابن سید محمد محسن[7] ابن اسحاق[8] ابن احمد[9] ابن محمود[10] ابن اسعد[11] ابن علی[12] ابن هرمز[13] ابن مروان[14] ابن قرا[15] ابن سید محمد طاهر الملقب به تارن[16] ابن سید ناصر[17] ابن علاء الدین[18] ابن قطب الدین[19] ابن داؤد[20] ابن سلطان کبیر[21] ابن شمس الدین ابن احمد[22] ابن سید علی رفاعی[23] ابن حسن[24] ابن محمد[25] ابن سید جواد[26] ابن سید امام علی رضا[27] ابن سید امام موسیٰ کاظم[28] ابن الامام الهمام جعفر صادق[29] ابن امام محمد باقر[30] ابن امام زین العابدین علی[31] ابن الامام سید الشهداء حسین[32] رضی الله عنهم اجمعین.

د میاں ابوحامد مرحوم د دے شجرے سره چه د میاں غلام صدیق مرحوم شجره مقابله کړو نو دے نتیجے ته رسیږو چه د مولانا عبدالوهاب د والد ماجد سید برهان الدین لقب سلطان غازی بابا وو. او د هغه د والد ماجد سید عبد الملک لقب سلطان مصحف خان وو. د هغه د والد ماجد سید شمس الدین عبدالله لقب سلطان اودل شاه وو. او د هغه د والد ماجد سید ابراهیم لقب سلطان ارغش وو. او د ارغش او ارغون په علاقو بانډے هم دے حکمران وو. او بله دا چه

دا کورنئ په قام باندے "تارن سادات" دی۔ او لکه چه مخکښ مونږ د سید محمد گیسو دراز اول په تذکره کښ پرے په تفصیل سره بحث کړیدے۔ چه سید محمد طاهر الملقب په تارن صحیح النسب حسینی سید دے۔ مګر هر کله چه کاکړ نیکه پخپل خوئ نیولے او پالے وو۔ په دغه وجه د حسینی ساداتو دا کورنئ په ویش کښ د کاکړ قوم یوه قبیله یعنی افغانان شمار لے کیږی۔ البته ورسره ورسره د "سادات افاغنه" په خصوصی نوم سره هم یادیږی۔ او د کاکړ قوم د ټولو قبیلو او شاخو خصوصاً ګدون قبیلے پیرخانه اوستانه دا رخاندان ګڼړلے شی۔ په دے سلسله کښ ځمونږ د دے خبرے تائید د اخوند رویزه د کتاب "تذکرة الابرار" ص۱۲ د هغه بیان نه هم کیږی چه د مشهور بزرګ حضرت خواجه خضر علیه الرحمة په حقله ئے کړیدے۔ لیکی "خواجه خضر په قام باندے افغان دے۔ لـه افغانان تارن شئے (د اخوند رویزه نه روستو د نورو ټولو پښتنو مؤرخانو هم دغه رائي ده چه د وئ تارن د افغانانو یوه قبیله او د کاکړ قام یو ذیلی شاخ ګڼړی۔ لکه په تاریخ پښاور ص۳۴۲ و ص۳۴۳ کښ هم دا سے لیکلی دی۔ (اخون پنجو قوم افغان تارن) البته بنیادی طور حسینی سیدان دی۔ او هر کله چه حضرت سلطان معزالدین محمد ابن سام الملقب په سلطان شهاب الدین غوری د دهلی د فتح نه روستو د پښتنو مختلف قبائیل په وادئ پیښور، سوات، باجوړ کښ او د کوه سلیمان او کوه کسی په متعلقه میدانی علاقو کښ آباد کړل او په هغے کښ د پنځو سلطانانو کوم خاندانونه چه حکمران شوی وو په هغے کښ یو خاندان د سلطان ارغشن وو۔ او حضرت سید عبدالوهاب د دغه سلاطین پنج د کورنئ یو ممتاز فرد وو۔ او په ویش کښ د کاکړ قوم د ګدون قبیلے سره ئے تعلق وو۔

د ګدون په حقله مولانا محمد اسرائیل ګدون د موضع جهنډا ضلع مردان پخپله مقاله ګدون کښ لیکی "د ګدون قبیلے خلق په اصل کاکړ دی۔

دَنورو قبائیلو پښتان دوئ هم دَ پېښور رخته نیولے وه. په دغه زمانه یوسفزو دا علاقه اخیستے وه. دوئ اول خلیل مهمند وله راغلل. چه کوم ځائے ځائي کړے. خو هغوئ ورته غاړه نده ایښے محمد زوله ئې لیږلی دی. هغوئ هم ترینه ځان خلاص کړے دے. یوسفزوته ئې لیږلی دی. دغسے دَ اتمانزو (منډړ) علاقے ته چه رسید لی دی. نو هغوئ ورله دَ مهابن علاقه ورکړه او دَ ملاتړ په طوریې ځائي کړل۔

په تاریخي اعتبار سره دَ ګدون قبیلے دا نقل وحمل دَ سنه ۸۰۰ھ په آخرینئ حصه کښې معلومیږی. او په دغه ځانه کوچ کښې دَ سلطانان پنج دَ خاندان هغه کورنئ چه دَ سلطان ارغش خاندان وو. دَ هغے بعض نامور سلطانان او دل شاه او دَ هغه ځامن بوړا بابا او سلطان صفحان (سید عبد الملک) او دَ هغه ځامن سید یار خان. سید خواص خان. سید حسن خان. سید نبی خان. سید اجا خان او سید برهان الدین الملقب په سلطان غازی بابا ورسره ملګری راغلی وو. او په کومو ورځو کښې چه دَ موجوده خلیل مهمند په علاقه کښې استوګن شوی وو. دَ موجوده پېښور ښهر جنوب طرفته او دَ کوټله محسن خان نه مشرق طرفته دَ موجوده وزیر باغ په مغربی حصه کښې چرته چه نن ورځ دَ پیر سید حسن ګیلانی قادری علیه الرحمة مزار مبارک دے. دلته ئې دَ سلطان پوره په نوم یو کلے هم آباد کړے وو. (چه دغه کلے تر سنه ۱۱۰۰ھ پورے موجود وو.) او بیا چه دَ ګدون قبیلے خلق دَ موجوده ضلع مردان دَ مهابن علاقے ته لاړل نو په دغه دویم ځانه کوچ کښې هم دَ سلاطین پنج دَ خاندان دا مشاهیر افراد ورسره ملګری وو. او بیا ددے ځائي نه دَ سلطان بهلول لودهي په زمانه کښې روهیلکنډ ته تلی وو۔

په دوئ کښې دَ حضرت سید عبد الملک دویم ځوئ خواص خان هغه دے چه دَ سلطان سکندر لودهي امیر الامراء وو. او حضرت

شیخ عبد القدوس گنگوهی پخپلو مکتوباتو کښې یو مکتوب دده په نوم لیکلے دے.
او هر کله چه خواص دَ حضرت شیخ عبد القدوس گنگوهی (متوفی سنه ۹۴۵ھ)
مریدو و. نو ظاهر ده چه دده دَ ټولو نه کشر رور سید برهان الدین
الملقب په غازی بابا به هم دَ حضرت شیخ عبد القدوس مرید او خلیفه وو.
او هم پدغه مناسبت به حضرت مولانا عبد الوهاب اول دَ خپل والد ماجد
مولانا برهان الدین نه او ورپسے دَ هند په سفر کښې دَ حضرت شیخ جلال
الدین محمود الفاروق تهانیسری نه بیعت کړے وو. او په هرحال په سلسله
عالیه چشتیه کښې دَ مولانا عبد الوهاب دَ مریدیدلو او خلافت موندلو واقعه
دَ هندوستان نه چوهانګوجر ته را واپس راتللو نه مخکښې زمانے واقعه ده. او
هم دده له مخه دَ رضوانی مرحوم هغه روایت صحیح نه دے. چه هر کله به
سنه ۹۹۳ھ کښې حضرت ابو الفتح کماچیؒ اکبرپورے ته راغے نو پدغه نیټه
ئے مولانا عبد الوهاب مرید شوے وو. ځکه دَ رضوانی مرحوم دا روایت
یو خوا نه دَ پورته واقعاتو دَ تاریخی تفصیل له مخه صحیح نه دے. او بله لو یه
وجه ئے دا ده چه دَ "آئینه تصوف" دَ روایت مطابق حضرت اخون سالاکؒ
په سنه ۹۸۹ھ کښې دَ حضرت اخون پنجو بابا نه بیعت کړے وو. نو که دَ رضوانی
هغه روایت او منلے شی چه پخپله حضرت اخون پنجو بابا په سنه ۹۹۳ھ کښې بیعت
کړے وو. نو بیا دا څرنګ کیدلے ممکن شی چه دے لا پخپله دَ چا مرید
شوے هم نه وُو. او دَ هغے نه څلور کاله اول ئے په سنه ۹۸۹ھ کښې اخوند
سالاک نه طریقه کوَله. ددے وجے له کبله دا ویلے شو چه حضرت
ابو الفتح کماچیؒ او حضرت مولانا عبد الوهاب بابا دواړه دَ حضرت شیخ
جلال الدین تهانیسری مریدان وو. او هم پدغه رابطه حضرت
ابو الفتح کماچیؒ دَ دوئ ملاقات له تشریف راوړے وو. البته دا
بله وجه ممکن کیدلے شی چه چونکه په سنه ۹۸۹ھ کښې مولانا عبد الوهاب

پیر طریقت شیخ جلال الدین محمود الفاروق تهانیسریؒ وفات شوے وو.
نو په سنه ۹۹۳ھ کښې چه حضرت ابوالفتح کماچیؒ (قنباچی) د دوئ
ملاقات له راغلے وی. نو مولانا عبدالوهاب به د تبرک په طور د
هغوئ نه تجدید د بیعت کړے وی. چه د بیعت د تجدید کولو دا طریقه
په هغه زمانه په ټولو مشائخو کښې رائجه وه. او دد ے حیثیت د ادب
احترام له قسم نه وو. څو نور. دد ے پوره بیان نه دا یو خو خبرے واضح کیدلے شی.

۱ یو دا چه رضوانی مرحوم لیکلی دی: "چه د دوئ مشران د عربو
نه راغلی دُو." نو د هغے نه به دا مراد اخیستل پکار وی. چه د حضرت
مولانا عبدالوهاب اولسمه پیری کښې مشر نیکه سید محمد طاهر الملقب په
تارن د عربو نه د کوه سلیمان علاقے نه د کاکړ تمن ته راغلے وو.

۲ او هغه چه رضوانی مرحوم لیکلی دی چه: د دوئ مشران په
دوهیلکنډ کښې آباد شوی وو. نو د دغه نه دا مراد اخیستل پکار دی.
چه د حضرت مولانا عبدالوهاب نیکه یعنے د پلار د پلار سید عبدالملک الملقب په
سلطان مصحف خان سره د خپلو څامنو او د کډ ون د قبیلے د ملاتړ نه د
سنه ۸۵۵ھ په شاؤ خوا کښې د سلطان بهلول لودهي په درخواست باند ے
هند ته تشریف وړے وو. د فاضل مؤلف اکبرشاه خان نجیب آبادی د
تالیف آئینه حقیقت نما (ص ۴۳۳) د بیان نه دد ے تصدیق کیږی. مرحوم
لیکی:- بهلول چه په سنه ۸۵۵ھ کښې په مقام د سرهند خپله خطبه
او سکه جاری کړه نو دهلی ته د تللو او د تخت نشینئ د مراسمو د ادا کولو نه ئے
وړاند ے د ملتان. پنجاب او دیبالپور د طرف نه د هر قسم خطر اوختم کولو
او افغانستان نه هند ته د پښتنو راغوښتلو ضرورت اوکنړه. چه د اسلامی
سلطنت د استحکام بند بناه او کړلے شی. افغانستان ته ئے استاذی او نیر بلو
ے ملک د قبائیلی سردارانو نه ئے خواست اوکړ. چه د څان سره خپل

خیل ملانړ را روان کړی او سمه ستی را روان شی. ماله د هندوستان حکومت په لاس راغلی دے. هندوستان یو ډیر فراخه ملک دے. د دے ملک ټولے صوبے چه فتح کړو. نو د یو مضبوط اسلامی سلطنت جوړولو سبه موقع د ه ...... د نیازی - لوحانی - سنبهل - شیروانی وغیره قبائیلو ټول خلق هندوستان ته راغلل "؛

دد ے پورته بیان نه دا هم معلومیږی چه د حضرت اخون پنجو بابا د نوم سره چه لفظ سنبهلی لیکی نو دا د روهیلکنډ د سنبهل نومے کلی او سید لو په مناسبت سره دے. بله دا چه په پښتو کښن د یو مخصوص خاندان نوم سنبهل دے. او دد ے قبیلے د استوګنے په وجه د روهیلکنډ د هغه کلی نوم سنبهل مشهور شوید ے.

۳ بله دا چه مولانا برهان الدین الملقب په غازی بابا چه د هند نه واپس د یوسفزو علاقے ته راتللو - نو وجه یے دا وه چه د دوئ خاندان په خصوصیت سره د کاکړ قوم او کډون قبیلے ستانه را وو. او د کاکړ قوم د مختلفو شلخو نو خصوصاً کډون قبیلے خلق پد ے علاقه کښن آباد وُو. او ورپسے چه د پیښور ښهر علاقے خصوصاً چوها ګوجر ته راتللو نو د هغے وجه هم دا وه چه د غرغښتی قوم د کتړ و قبیلو خلق په هغه زمانه د لته آباد وو.

۴ پد ے سلسله کښن د رضوانی مرحوم هغه بیان صحیح نهٔ دے. چه حضرت مولانا عبدالوهاب سره د خیل کسټره ورنه د خپل والد ماجد د وفات نه روستو پیښور ښهر د شاه د ډهنډ نومے ځائ نه په ۹۹۰ھ سنه کښن را روان شو او اکبر پورے ته په کړه لاړ - بلکه دد ے په حقله د کتاب "سلوک الغزات" هغه روایت زیات صحیح دے چه د "پښتو ادب تاریخ" مؤلف په صفحه (۵۵) نقل کړید ے. لیکی:

"مولانا عبدالوهاب دلسمے پیړئ له مشهورو عالمانو وقائد ینو څخه دے.
وائی چه دے د سلطان محمود گدون ملگرے وو. سلطان محمود گدون
د سنه ۱۰۰۰ھ په حدودکښ د اباسین په غاړه د پښتنو یو ملی مشر وو.
عبدالوهاب د هشتنغر په دوآبه کښ لوئ شوے دے. د سلطان گدون
له خوا خلیفه او یو مشهور پیر او عالم وو".

اخوندرویزه هم ضمنا دیته اشاره کوی. چه: "ملا عبدالوهاب
له مشاهیر وود ے مقام نه دے". د گدون قوم سره دده خصوصی تعلق
او د گدنو په علاقه کښ د مولانا عبدالوهاب د استوګنے تائید د هغه بیان
نه هم کیږی. چه روستو رضوانی مرحوم د تحفة الاولیاء په ص۲۶ درج
کړیدے. چه د گدون او مهابن او کوهستان خلق ترنن ورځ د مولانا
اخون پنجو دربار ته د دوئ قلنګ او شکرانے حاضره وی".

دے پورتنی بیان وضاحت داسے دے. چه مولانا عبدالوهاب
په سنه ۹۹۰ھ کښ د پیښور نه د اباسین په دواړه (مشرقی او مغربی)
غاړو او سیدونکی گدون نوم قوم سالار نومے قبیلے علاقے ته تلے وو. (او
گدون قوم په دوه لویو قبیلو تقسیم دے.) د یوے نوم سالار او د بلے نوم منصور
دے.) او هلته په مانکراوه نومے کلی کښ استوګن شوے وو. د تذکرة
الابرار ص۱۷۰ د بیان مطابق دغه "مانک رایے" نومے کلے په هزاره (موجوده
تحصیل هری پور) کښ دے. او ننن ورځے په "مانکراوه او مانکرا" نومونو
یادیږی. او دلته د سالار قبیلے خلق آباد دی.

اخوندرویزه چه په سنه ۱۰۲۱ھ کښ تذکرة الابرار نومے کتاب
تالیف کولو نو پدغه نیټه مولانا عبدالوهاب او د هغه ورور مولانا
عبدالرحیم دواړه پدغه کلی کښ اوسیدل. د شریعت او طریقت د
علمونو فیوضات یے خوره ول. او په تصنیفاتو تالیف کښ مصروف وو.

اخوند رویزه په تذکرة الابرار (مطبوعه نسخه ص۲۲۱) کښې د دے د واړو د بزرګانو نومونه داسے لیکلی دی. ملا عبدالرحیم مانګراوی. او ملا عبدالوهاب مانګراوی یعنې د حضرت اخون پنجو بابا د خپل نوم سره یې د هغه د مقام سکونت نوم لیکلے دے. او چونکه د رضوانی مرحوم د نظر نه د سلوک نغرة بیان نه وو تیر شوے چه اخون پنجو بابا د سلطان محمود کدون سره ګډ کړیده. نو ځکه دے د اخوند ویزه په دغه پوره تنی عبارت او هغې په مطلب نه دے پوهه شوے. او د خپل کتاب تحفة الاولیاء په ص۳۸ یې ګیله کړیده. فرمائی:

"زه تعجب کوم چه اخوند ویزه په خپل تالیف تذکرة الابرار کښې چه په سنه ۱۰۲۱ھ کښې یې اختتام ته رسولے دے. ولے ذکر د اخون عبدالوهاب د اکبرپورے یې نه دے کړے. او بیا رضوانی مرحوم چه دے ذکر نه کولو کومه وجه د خپل طرف نه بیان کړے ده. چه شاید اخوند ویزه په یو متشرع عالم وو. دا به یې خیال کړے وی. چه ملا عبدالوهاب چشتیه طریقه لری. د وجد او سماع قائل به وی. نو د اخوند رویزه دغه خیال صحیح نه دے. ځکه چه اخوند رویزه هم د چشتیه طریقې بزرګ وو. او چه څرنګ ده خپله سماع نه خوښوله. او جوش خپل یې په ضبط کښې ساتلو. او په استغراق کښې به او سیده. دغه حال د اخون پنجو بابا هم وو. بیشکه اخون پنجو بابا د چشتیه صابریه طریقې مرید وو. او اخون درویزه د چشتیه نظامیه سلسلې مرید وو. نو خدائی سته پوهیږی چه ولے یې ذکر نه دے کړے."

رضوانی مرحوم ته دا غلط فهمی دد ے نه ولاړه شوے ده. چه ده په خپله د "آئین اکبری" په روایت حضرت مولانا عبدالوهاب د اخون پنجو سنبهلی او شیخ پنجو سنبهلی په نومونو پیژندلے دے. او په تذکرة الابرار کښې د دوی نوم د عبدالوهاب سنبهلی په ځائ عبدالوهاب مانګراوی یاد شوے. او هر کله چه رضوانی مرحوم په دغه فرق نه دے پوهه شوے. نو ځکه یې پوره

ذکر شوے غلطه رائ قائمه کړے ده. بله دا چه رضوانی مرحوم په تحفة

الاولیاء صفحه (۲۱۱ و ۲۱۲) کښې دَ مولانا عبد الوهاب دَ یو کشر رور ذکر کړے

دے. لیکن دَ هغه نوم یې نه دے یاد کړے چه څه نوم یې وو؟ که چرې رضوانی

مرحوم دا خوند رویزه په دغه عبارت پوهه شوے وے. نو دا به ورته معلومه

شوې وه. چه دَ مولانا سید عبد الوهاب د دغه رور نوم عبد الرحیم وو.

و بله دا چه هغه یې کشر رور نه وو. بلکه مشر رور یې وو. او دَ شریعت او

طریقت دَ علمونو لر ونکے لوئ عالم فاضل مؤلف او مصنف او روحانی پیشوا وو.

خوند رویزه بابا چه د دے دوارو مشاهیر و بزرګانو په کوم و لفظونو سره

کړیده دَ فائدے دَ زیاتوالی په خاطر دلته د درج کوو لے شی.

## ملا عبد الرحیم مانکراوی

ملا عبد الرحیم مانکراوی دانشمند مدقق دے. او یو داسے مُرَبّی پیر طریقت

دے. چه مهربانی لرونکے دے. په اثبات دَ مذهب دَ اهل السنت والجماعت او

په ابطال دَ اهلِ هوا او بدعت کښې علم منقول (فقه، تفسیر، حدیث) دَ

معتبر و کتابونو او دَ تفاسیر و او احادیثو دَ اماما نو عالی برکات دَ ټولو کتابونو څخه

مسائل راجمع کوی. او کتابونه ترینه تالیف کوی. په دے کتابونو یې مضامین لیکلی دی.

لکه "ردّ البدیع" وغیره. لیکن په بعض تالیفاتو کښې یې څخه کلمات نامناسب هم

درج کړیدی. او په بعض امورو کښې یې بے فائدے زیارونه او تکلیفونه تیر

کړیدی. دَ مثال په طور هغه چه دوئ فرمائیلی دی. دَ حضرت ابراهیم علیه السلام

دَ پلار نوم تارخ وو. او آذر یې دَ تره نوم وو. دَ دغه دَ دوئ نه سهوه شویده.

ځکه چه په تیسیر الکلام وغیره کښې راوړی دی. چه دَ حضرت ابراهیم علیه السلام

دپلار نوم آذر وو. چه تارخ هم ورته وئیلے شی. هم دغه رنګه بله هغه مسئله

ده. چه دوئ فرمائیلی دی. چه هر څوک چه دَ یوے ورځے قوت لری. دَ اختر

سرسایه کول پرے واجب دی. نو دغه مسئله دَ حنفی مذهب نه ده. بلکه

دَ امام شافعیؒ دَ مذهب دۀ.

دلته دا یادول پکار دی چه حضرت اخوند رویزهؒ دَ ملا عبد الرحیم دَ قوم سره لفظ دَ مزنی یعنے پیر طریقت او مهربانی لرونکے استعمال وی، او ورسره چه دَ هغوی قول ذکر کوی. نو والی هغوی فرمائیلی دی. او بله دا چه سره ددے نه چه دَ هغوی په بعض تالیفاتو ئے تنقید هم کړے دے. بیا هم په خپو کتابونو خصوصاً تذکرة الابرار کښے ئے دَ ملا عبد الرحیم دَ دغه مشهور کتاب "ردُّ البدع" نه بے شمیره حوالے هم نقل کړے دی. او ددے کتاب پوره نوم ئے دا سے لیکلے دے. "الرّدع علی اهل الهوا و البدع" او دا پولے دا سے خبرے دی. چه ددے نه دَ مولانا سید عبد الرحیم مانکراویؒ دَ اوچتے علمی او عرفانی درجے اندازه لګیدلے شی.

## ملا عبد الوهاب مانکراوی

ملا عبد الوهاب مانکراوی دانشمند متقی او فقیه محقق دے. متع الله المقتبسین بطول بقائهٖ ځوانمرد هم له فاضلانو ددے ایام او بوله مشاهیرو ددے مقام نه دے. په اثبات دَ طریقه شریفه دَ شریعت محمدی او په اثبات دَ دلائل نقلی او عقلی په صحت دَ سنت احمدی ډیر تالیفات او بے شمیره تصنیفات لری. او هم په ابطال دَ ټولو اقسامو دَ باطل مذهبونو له قسم نه دَ قدریه. جبریه و ملاحده وغیره هم نه دلائل واضح زیات او ډیر له هغے نه چه شمار کښے راشی قائم لری. او هر کله چه دا بهادر انسان په ټولو دینی علومو کښے متبحر عالم دے. هم دَ نثر په تالیفاتو ئے لاس لری. او هم دَ شعر په تصنیفاتو اوچته مرتبه لری. بناء په دغه بعض تالیفات ئے په ژبه عربی کښے دے. او بعض په ژبه هندی کښے او کتاب "کنز الدقائق" (دَ علم فقه) ئے هم په نظم کړیدے. امید لرم چه په تحریر بلند پایه ددۀ کښے به سهو او خلل لار بیا نه مومی. په فضل دَ الله تعالیٰ او توفیق دَ هغه سره"

حضرت اخوند درویزه چه په کومو درنو الفاظو دے دواړو رونړو د
علمی فضیلت تعریف کړیدے. دیو فاضل همعصر مورخ او روحانی
پیشوا دے شهادت نه دد ے دواړو رونړو ودا وچتے دینی علمی
اوعرفانی مرتبے اندازه لګیدلے شی. او دد ے نه دا هم معلومیږی
چه دَ سنه ۱۰۲ھ نه روستو بیا مولانا عبدالوهاب اکبرپورے ته راغلے
دے. او دد ه رور عبدالرحیم هم هلته په کډون (هزاره) کښ پاتے شوی
دے. ځکه چه روستو دَ مولانا عبدالوهاب چه په اکبرپوره کښ هرخومره
پیره شوے ده. دَ مولانا عبدالرحیم ذکر ورسره نه دے راغلے. دد ے په
حقله به دَ کډون دَ میاں کانو دَ خاندان دَ عالمانو نه زیات تحقیق پکار وی.

۵ رضوانی مرحوم لیکلی دی. چه مولانا سید غازی بابا په موضع دَ
ترکئی کښ دَ مولانا محمد صالح المعروف په دیوانه بابا دَ ترور
بی بی سره نکاح اوکړه. او دَ هغې نه یے په سنه ۹۲۵ھ کښ نارینه فرزند مولانا
عبدالوهاب پیدا شو. لیکن دَ رضوانی دا روایت پدے شکل کښ صحیح
نه دے. بلکه په سنه ۹۳۲ھ کښ چه مولانا سید برهان الدین الملقب په
سلطان غازی دَ هندنه دَ یوسفزو علاقے ته راغے او دلته یے واده اوکړه نو
ددغه بی بی صاحبے نه یے په سنه ۹۳۵ھ کښ مشرځوی مولانا عبدالرحیم
پیدا شوے وو. او دَ کتاب آئینه تصوف دَ بیان مطابق په ورځ دَ یکشنبے
(اتوار) نهم تاریخ دَ صفرالمظفر سنه ۹۳۷ھ کښ مولانا عبدالوهاب پیدا شوے وو.

دغه شان رضوانی مرحوم (تحفة الاولیاء ص ۳۹) دَ اخون پنجو
بابا تاریخ دَ وفات ۲۷ رمضان المبارک ورځ دوشنبه وخت دَ چاشت سنه ۱۰۴۲ھ
بیان کړے دے. لیکن دد ے په مقابله کښ دَ "آئینه تصوف" دَ بیان مطابق
دَ دوی دَ وفات تاریخ ۱۳ رجب المرجب ورځ دوشنبه وخت نماز چاشت
سنه ۱۰۴۰ھ دے. او ځما په خیال دَ آئینه تصوف بیان زیات صحیح دے

په دې سلسله کښې دوېمه خبره دَ حضرت مولانا محمد صالح المعروف په ديوانه بابا عليه الرحمة په حقله ده. دغه محمد صالحؒ دَ تحصيل صوابۍ دَ جلبۍ نومې کلي اوسيدونکے وو. (دا کلے نن په جلبۍ، جلسۍ نوم ياديږي.) او بيا روستو ددې ځائ نه دَ بونير علاقې ته تلے وو. دَ حضرت سيد علي ترمذي پير بابا عليه الرحمة نه ئې خرقه دَ خلافت موندلے وه. هر وخت به دَ جذب او استغراق په حالت کښې وو. په دغه وجه په ديوانه بابا مشهور شو يدے. مزار مبارک ئې دَ بونير په ستل بانډۍ کښې دے.

په پښتنو مشاهير و بزرګانو کښې دَ يو بزرګ شيخ محمد صالح ذکر موجود دے. چه په قام باندے الکوزے وو. دَ قندهار په جلدک نومے مقام کښې اوسيده. او عمر ئې په ارشاد او تدريس تيره ولو. ملا الله يار الکوزي دده په سوانح حيات کښې دَ "تحفه صالح" په نوم يوه تذکره ليکلے ده. چه دَ هغې څه حصه په کتاب "پټه خزانه" ص۴۸ کښې نقل شوے ده. دے دَ قندهار دَ صوبيدار ارشاد بيګ خان (سنه ۱۰۰۳) معاصر وو. ارشاد بيګ دَ جلال الدين اکبر دَ طرف نه تر سنه ۱۰۱۲ پورے دَ قندهار نائب الحکومت (صوبيدار ګورنر) وو. دده دَ حالاتو دَ پاره ملاحظه کړئ اکبر نامه تزک جهانګيري. اقبال نامه. منتخب اللباب بحث دَ وقائع قندهار.

ددے تفصيل په رڼا کښې ممکن ده چه په قام الکوزے شيخ محمد صالحؒ او دغه مولانا شيخ محمد صالح المعروف په ديوانه بابا عليه الرحمة دواړه دَ يو بزرګ نوموونه دي. که دا خيال صحيح اوګڼلے شي. نو بيا ويلے شو چه دَ مولانا محمد صالح خاندان به دے ملک ته پخوا راغلے وي. او بيا به دے دَ علم حاصلولو نه پس خپل اصلي وطن قندهار ته تلے وو. او بيا چه ارشاد بيګ خان دَ سنه ۱۰۱۲ نه روستو دَ پيښور ښهر نائب الحکومت مقرر شوے وو. نو دے به هم دَ هغه سره دَ قندهار نه وادئ پيښور ته بيا راغلے وو. او روستو به بونير علاقې ته ئې

تشریف وړے وو. او که بالفرض حقیقت داسے نه وی. نو بیا دا به معلوم عوامی چه دغه حضرت مولانا شیخ محمد صالح المعروف په دیوانه بابا علیه الرحمة په قام څوک وو. او دا هم ممکن کیدے شی چه دے هم په قام تارن وو.

درضوانی مرحوم په تالیف تحفة الاولیاء کښ د حضرت مولانا اخون پنجو بابا په حقله یو خو نور روایتونه داسے دی. چه د هغې تصحیح کول ضروری معلومیږی. یو روایت یے دا دے رضوانی مرحوم لیکی (تحفه ص۲) هرکله چه اخوند درویزه د خیل پیر سید علی ترمذی پیر بابا د وفات (سلـ۹۹۱ـه) نه روستو پیښور ته راتلو. نو اکبر پوره ته د اخون پنجو بابا د ملاقات دپاره راغلے وو. لیکن په دغه وخت کښ اخون پنجو بابا د مراقبے او استغراق په حالت کښ وو. نو د شا د طرف نه یے اخون پنجو بابا ولیده او هرکله چه د خپل شغل نه یے د دوی رابیدارول مناسب ونه کڼل. نو توقف یے ونه کړ. روان شو. څه ساعت پس چه اخون پنجو بابا رابیدار شو. او د دے حال نه خبر شو. نو په اخون درویزه بابا پسے روان شو. چه ملاقات یے ورسره اوشی. لیکن د لرے نه یے چه اولیده. نو هم په دغه لیدلو یے اکتفا اوکړه او واپس راواګرځیده. د دے روایت خلاصه مطلب دا دے چه د دے دواړو مشاهیرو بزرګانو ترمنځه باقاعده ملاقات او علمی او روحانی خبرے اترے نه دی شوے.

لیکن د رضوانی مرحوم دا فیصله صحیح نه ده. یو خو په دے وجه چه مولانا عبدالوهاب په دغه نیټه (سـ۹۹۱ـه) اکبر پوره ته راغلے نه وو. او بله وجه دا ده چه په دے سلسله کښ د آئینه تصوف واضحه بیان موجود دے. چه:- مولانا عبدالوهاب په یوولسم تاریخ د ذی القعده ورځ دوشنبه سـ۹۹۷ـه په مقام د قلعه تمن (پیښور ښهر) له اخون درویزه ننګرهاری نه په طریقه عالیه سهروردیه کښ بیعت کړے وو. چه روستو بیا د مولانا عبدالوهاب نه دغه سلسله اخوند سالاک ته بیا له هغه نه شیخ اخون الله داد

چشتي سهر وردي (مزار الله ډهنډ ډهيرئ مالاکنډ ايجنسئ) ته. بيا له
هغه نه شيخ اخون محمد صديق پهلواړي (مزار شهر رامپور هندوستان)
ته. بيا له هغه نه حافظ عبد المقتدر المعروف په حافظ الپورئ ته رسيدلے
وو. (دا بحث به روستو دَ حافظ محمد صديق دَ بشونئ په تذکره راشي.)

(۲) دَ رضواني دويم روايت هغه دے (تحفه ص۴۵) چه دَ اخوند صاحب
دَ سوات دَ پير طريقت حافظ محمد شعيبؒ دَ توروډهيرى دَ کتاب مرأة اولياء په
حواله ئے بيان کړيد ے. چه حضرت اخون پنجو بابا عليه الرحمة په سلسله
نقشبنديه کښې دَ حضرت سيدنا آدم بنورى عليه الرحمة مريد او خليفه وو.

ليکن دَ رضواني مرحوم دا روايت هم صحيح نه دے. ځکه چه حضرت
سيدنا آدم بنوري مشواني عليه الرحمة په تاريخي لحاظ سره دَ حضرت مولانا
عبد الوهابؒ نه دَ روستو زمانے بزرګ دے. او مولانا عبد الوهاب (ولادت سنه ۹۳۷ھ
وفات سنه ۱۰۴۰ھ) دواړه معاصر دى. او که فکر او کړو په سلسله چشتيه کښې هم
دواړه په يوه يوه واسطه باندے دَ حضرت شيخ عبد القدوس ګنګوهي مريدان دى.
يعنے شيخ عبد الوهاب دَ شيخ جلال الدين تهانيسرى په واسطه دَ حضرت شيخ عبد
القدوس ګنګوهي مريد دے. او حضرت مجدد الف ثاني دَ خپل والد ماجد شيخ
عبد الاحد په واسطه سره دَ شيخ عبد القدوس ګنګوهي مريد دے چه ددے نه هم
دَ دواړو زمانے يو والے او همعصري معلوميږي. ليکن هر کله چه په هند کښې دَ نقشبنديه
طريقے مجدد حضرت شيخ احمد سرهندى وو. په دغه وجه حضرت مولانا عبد
الوهاب دَ هغوئ نه بيعت کړے وو. ددغے نه علاوه دَ حضرت مجدد الف ثانيؒ دَ
مشاهير و مريدانو په فهرست کښې چه کوم نومونه درج دى. لکه شيخ فريد.
مهابت خان. اسلام خان. سکندر خان. حکيم فتح الله خان. سيد محمود اختر.
سيد احمد. خضر خان لودهي. مرزا بديع الزمان. جبارى خان. خان جهان.
قليچ خان وغيره شول. په هغے کښې دَ شيخ عبد الوهاب نوم هم ... شعوري

امتیاز سره درج دے. او چه هر کله شهنشاه جهانګیر او ګکیده مجدد الف ثانی یے قید کړ او په هغے دغه پورته ذکر شوی نامور کسان جهانګیر ته را پورته شوی وو. نو په هغے کښ د وادئ پیښور او کابل په علاقه شیخ عبد الوهاب او سهابت خان چه کوم عملی اقدامات کړی وو. د هغے ذکر به روستو په تفصیل سره راشی.

حضرت سیدنا آدم بنوری چه د شاهی لښکر نوکری پریښود له. بیا د خواجه خضر تارن مرید شو. او بیا د هغے نه روستو د حضرت مجدد الف ثانی قدس سره مرید شو. نو په تاریخی لحاظ سره دغه د روستو زمانے واقعات دی. او بیا چه په سنه ۱۰۵۰ھ کښ د شاهجهان په حکم سیدنا آدم بنوری د دهلی نه او ویستلے شو. او د حج په سفر را روان شو او په سنه ۱۰۵۲ھ / ۱۰۵۱ کښ وادئ پیښور ته یے تشریف راوړ. او په مقام د اکوړه خټک ورسره د حضرت سیدنا شیخ رحمکار کاکا صاحب علیه الرحمة ملاقات شوے وو. نو ځکه نه دیارلس څوارلس کاله وړاندے په سنه ۱۰۴۰ھ کښ حضرت اخون پنجو بابا علیه الرحمة وفات شوے وو. او هم دغه وجوهاتو له هغه د سیدنا آدم بنوری قدس سره نه د حضرت سیدنا مولانا عبد الوهاب بیعت کول هډو معنیٰ نه لری. او ځکه مونږ ټیزا چه د رضوانی مرحوم دغه روایت صحیح نه دے.

(۳) په دے سلسله کښ بل وضاحت او تصحیح د "تاریخ یوسفزئی" د یو بیان په حقله ضروری ګڼو. ځما په خیال د حضرت مولانا عبد الوهاب په باره کښ په تاریخی لحاظ سره د ټولو نه زیات غلط بیان د تاریخ یوسفزئی د مؤلف دے. موصوف لیکی: (ص۲۴۳) "ګجوخان د خپل نظام سلطنت د چلولو د پاره ټیکسونه هم لګولی وو ......... د نورو ټیکسونو نه علاوه د هر یو بچی په پیدا کیدلو به یے پنځه روپئ (سکه رائج الوقت) اخستلے. اخون پنجو بابا چه مزار یے د پیښور ته نزدے دے او هر کال د هغه په مزار میله کیږی. هم دغه ګجوخان په زمانه

کښې پیدا شوې وو. دَ هغه په پیدا کیدلو دَ هغه پلار دَ ټیکس ورکولو نه ځان

ځان هم وو دا علاقه پرېښودله او دَ هغه ځائی نه اوتښتیدلو. دَ ... خان سپاهیانو

ورپسې هېڅه اوکړه. لیکن هغه دَ دریاب کابل نه پورې وتلو کښې کامیاب شو.

او دَ ټیکس اداکولو نه بچ شو.

چه فکر اوکړے شي دَ "تاریخ یوسفزائی" دا بیان په دوو وجو صحیح

نه دے.

۱ یو دا چه دَ مولانا سید غازی بابا دَ یوسفزو دَ علاقې نه دَ کډې

کولو کومه وجه چه تاریخ یوسفزائی بیان کړیده. که دغه صحیح او منلے شي.

نو بیا به دا هم منل پکار وي چه حضرت موصوف دَ ترکئی نه څو نور دَ تحقیق مطابق

په ۹۳۷ھ کښې یا دَ رضوانی دَ بیان مطابق په ۹۲۵ھ کښې کډه کړې ده.

حالانکه دَ رضوانی بیان (تحفه صلاے) دا دے چه مولانا غازی په ۹۵۸ھ کښې

ترکئی نه په کډه راوتلے وو. چه په دغه وخت کښې بیا دَ مولانا عبدالوهاب عمر

۲۱ کاله یا ۲۲ کاله وو. او یو مشر رورهم ورسره وو. نو بیا هله نه پوهه دَ مولانا

سلطان غازی دَ کډے کولو سره دَ ځوئی دَ پیدا کیدلو دَ ټیکس څه تعلق کیدلے

شي. ؟ بیشکه رضوانی هم دَ مولانا اخون پنجو بابا دَ پیدا کیدلو په موقع دَ ټیکس

روپو دَ مطالبې ذکر کړیدے. لیکن هغه بیخي په بل رنګ کښې دے. چه هغه دَ

کلي دَ ججرې دَ ځلمو دَ صحبت غوښتلو مطالبه ده. چه مخکښې بیان په تفصیل تیر شوے

۲ دویمه وجه دا ده چه دَ تاریخ یوسفزائی مؤلف دَ مولانا سید عبد

الوهاب دَ والد ماجد سید برهان الدین الملقب په سلطان غازی

دَ سیاسی او روحانی شخصیت اندازه نه ده لګولے. او غازی بابا چه دَ هند نه دَ

یوسفزو علاقې ته او بیا دَ یوسفزو دَ علاقې نه بینبور ته په کومه وجه راغلے وو.

او هغه وجه رضوانی مرحوم هم بیان کړې ده. او دَ هغې په تاریخي پس منظر ئې

هم غور نه دے کړے. که نه دا دومره غلط روایت به ئې نه وو بیان کړے.

دَ آسانتیا دَ پاره دَ رضوانی دَ بیان هغه دوه نکتے چه دَ دے موضوع سره
تعلق لري. دلته بیا رانقل کوُو.

الف :- دَ مولانا غازی بابا مشران دَ روهیلکنډ په سنبهل کښې آباد شوی وو.
هرکله چه په سنه ۹۳۲ هـ کښې دَ بابر دَ لاس نه دَ لودهي خاندان حکومت زوال
بیا موندلو. نو دده والد محترم سید غازی بابا دَ پچ هزارے په لار دَ یوسفزو علاقے
ته راغے. او په ترکئ کښې استوگن شو".

(ب) غازی بابا په ترکئ کښې چه څه موده تیره کړه. په دغه زمانه کښې دَ یوسفزو
اولس بالکل باغیان وو. ځکه چه تعلق ئے دَ مغل حکمرانانو سره لرلو. او دست
پروردَه دَ بابر او همایون وو. او په دغو ورځو کښې چه هرکله دَ شیر شاه
سوری دَ لاس نه همایون په تیښته باندے دَ هند نه ایران ته لاړ او دَ هغه
په ځائ باندے شیر شاه سوری دَ هند بادشاه شو. او کجو خان نومے
سردار دَ اولس یوسفزاے دَ شیر شاه سوری نه باغی وو. نو په دغه وجه
مولانا غازی بابا په سنه ۹۵۸ هـ کښې په زمانه دَ سلطنت دَ اسلام شاه سوری
کښې دَ یوسفزو دَ علاقے نه په کهٔ مصرے پورے ته او بیا پېښور ته راغے.

که دَ تاریخ یوسفزاے مؤلف په دے دواړو وجوهاتو غور کړے
وے. نو ورته به معلومه شوے وه چه دَ مولانا غازی مشران دَ بهلول لودهي
په بلنه هند ته تلی وو. چه په هند کښې دَ اسلامي حکومت بنیاد ونه مضبوط
کړي او حضرت مولانا عبدالوهاب والد ماجد سید برهان الدین دومره غزاگانے
کړے وے چه دَ "سلطان غازی" خطاب ئے گټلے وو. او بیا کله چه هند کښې لودهي
خاندان زوال راغے. او دَ مغلیه حکومت دوران شو. او بیا په هند کښې سابقه
حکومت حمایت کوُونکو مشاهیر و عالمانو روحانی پیشوایانو او قبائیلي
سردارانو له ژوند تیرول گران شول او په دغه وجه ئے واپس خپل وطن ته
... سلطان غازی بابا دَ هند نه

یوسفزو ته راغلی وو. او دیلو لاد لیسے خبره ده. چه د دے کنړ مثالونه هم موجود دی.

لکه:۔ الف:۔ یو مثال هغه د ملک سیف الله ګنګیانی او ملک ګدانی ګنګیانی

او د پیر بابا علیه الرحمه د والد ماجد سید قنبر علی دے. چه همایون په سنه ۹۴۲ھ

کښں ټهان سره هند ته بوتلی وو. لیکن چه په همایون زوال راغے. او په تیښته ایران

ته لاړ. نو سید قنبر علی خپل وطن قندز ته او دواړه ګنګیانی ملکان خپل وطن

د و آبے پیښور ته واپس راغلی وو.

ب:۔ دوئیم مثال د پیر روښان بایزید انصاری د والد ماجد شیخ عبد الله

انصاری دے. چه په جالندهر کښں د لودهی حکومت د طرف نه قاضی القضاة وو.

او د لودهی حکومت د زوال (سنه ۹۳۲ھ) نه روستو خپل وطن کانی کرم وزیرستان

ته تلے وو.

ج:۔ دریم مثال د مشوانی ساداتو د مشهور تاریخی شخصیت سید غفور شاه

المعروف کپور شاه دے. چه د سنه ۹۳۲ھ د انقلاب نه روستو د هند نه د ضلع هزاره

سری کوټ ته راغلی وو. او د لودهی خاندان سره د دے تعلق او دے پس منظر په

وجه بیا روستو د شیخ عبد الله انصاری مشهور تاریخی شخصیت لرونکی

فرزند پیر روښان او د سید کپور شاه نامور فرزند سید شاه مراد

دواړه و تپول ژوند د مغلیه حکمرانانو په خلاف جد و جهد کښں تیر شوے وو.

لیکن دا پس منظر چه رضوانی مرحوم بیان کړیدے او د هغے نه د سلطان

غازی بابا د مغل حکمرانانو څخه نفرت کول واضحه کیږی. دا پخپل ځائے باندے سیاسی

نوعیت دے. د دے نه علاوه یو بل پس منظر هم دے. چه هغه سنا غلی شیخ

محمد اکرم پخپل کتاب "رود کوثر" (ص ۴۹) کښں بیان کړیدے. موصوف لیکی :-

"د لطائف قدوسی د کتاب د بیانونو نه معلومیږی. چه حضرت شیخ عبد القدوس

ګنګوهی علیه الرحمة او د هغه اکثر مریدان د مغلو نه خوشحاله نه وو. هر

کله چه په سنه ۹۳۲ھ کښے د بابر او ابراهیم لودهی ترمینځه د پانی پت په میدان

کښې جنګ جوړ شو نو شیخ عبد القدوسؒ ګنګوهی دَ ابراهیم لودهی په لښکر
کښې موجود وو۔ حضرت شیخ عبد القدوسؒ مخکښې له دا فرمایلی چه دَ ابراهیم
فتح پرې لا په شک کښې ده۔ لیکن بادشاه (ابراهیم لودهی) اصرار کولو چه
تاسو به خامخا دَ شاهی لښکر ملګرتیا فرمایئ۔ چنانچه هر کله بابر
فتح اوموندله نو حضرت شیخ هم ګرفتار کړې شو۔ دَ دوی سره خپل دوه
مریدان هم وو۔ هغه هم اونیولې شول۔ دَ حضرت شیخ عبد القدوسؒ په سر
باندې چه دَ خپل پیر طریقت دَ لاس نه کوم دَ تور رنګ پټکې په سر وو۔ په
هغې باندې یې ورله غاړه اوتړله۔ او شیخ ته یې حکم اوکړ۔ چه مخکښې شه
پیاده روان شه۔ چنانچه هم دغه شان پیاده دَ پانی پت نه دهلی ته راوستلې
شو۔ او روستو پیاده لته پرې بینودلې شو۔ شیخ عبد القدوسؒ ګنګوهی دَ
لودهی پښتنو سره تعلق دَ خاطر لرلو۔ ځکه چه دوی اوکتل چه لودهیانو
خصوصاً سکندر لودهی دَ هندوستان په زمکه دَ نوی سر نه شعائر دَ اسلام
سربلندی کړې دی۔ په دې وجه حضرت شیخ به دَ دې پښتنو حکمرانانو ډیر
قدر کولو۔ شیخ محمد اکرم روستو (ص۴۵) لیکی:۔ دَ شیخ عبد القدوسؒ ګنګوهی
دَ وفات (سنه ۹۴۵ھ) نه روستو هم دَ افغانانو او مغلو کشمکش جاری وو۔ او په
هغې کښې دَ حضرت شیخ مریدانو حصه اخیستې وه۔ موصوف مخکښې لیکی:۔ (ص۴۷)
چنانچه هر کله شیر شاه سوری همایون له شکست ورکړ۔ او دَ هندوستان نه
یې اوکښلو۔ نو په بعض مذهبی حلقو کښې په هغې دَ خوشحالئ اظهار اوشو۔ او دَ شیخ
عبد القدوسؒ ګنګوهی مریدان په هغې کښې شامل وو۔

دا پس منظر چه پورته بیان شو دا به په مخکښې کیږدو۔ او فکر به
اوکړو چه په دا سې حالاتو کښې چه هغه کله سید برهان الدین سلطان غازی
بابا دَ حضرت شیخ عبد القدوسؒ ګنګوهی مرید وو۔ او دَ ده دغه محبوب پیر
طریقت سره دَ مغل حکمرانانو دَ لاس نه دا سې سلوک شوې وو۔ او پیاده

یوسفزو په علاقه کښې د دوی د قیام په دوران کښې په سنه ۹۴۷ھ کښې د شیر شاه سوری د لاس نه همایون شکست اوخوړ. نو دا بالکل قدرتی خبره وه چه سلطان غازی بابا به په هغې خوشحالیدلو لکه چه د شیخ محمد اکرام د تصریح مطابق په هند کښې د شیخ عبدالقدوس ټول مریدان خوشحاله شوی وو. او بل خوا ئے په عین دغه حال کښې چه مجو خان د شیر شاه سوری نه باغی وو. او د مغل حکمرانانو وفاداری ئے کوله. نو د خان مجو د کلی ترکیځ نه چه غازی بابا کړه اوکړله. نو د هغې وجه پښتانه روپئ ټیکس ورکول نه وو. بلکه دغه تاریخی واقعات وو. چه متأسفانه د تاریخ یوسفزئ مؤلف ورته فکر نه دے کړے. او د سلطان غازی بابا علیه الرحمة د یوسفزو د علاقې نه د کډے کولو واقعه ئے په ډیرو نامناسبه الفاظو بیان کړے دے.

په دے سلسله کښې د رضوانی مرحوم دغه بیان هم صحیح نه دے چه هر کله سلطان غازی بابا د یوسفزو نه پیښور ته په کډه راتللو. نو ټول پښتانه کسان وو. یو ئے پلار وو. یو د لاخیل ټبر وو. او د وله ئے خامن وو. بلکه څرنګ چه ما پخپل تالیف پښتانه شاعران کښې پرے بحث کړے دے. (د سلطان غازی بابا د مشر ورور سلطان احسن د تذکرے په ضمن کښې) د سلطان غازی بابا سره د خپل خاندان او رونړو او تربورانو د اولاد او قبیلے کسدون د نورو کهو بے شمیره نور خلق هم وو چه د هغوی د نسل خلق نن ورځ د پیښور په ښار او خوا کښې آباد دے. او کثیر مشاهیر بزرګان پکښې تیر شویدی.

دلته یو بله خبرے ته اشاره کول هم ضروری معلومیږی. او هغه دا ده چه رضوانی مرحوم پخپل کتاب تحفة الاولیاء کښې اخون پنجو بابا د مقام ولادت د وله ځایه ذکر کړید ے.

(۱) یو په صفحه ۹ باندے او په هغې کښې ئے په تفصیل سره دا ښودلے ده. چه د دوئ ولادت په موضع تره کئ کښې شوے وو. چه دغه مقام د یار حسین

نه جنوب مشرق طرفته واقع دے. او نن ورځ په کجوانو ډهیرئ یا دیری (۲) او دویم په صفحه ۳ باندے. چه دلته ئے مجملاً دا سے لیکلی دی ـــ "تولد د آنحضرت په علاقه د یوسفزائے کښ په توابع دالکائے پشاور کښ شوید ے"

رضوانی مرحوم چه په دے خیل کتاب کښ هر ځو مره ځایه لفظ د الکائے ذکر کړیدے. د هغے نه ئے مراد دے. د پښاور ښهر په توابع علاقه جاتو کښ هغه کلے چه په آخری سرحد باندے آباد دے. لیکن د بدقسمتئ نه د کتاب "تذکرهٔ علماء و مشائخ سرحد" مؤلف د نظر نه د تحفة الاولیاء ص۹ تفصیلی بیان نه دے تیر شوے. او بل خواته د ص۳ د لفظ "الکائے" په معنی نه دے پوهه شوے چه دغه فارسی لفظ "الکائے" د عربی لفظ "الغایئ" "الغایة" نه مفرس شوے شکل دے. او دغه ناپوهتیا په وجه ئے د خپل کتاب په ص۷ باندے لیکلی دی. حضرت شیخ اخون پنجو بابا د یوسفزو په علاقه کښ په موضع "الکائے" کښ پیدا شوے دے. چونکه د موصوف دا بیان صحیح نه وو. د دے د پاره ورته اشاره کول مناسب او ګڼړلے شول.

## مذهبی خدمات او فیوضات

مخکښ مونږ د مولانا عبدالوهاب حالات په تفصیل سره بیان دے غرض بیان کړل. چه د دے نامور شخصیت چه کوم اوچت علمی او عرفانی مقام دے. د هغے په متعین کولو کښ آسانی په لاس راشی. او هرکله چه دا معلومه کړے شی چه دے د کوم مکتبهٔ فکر سرے وو. نو د هغے نه به دده د مذهبی علمی او عرفانی خدماتو او فیوضاتو اندازه لګول هم آسان شی.

هرکله چه دا معلومه شوله چه حضرت مولانا عبدالوهاب په سلسله چشتیه صابریه کښ د خپل والد ماجد سید برهان الدین غازی بابا او د شیخ جلال الدین محمود الفاروق تهانیسری د وار و مرید وو

چه د دوارو د شیخ عبدالقدوس گنګوهي مریدان وو. او په طریقه سهروردیه کښې ئې اخوند درویزه ننګرهاري نه فیض موندلے وو. او دا دواړه بزرګان په ځکه سره د اهل سنت والجماعت د عقیدې پیروکاران، عالمان او مبلغان وو. د اسانئ د پاره به د دې دواړو نامورو روحاني رهنمایانو بېړ وندیو نظر واچوو

| ۱ | د حضرت شیخ عبدالقدوس ګنګوهي په حقله مولانا شیخ رکن الدین د کتاب "رشدنامه" په حاشیه کښې لیکلي دي. حضرت شیخ عبدالقدوس |

په شرع محمدي او د اهل سنت والجماعت په عقیده کښې داسے راسخ القدم وو. چه یوه ذره به ئې هم د شرع نه تجاوز نه کولو. او لکه چه مخکښې ذکر او شو د لودي حکمرانانو سره ئې ځکه مینه وه. چه د دوئ په وجه په هند کښې د اهل السنت والجماعت د عقیدے مطابق د اسلام شعائر له سربلندي حاصله شوې وه.

| ۲ | د اخوند درویزه به حقله مفتي غلام سرور لاهوري پخپل کتاب خزینة الاصفیاء کښې لیکي:- په دفع د زنادقه. ملاحده او رفض کښې به ئې |

ډیر زیات کوشش کولو. او چه چرته به د کوم ملحد یا رافضي نه خبر شو. هغه ته به ئې ځان رسولو. هغه به ئې ملامته کولو. او خلق به ئې د هغه د غلطو خیالاتو او فاسدو عقایدو نه بچ کولو. چنانچه پدے شان سره د اخوند درېزه تول ژوند د هغه بدعتي شیخانو او پیرانو په خلاف جهاد کښې تیر شویدے. چه یو خو ته به ئې طریقت له په شریعت ترجیح ورکوله. او بل خوا ته به ئې د طریقت هم داسے غلطه ترجماني کوله. چه د قرآن او حدیث او د اهل السنت و الجماعت د ائمه سلف د پیروي په ځائ به ئې د روحاني مطلق العنانئ نه کار اخیسته. او بدعتونو له به ئې رواج ورکولو.

| ۳ | د مولانا عبدالوهاب دریم پیر طریقت شیخ احمد سرهندي مجدد الف ثاني وو. چه د هغوئ ټول ژوند د رسول الله صلی الله |

علیه وسلم د سنت طیبه د صحیح طریقے په راژوندي کولو کښې او د رافضیانو

په ترديد کښې تېر شوے دے. حضرت امام رباني په لاندينۍ درے طريقو سره د هندوستان د مسلمانانو اصلاح کوله. (۱) يوه دا چه د فقيرانو، درويشانو يو داسے جماعت يې تيار کړلو چه هغوئ خپل ژوند عملي نمونه کړي. او خلقو ته يې اسلامي روايات پيش کړل. د دے غرض د پاره مجدد الف ثاني د روحاني کمالاتو نه کار اخيستے وو. (۲) په دوېمه درجه کښې يې د اهل علم او سنجيده طبقے په ذهنونو کښې انقلاب راوستلے وو. او صحيح اسلامي عقايد يې خلقو ته رسولي وو. د دے د پاره حضرت امام رباني د تاليف او تصنيف په ذريعه د علم او استدلال د طاقت نه کار اخيستے وو. (۳) په دريمه درجه کښې يې هغه اميران او حاکمان چه خالص سُني مذهبه وو د اهل السنت والجماعة عقيدے ته رونکي وو او د واک او اختيار خاوندان وو. هغوئ ته يې د خپلو ذمه وارو محسوس کولو تلقين اوکړو او هغوئ يې د اسلام د خدمت کولو او د مسلمانو د عزت او حرمت برقراره ساتلو د پاره جد وجهد او ايثار کولو ته تيار کړل.

چنانچه د حضرت شيخ اخون پنجو بابا ټول ژوند هم د دے خپلو امور پيرانو د عملي، علمي او عرفاني ژوند په رنګ کښې رنګ دے. دوئ هم په خپل ژوند کښې د فقيرانو او درويشانو يو داسے ټولګے تيار کړے وو. چه په هغوئ کښې د يو څو مشاهير و خليفه ګانو تذکره به روستو راشي. او په دوېمه درجه کښې يې د پښتونخوا د اهل علم او سنجيده طبقے په ذهنونو کښې د انقلاب راوستلو د پاره او عامو مسلمانانو ته د صحيح اسلامي عقايد ورښودلو په خاطر يې چه د تاليف او تصنيف نه کوم کار اخيستے وو. د هغے په حقله د حضرت مولانا عبدالوهاب نځپل همعصر مؤرخ او پير طريقت اخوند درويزه تفصيلي بيان مخکښې تېر شوے دے. او هم دغه د دين حمايت او د اهل السنت والجماعت عقيدے د حفاظت جذبه وه. چه د علم او عرفان دواړو طاقتونو په زور يې د اکبر پورے او خواوشا مېنه الي علاقو خلق سرمستے نو مے فقير د بدعتونو

اوُ کمراهئ دلارے نه یچ کړل. اوَ مهابن نه تر کابل پورے په دے علاقو کښ
یے دَ دین اسلام دَ تجدید او احیاء دَ پاره داسے مبارک کوششونه اوکړے
چه دَ هغے نیک او بختور آثار ترننه ورځے پورے باقی دی۔

حضرت مولانا عبد الوهاب علیه الرحمة په دریمه درجه کښے

چه دَ خپلو بزرگوارانو پیرانو دَ مسلک او روحانی طریقے دَ کار په سر کښے
زمانے خالص سنی مذهبه امیرانو او دَ واک او اختیار دَ ونکو حکمرانانو
دَ خپلو دَ مه وار، محسوس کولو کوم تلقین کړے وو. اوَ هغوئ نه یے دَ دین
اسلام کوم خدمات اخیستی وو. دَ هغے په سلسله کښ سلطان محمد گدو
سلطان صدر الدین (مزار مبارک اټک) دَ کابل نائب الحکومت نواب مهابتخان
مثالونه څو ښ ذکر دَ وړاندے دی. چه دَ خپل وخت دا اهم مشاهیر امیران
او حکمرانان دَ دوئ عقیدتمند وو. اوَ دوئ دَ هدایت او ارشاد مطابق یے
دَ دین اسلام په سر سته کښ تاریخی کارنامے انجام ته رسولے دی۔

دَ دوئ دَ هدایت او ارشاد مطابق چه دَ دوئ نامور و مریدانو دَ
اباسین، کوهستان، سوات کوهستان، دیر کوهستان، بلجوړ کوهستان
په علاقو کښ کوم جهادونه کړے دی او په دے پورته ذکر شوو علاقو کښ دَ
هغے په برکت دَ اسلام کومه رڼا چه خوره شوے ده. دَ هغے دَ بیان نه دَ تاریخ
کتابونه ډک دی. اوَ دے غزا گانو په فهرست کښ دَ اخوند سالاک، ملامست
علی خان دَ شورتن هندوراج. عمر خان دَ شوے شیخ جانا. بهاکو خان دَ بجتار
بلو خان دَ رجړ. مولانا نور محمد کاتنی وغیره نومونه لافانی شهرت حاصل
دے. چه دا ټول دَ دوئ دَ سلسله ارادات روښانه مشعلونه وو. او دَ دوئ په
برکت دَ شریعت او طریقت دَ سوز او ساز نه ډک یونوے مجاهد نه روح په
پښتو ادب کښ پیدا شو چه دَ هغے مثال مشکله ده چه دَ دنیا په بل کوم یو ادب
کښ پیدا شی. لکه دَ مولانا عبد الوهاب یو فیض موندونکی مجاهد عارف

او ادیب ملا مست چه په دے الفاظو کښې پیش کړے دے۔ فرمائي:-

دَ یقین زغره مې واغوسته سیاهي شوم
دَ باور په تیغ مې غوڅ کړل کمانونه
دَ معرفت لینده په لاس دَ بد و جنګ کړم
دَ حقیقت غشے مې څې تر آسمانونه

دَ مولانا عبدالوهاب مکتبه فکر هغه مجاهد مست علی خان پیدا کړے چه فرمائي:- ؎

هر چه واخلي وکفارو ته توره ؞ له صورته به يې پاک هر څه ګناه کا
یوه شپه تیره په حد دَ کفار نه دره ؞ کال وسر که عبادت په خانقاه کا
چه په حد دَ کفار و مري بے له تیغه ؞ خدائي روزي به يې دیدار بے اشتباه کا
اوس غازیان دي په بر خشي صافي شیوارې ؞ چه غزا همیش پر نیت دَ عندالله کا

او دغه لله فی الله دَ غزا کوونکو ډله رابیدا کوول یقیناً چه دَ مولانا سید عبدالوهاب ابن سید برهان الدین الملقب په سلطان غازي دَ دیني خدماتو په سلسله کښې څمونږ دَ تاریخ یو زرین باب دے۔

دغه شان هر کله چه په سنه ۱۰۲۶ھ کښې دَ شهنشاه جهانګیر دَ لاس نه دَ حضرت اخون پنجو بابا پیر طریقت حضرت امام رباني شیخ احمد سرهندي رح مجدد الف ثاني دَ ریاست ګوالیار اجین نومے قلعه کښې بند یوان کړے شو. په دے وجه چه شهنشاه جهانګیر مشهوره ملکه نورجهان او دَ هغې رور آصف جاه چه وزیر مملکت هم وو. دواړه يې مخلاف وو. او چونکه ترد غې نیتے حضرت مجدد الف ثاني دَ خپلو مکتوباتو اولنی دوه دفترونه مکمل کړي وو. او په هغې کښې يې دَ ملحدانو دَ عقیدو په بیره بے باکۍ سره رد کړے وو. بلکه دَ اهل بدعت او ملاحده په رد کښې يې یو مستقله رساله هم لیکلے وه. او دَ شهنشاه جهانګیر ملکے او دَ هغې رور آصف جاه دا هر څه نه شول برداشت کوولے.

بل خوا ته دَ شهنشاه جهانګیر بعض درباری امیران چه دَ رقص او سرود
شیدایان وو. هغوئ دَ امام ربانی دَ نقشبندیه مسلک نه سخت بیزاره وو.
ځکه چه په روایت دَ شیخ محمد اکرام (رود کوثر ص۲۴۲) په دے نقشبندیه مجددیه
طریقه کښ به تمامی اصولی او فروعی امورو کښ دَ سنت دَ رسول الله مکمله
تابعداری او دَ ټولو بدعتونو نه په کامل طور سره اجتناب کول شرط دے.
هم دَ هغوئ په شان ژوند تیرول. هم دَ هغوئ په شان اذکار و اشغال. هم هغه
شان دَ نفس محاسبه. او هر دم خدائ یادول. او هغه شان دَ شیخ ادب په
ځائ راوړل. هم هغه شان کم ریاضت کول او زیات فیوضات خوړل. دَ
تبلیغ او ارشاد تعلیم کول. دَ ولایت دَ کمالاتو نه علاوه دَ نبوت کمالات زده
کول. دَ ساز او سرود نه اجتناب. په قبرونو دَ چراغونو بلولو. غلافونو
غوړولو دَ زنانه وُ په ګڼه ګوڼه کښ شاملیدلو. دَ تعظیم سجدے کولو.
چا ته سر ټیټولو. لاس او پښو ښکلولو. پښتو ته کښته کیدلو دَ وحدت
الوجود سندرے ویلو دَ بے پردے ښځو سره خلط ملط ساتلو هر څه
نه دَ پرهیز حکم وو. او دا ټولے داسے خبرے وے چه دَ شهنشاه جهانګیر دَ
دربار رافضیه عقیده لرونکو امیرانو چرته منلے شولے. ځکه چه ظاهره
ده په دے مسلک کښ دَ رسول الله دَ شریعت او سنت مکمله پابندی کول
پکاردی. او دا دَ اهل هوا او اهل بدعت دَ پاره ګران کار دے. نتیجه ئے
دا شوه چه امام ربانی په قید کښ واچولے شو.

دَ حضرت امام ربانی دَ قید کولو په دے واقعه دَ شهنشاه جهانګیر
هغه ټول امیران چه دَ سلطنت جهانګیری مختار ارکان وو. او بل خوا ته دَ
امام ربانی عقیدتمند او دَ اهل السنت والجماعة دَ عقیدے منونکی وو. لکه
خانخانان. خان اعظم. سید صدر جهان. اسلام خان. نواب مهابت خان.
تربیت خان. خان جهان لودهی. سکندر خان. حیات خان. دریا خان دا

تول را پورته شول بغاوت ته جوړ شول - پخپل منځ کښ ئې خط او کتابت اوکړ - او دے تولو په اتفاق سره د کابل گورنر نواب مهابت خان ئې خپل سردار تسلیم کړ - تولو و رسره د فوځ او خزانے امداد اوکړ - نواب مهابت خان د بدخشان، خراسان او توران د بادشاهانو نه هم امداد او غوښت په جهانګیر ئې لشکرکشي اوکړه د سکے نه ئے د جهانګیر نوم اوکښه - چه څه وخت جهانګیر هم د مهابت خان د مقابلے د پاره د دهلی نه راروان شو نو پورته چه نومونه ئې ذکر شویدی - دغه تولو امیرانو بغاوت اوکړ - او چه د نواب مهابت خان سره ئې مقابله راغله او په نتیجه کښ جهانګیر او د هغه وزیراعظم آصف جاه او ورپسے پخپله ملکه نورجهان دا تول د مهابت په لاس قید شول - او بیا چه څه وخت نواب مهابت خان داغوښتل چه دے درے واړه وله مناسب سزا ورکړی - په عین دغه حال کښ نواب مهابت خان ته او پورته ذکر شوو تولو امیرانو ته د حضرت مجدد الف ثانیؒ خطونه راورسیدل - چه د بغاوت نه لاس واخلئ - بادشاه د قید نه آزاد کړی - او د هغه اطاعت قبول کړی - نو په دغو خطونو کښ یو خط د حضرت شیخ عبدالوهاب اخون پنجو باباؒ په نوم هم وو - او دغه نه معلومیږی چه د نواب مهابت خان په دے دومره لویه کامیابی کښ د حضرت شیخ عبدالوهابؒ روحانی توجه او برکت شامل وو -

دا یقینی خبره ده - که دا لویه تاریخی واقعه په دومره کامیابی سره انجام ته نه وے رسیدلے دے - نو د اکبر او جهانګیر په زمانه چه د ملاحده، جبریه، قدریه او اهل بدعت د نورو مختلفو طریقو د پیرانو او آزادخیالو خلقو په وجه د شریعت اسلام او سنت نبوی د اثر کمولو د پاره کوم اقدامات کیدل او د دغے اقداماتو چه کوم دیندار و عالمانو او بزرګانو خصوصاً پښتنو مشاهیر و بزرګانو مخالفت کولو هغه په جیلخانو کښ

اچولے شول. لکه چه دَ حضرتِ امام ربانی نه و راندے دَ شهنشاه جهانگیر دَ
لاس نه حضرت بابا ابراهیم افغانی دَ سپهر قصو راوسیدونکے چه دَ چنار په
قلعه کښې بندیوان کړے شوے وو. دد غه نه مخکښې حضرتِ شیخ سعد الله
افغانی سرهندی دَ گوالیار په قلعه کښې بندیوان کړے شوے وو او ورپسے
حضرتِ شیخ احمد سوں غورغشتی دَ گوالیار په قلعه کښې په زندان کښې
اچولے شوے وو. نو په داسے حالاتو کښې چه هرکله چه حضرتِ امام
ربانی هم په بند کښې واچولے شو. که دَ هغے وخت دَ اهل السنت والجماعت
عقیده لرونکو امیرانو خصوصاً دَ مولانا عبدالوهاب اخون پنجو بابا دَ
په برکت او همت او روحانی توجهاتو په وجه جهانگیر ته مناسب سبق
نه وے ورکړے شوے نو نن به دَ برصغیر پاک او هند دَ مذهبی تاریخ
شکل یقیناً خه بل شان وو. او دَ شهنشاه جهانگیر په زمانه چه مُغلیه
سلطنت حدود تر کوم کوم ځائے رسیدلی وو. په هغے ټولو علاقو خصوصاً
شمالی هند کښې تر افغانستان پورے به نن دَ اهل السنت والجماعت دغه
دور دوران په نظر نه راتللے. کوم چه نن موجود دے. بلکه ددے په
ځائے به دَ اهل بدعت، زنادقه، ملاحده او حلولیه عقیده لرونکو
دوران وے. او دَ پښتنو خوادا بهادران او ننګیالی مسلمانان چه څرنګ
نن ورځ دَ اهل السنت والجماعت په عقیده لرونکو مسلمانانو کښې په
ټوله دنیا کښې یو مثالی حیثیت لری. دا حیثیت به ئے نن نه وو. الله
تعالیٰ دے دَ حضرت مولانا عبدالوهاب اخون پنجو بابا په مزار باندے دَ
انوار و باران اوکړی. دا دَ دوئ دَ مبارکو کوششونو برکت دے چه په
دے علاقو کښې دَ اسلام مشعل روښانه دے.

ددے پورته بیان نه دا اندازه په آسانه لګیدلے شی چه دَ پوخالص
پرو کرام ما تحت دَ شمالی هند دَ پښتنو علاقے ته داسے پیران او مشایخ

راخوارۀ شوی وو. چه هغوئ دَ اهل السنت والجماعت عقیده لرونکو پښتنو
په منځ کښې دَ اباحیه. قدریه. جبریه. ملامتیه او حلولیه عقیدو انکار او
خیالات دَ پیرئ او مریدئ په رنګ کښې خورۀ ول. او دَ بدعت ټولو رسمونو
لکه رقص او سرود او دَ مذهب نه بې پروایئ. بې پردګئ وغیره فحش
کارونو له ئې رواج ورکولو. دد غه نمونې یو پیر چه دَ هغه سرمست فقیر
نوم وو. دَ پیښور ښار نزدې دَ اکبرپورې په علاقه کښې اوسیدلو. حضرت
مولانا عبد الوهاب چه دَ جهانګیر دد غه پورتنې مهم نه فارغه شو نو ددې
نمونې ټولو اهل بدعت پیرانو په خلاف ئې کوششونه اوکړل. دَ وادئ پیښور
په مختلفو علاقو کښې چه کوم کوم ځائې ته دَ اهل بدعت پیرانو اثرات رسیدلی
وو. هغه ئې ختم کړل. په دغه سلسله کښې دَ سرمست فقیر دَ نا کاره اثراتو نه
ئې دا علاقه پاکه کړه او روستو ئې په دې هم دَ پیښور ښهر خوا ته نزدې
اکبرپوره په دغه مقام کښې سکونت اوفرمائیلو چه بیا هم دلته وفات شو او هم
دلته ئې مزار مبارک جوړ شو. علیه الرحمة والغفران.

## اولاد او مریدان

دَ حضرت مولانا عبد الوهاب اخون پنجو بابا قدس سره دَ کومو تالیفاتو او
تصنیفاتو ذکر چه مخکښې اوشو. نن په هغې کښې یو کتاب هم څوک نه په
لاس کښې نشته دې. کیدې شی چه دَ ګدون دَ میان کانو عالمانو سره ددې
کومه نسخه موجوده وی. دد غه نه رایه دَ پنجو ادَ دوئ دَ اولاد او مریدانو په
حقله معلومات دی. په تحفة الاولیاء دَ رضوانی کښې دَ دوئ دَ څلور ځامنو
نومونه درج دی. یو[1] میاں محمد عثمان چه دَ ټولو نه مشر وو. او دَ خپل والد
دَ وفات نه روستو سجاده نشین شوې وو. دویم[2] سلیمان دریم[3] لقمان
او څلورم[4] حاجی فرید الدین چه دَ حج کولو نه روستو په اجمیر شریف کښې
اوسیدۀ. او هم هلته وفات شوې دې. دا څلور وارۀ دَ خپل پلار مریدان

او خلیفه ګان وو. د میاں ابو حامد په بیاض کښې د مولانا عبدالوهاب د پنځم ځوئ عبدالمؤمن ذکر هم راغلے دے.

## حضرت شیخ فرید

پدرئ کښې خلورم ځوئ شیخ فریدالدین د شیخ فرید په نوم مشهور وو. حضرت میاں صاحب محمد عمر د چمکنو پخپل کتاب " سرّالاسرار " کښې د ده د اوچتے عرفانی مرتبے زیاته ستائینه کړیده او پخپلو استاذانو کښې ئے شمارلے دے. د رضوانی مرحوم د روایت مطابق حضرت شیخ حبیب پیښاوری هم د دے حضرت شیخ فریدالدین مرید وو. چه روستو د حضرت اخون پنجو بابا مبارکه سلسله د دے حضرت شیخ حبیب په ذریعه شیخ محمد مؤمن د ماشو ګګهر ته د هغه نه حافظ اخوند محمد صدیق د بسئونئ ته د هغه نه حافظ اخوند محمد د عمر زو ته د هغه نه حافظ محمد شعیب د تورډهیرئ ته د هغه نه حافظ اخوند عبدالغفور د سوات ته رسیدلے وه. او د اخوند صاحب د سوات په ذریعه د دے مبارکے سلسلے شلونه ترنن ورځے پورے په ټول شمال مغربی پاکستان او افغانستان کښې خوارۀ دی.

## حضرت شیخ میاں علیؒ

د حضرت اخون پنجو بابا په مشرانو مریدانو کښې د حضرت شیخ اخوند میاں علی نوم یاد ولے شی. دے په اصل د هشنغر د ستیر باؤنوے ځائے وو. په قام مامون ځائے یوسف خیل وو. ټول عمر ئے د خیل پیر سره تیر شوے وو. د اوچتے عرفانی او روحانی مرتبے خاوند وو. زیارت ئے د اخون پنجو بابا د مزار د نور ختیزے دروازے نه باهر دے. او لکه چه مخکښې ذکر شوے دے. د خپل پیر په مناقب کښې یو کتاب ئے یادګار پریښے دے. روستو د ده ځوئ میاں عبدالرحیم هم د خپل وخت لوئ بزرګ تیر

شویدے چه زیارت ئے په موضع تهاره کښې دے.

## حضرت شیخ عبد الغفور عباسیؒ

حضرت شیخ عبد الغفور عباسی المعروف په بوړه ابا باد علاقه داؤدزائے د موضع پیارئ سنغاریه اوسیدونکے وو. دخپل وخت یو صاحب دکمال بزرګ وو. ډیر مریدان ئے لرل. حضرت شیخ صاحب دریګی. او حضرت شیخ اخوند بابا (د بابا محمد شیخانو نیکه) حضرت شیخ اخوند صاحب دبیسئ (داګلے د موضع اچینی خواته دے) او حضرت میان جی صاحب د موضع متنئ علاقه داؤدزائے. د دوئ په مشهورو مریدانو کښې دی. داسے معلومیږی چه په آخر عمر کښې د خلیلو علاقے ته تلے وو. مزار مبارک ئے د تپه خلیل په موضع کوچیان کښې د چل ګزیانو په ادیره کښې دے.

## حضرت شیخ اخوند سالاکؒ

حضرت شیخ اخوند سالاک په اصل د ترکستان وو. (یو بل اخوند سالاک چه په قام خټک وو. او د موضع تریه اوسیدونکے وو. هغه د زمانے په لحاظ د ده نه د مخکښې زمانے بزرګ تیر شویدے چه د اخوند درویزه په تذکره کښې او په تاریخ مرصع کښې ئے ذکر راغلے دے.) د اباسینه کوهستان او سوات کوهستان وغیره په علاقو کښې د جهاد کولو په وجه د اخون پنجو بابا په مریدانو کښې ده ته زیات شهرت حاصل شویدے. اخوند سالاک علاوه د عرفانی او روحانی مرتبے لرلو نه یو فاضل عالم. ادیب او مؤرخ هم وو. د ده په تالیفاتو کښې فتاوی عربیه. بحر الانساب او غزویه زیات مشهور کتابونه دی. حضرت اسماعیل شهید چه په وادئ پیښور کښې د کوم اسلامی ریاست بنیاد ایښے وو. د هغ اکثر شرعی فیصلے به ئے دد فتاوی عربیه مطابق کولے. (د اخوند سالاک په حقله ما عبد الحلیم اثر خپل کتاب "پښتانه مؤرخان" کښې په تفصیل سره بحث کړیدے.) دے په سنه ۱۰۶۷ھ کښې وفات شویدے.

مزار مبارک ئې په اباسیند کوهستان کښې په علاقه چغرزائې کښې په کابل گرام نومې کلي کښې دے۔ دَ اخوند سالاک په مریدانو کښې ملا مست علی خان دَ شوړتن (سمت مشرقي افغانستان) نه زیات شهرت حاصل شوے دے۔ چه مزار مبارک ئې دَ خیبر ایجنسئ په علاقه شنوارو کښې دے۔ او کتاب سلوک الغزات ئې علمي او ادبي یادګار پاتے دے۔ دَ سنه ۱۰۵۰ھ په شاؤخوا کښې وفات شوے دے۔ ددے په حقله دَ تفصیل دَ پاره ملاحظه کړي "پښتانه مؤرخان"

دَ اخوند سالاک په مریدانو کښې بل مشهور مرید دَ شاکاړ هنډ بابا دے۔ چه مزار ئې دَ مردان او صوابئ په لوئ سړک باندے دَ ډهوټي نومې کلي سره نزدے دے۔ او بل مشهور مرید ئې حضرت اخوند محمد یونس تورو معیار و دے۔ چه مزار ئې دَ خاؤو ډهیرے خوا سره نزدے دے۔ (دَ معیار وَ دَ موجوده کلي جنوب طرفته دَ کلیانئ په مغربي غاړه) حضرت اخوند شیخ محمد یونس دَ خپل وخت فاضل عالم وو۔ او حضرت میاں صاحب محمد عمر دَ چمکنو دَ دیني کتابونو درس دَ دوئ سره لوستلے وو۔

## حضرت شیخ میاں موسیٰ رح

دے نه علاوه دَ سمت مشرقي افغانستان حضرت شیخ میاں موسیٰ صاحب دَ بهي کوټ هم دَ حضرت اخون پنجو بابا په مریدانو کښې دَ اوچتے روحاني درجے خاوند بزرګ تیر شوئے دے۔ چه فیوضات ئې تراوسه جاري دي۔

## حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب رح

رضواني مرحوم په خپل کتاب تحفة الاولیاء صنـ۳ کښې حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب رح هم دَ اخون پنجو بابا په مریدانو کښې شمار کړے دے۔ لیکن دَ حضرت کاکا علیه الرحمه دَ نسوکا کاخیلو په تذکرو کښې ددے خبرے نه انکار کړے شي۔ او تر کومه حده پورے چه څما تحقیق دے۔ دَ کاکاخیلو مؤرخانو رایه صحیح معلومیږي۔ وجه ئې دا ده چه کله کښې حضرت اخون پنجو بابا دَ ژوند حالات چه

په کوم ترتیب سره بیان شول. دغه نه دا واضحه کیږي. چه د رضواني هغه بیان صحیح ندے
چه د حضرت کاکا صاحب والد ماجد حضرت سید عبد الله الملقب په بهادر خان د اخون
پنجو بابا مرید وو. یا دا چه هر کله کاکا صاحب پیدا شو. نو خپل والد ئې په اوږه کښې نغښتے
راوړو او خپل پیر طریقت اخون پنجو بابا ته ئې د دعا کولو د پاره پیش کړو. ځکه چه رضواني
روایات خو را جمع کړي دي. لیکن دا ئې فکر نه دے کړے چه آخر د تاریخ سره د هغې
تطبیق څرنګ راتللے شي. ؟ سوال دا دے چه که مونږ د رضواني مرحوم د خپل
بیان مطابق د حضرت اخون پنجو بابا ولادت په سنه ۹۳۵ھ کښې اومنو. نو بیا د هغه حساب د
حضرت کاکا صاحب د ولادت سنه ۹۸۱ھ په وخت کښې به د اخون پنجو بابا عمر ۳۶ کاله وو.
او رضواني دا هم ویلي دي چه اخون پنجو بابا په سنه ۹۹۳ھ کښې د ابو الفتح قناجي مرید شوے وو.
چه د دغې واضحه مطلب دا دے، چه د کاکا صاحب د پیدا کولو (سنه ۹۸۳ھ) په نیټه
چه هر کله دے لا پخپله د چا مرید نه وو. نو آخر د کاکا صاحب د والد ماجد پیر
طریقت څرنګ شو. ؟ لکه د رضواني د خپل تفصیلي بیان مطابق په سنه ۹۸۳ھ
کښې لا اخون پنجو بابا په روهیل کنډ کښې وو. علم ئې حاصلولو. او بیا د ګاډ د
خپل بیان مطابق د کاکا صاحب د پیدا کیدلو په نیټه په اکبر پوره کښې موجود
هم نه وو. چنانچه د دے وجوهاتو له مخه هر کله چه تاریخ د رضواني د بیان
مرسته نه کوي. نو ځکه مونږ او وئیل چه د رضواني مرحوم دغه بیان صحیح ندے
چه د ... کاکا صاحب والد ماجد د اخون پنجو مرید وو. یا دا چه حضرت کاکا صاحب ئې په
اوږه کښې دوئ له راوړے وو. بلکه صحیح قول دا کیدلے شي چه حضرت
سید عبد الله الملقب په بهادر خان د حضرت اخون پنجو بابا نه د زمانې
مشر بزرګ وو. او حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب علیه الرحمة د حضرت شیخ
سید مولانا عبد الوهاب اخون پنجو بابا قدس سره همعصر بزرګ
وو.

علیهم الرحمة والغفران وقدس سره العزیز

# حضرت سید شیخ محمد طاهر قادری

## بندګی، لاهوری

حضرت سید شیخ محمد طاهر بندګی، قادری، لاهوری علیه الرحمة په طریقه عالیه قادریه کښې د حضرت شاه اسکندر ابن شاه کمال کهیتلی مرید او خلیفه وو. د هغوئ په حکم سره ئې لاهور ته تشریف راوړے وو. او دلته ئې د دینی علومو درس ورکولو او د روحانی فیوضاتو سلسله ئې جاری کړے وه. او داد دوئ د روحانی فیض دا سلسله تر لرے لرے پورے خوره شوے وه.

د سابق صوبه سرحد د مشهور قوم یوسفزی د رانی زائی قبیلے د خان خیلو یوه کورنئ په ملتان کښې آباده وه. د دے کورنئ مشهور خان ملک کاچو په دغه زمانه په ملتان کښې اوسیده. او هغه د حضرت سیدنا شیخ محمد طاهر بندګی علیه الرحمة نه په قادریه طریقه کښې بیعت کړے وو. دا ملک کاچو د خپل پیر په حکم سره د ملتان نه د ملاکنډ ایجنسئ د سوات رانیزی علاقے ته راغلے وو. چه اولاد ئې په الله ډهنډ او په هیرګه نومے دواړو کلو کښې د کاچو خیل په نوم سره اوس هم موجود دے. د دغه ملک کاچو په سنه ۹۹۴ هـ کښې د پښتنو تاریخ په نوم یو کتاب لیکلے دے. او د حضرت سیدنا محمد طاهر بندګی په اولاد کښې چه کوم کسان ئې د خان سره د خپلے پیرخانے د بزرګانو په حیثیت د خان سره د رانیزئ علاقے ته راوستلی وو. د دغه سادات و د رے کلی او وخت د سوات رانیزئ په علاقه کښې موجود دی.

د دے تاریخی واقعاتو نه معلومیږی. چه ملک کاچو د خپل پیر په حکم سره د ملتان نه د سنه ۹۹۴ هـ نه مخکښې راغلے وو. او د دغے نه ورسره دا هم معلومیږی چه حضرت سیدنا محمد طاهر بندګی قادری د سنه ۹۹۴ هـ نه مخکښې په ملتان کښې وو. د هغے نه روستو د خپل پیر حضرت شاه اسکندر

کهیتلی په حکم سره لاهور ته تشریف راوړے وو.

دغه زمانه چه په کومه کښې حضرت سیدنا شیخ محمد طاهر بندګی قدّس سرّه په لاهور ښهر کښې دَ دینی علمو نوَ درس او تدریس. وعظ. نصیحت. امر بالمعروف اودَ قادریه طریقے دَ فیوضاتو خورولو سلسله جاری ساتلے وه. دَلاهور ښهر په تاریخ کښې دَ سلسله عالیه قادریه دَ عروج زمانه ګڼړلے شي. اودَ قادریه خاندان ګڼړ مشاهیر بزرګان په لاهور کښې موجود وو. لکه:

(۱) حضرت شاه ابوالمعالی قادری کرمانی متوفی سنه ۱۰۴۴ھ

(۲) حضرت شاه بلاول قادری لاهوری. متوفی ۲۸، شعبان سنه ۱۰۴۶ھ

(۳) حضرت شاه میان میر بالاپیر قادری. متوفی سنه ۱۰۴۵ھ (دَ تاریخ وفات ماده ئے دا جمله ده "مقتدائے تحقیق ۱۰۴۵ھ"

په دا سے زمانه کښې چه په لاهور کښې دَ سلسله عالیه قادریه دومره بزرګان موجود وو. دَ خپل پیر حضرت شاه اسکندر کهیتلی دَ طرف نه چه حضرت شیخ محمد طاهر ته دَ لاهور ته تللو او هلته دَ خپلو فیوضاتو دَ سلسلے جاری کولو حکم ته چه فکر او کړلے شي. نو دا سے معلومیږی چه هر کله دَ دوی روحانی درجے او مرتبے سره سره دَ دوی دَ دینی علمونو مرتبه هم ډیره اوچته وه. نو حضرت شاه اسکندر په خپل روحانی بصیرت سره دَ پنجاب په مرکزی ښهر لاهور کښې دَ علم او عرفان دواړو یو دا سے مشعل روښانه کول غوښتله. چه دَ هغے په انوار وَ دَ پنجاب او سرحد کوټ، کوټ روښانه شي. حضرت سیدنا محمد طاهر بندګی قادری په سنه ۱۰۴۰ھ کښې وفات شویدے. دَ تاریخ وفات ماده ئے دا جمله ده (بغم ۱۰۴۰ھ) مزار مبارک ئے دَ لاهور ښهر دَ مه کښې په علاقه کښې دے.

دَ حضرت سیدنا شیخ محمد طاهر قادریؒ په مریدانو کښې حضرت شیخ

ابو محمد قادري عليه الرحمة دَ خپلے زمانے مشهور بزرګ تیر شوے دے. چه مزار ئے دَ خپل پیر دَ مزار سره یو ځائ دے. د دے حضرت شیخ ابو محمد نه مریدانو کښې حضرت شیخ محمد افضل قادريؒ دَ لاهور نه موضع کلانور ضلع ګورداسپور ته تشریف وړے وو. او هلته ئے دَ سلسله عالیه قادریه دَ فیوضاتو سلسله جاري کړے وه. کلانور نومے ښهر په ضلع ګورداسپور کښې دَ دریائے راوي نه راپه دے خوا دَ پنځه کوس په فاصله آباد دے. او دَ حضرت شیخ محمد افضل قادري کلانوري علیه الرحمة مزار مبارک د دے ښهر نه جنوب طرف ته بهر دے

د دے حضرت شیخ محمد افضل قادري په اولاد کښې حضرت شیخ محمد فاضل قادري علیه الرحمة دَ شهنشاه عالمګیر اورنګ زیب په زمانه کښے دَ کلانور نه دَ علاقه بادي دوآب مشهور ښهر بټاله ته تشریف یوړے یوه جامع مسجد. او دَ شیخ سره پیوسته دَ دیني علومو یو لوئه او شاندار مدرسه او خانقاه ئے جوړ کړل. او دَ ظاهري او باطني علومو درس او تلقین ئے شروع کړ. او دَ شریعت او طریقت په فیوضاتو ئے دَ خوا وُشا عام او خاص خلق سر فرازه کړل. او بے شمیره غیر مسلم خلق ئے دَ دین اسلام په سعادت مشرف کړل.

دَ حضرت شاه محمد فاضل قادري علیه الرحمة په برکت دَ ټول سابق پنجاب او سرحد په زمکه سلسله عالیه قادریه تر لرے لرے خوره شوه. او دَ دے فروغ ورته حاصل شو. چه دَ دوئ نه روستو دا سلسله په "طریقه قادریه فاضلیه" سره یاده شوه. حضرت شیخ محمد فاضل علیه الرحمة په سنه ۱۱۵۱ھ کښې وفات شوے دے. دَ لفظ (غم عام ۱۱۵۱) نه دَ دوئ دَ وفات تاریخ راخیژي.

دَ دوئ په اولاد کښې حضرت پیر حسن شاه دَ خپل وخت پیر لوئ فاضل او محقق عالم او دَ اوچتے مرتبے عارف وو. چه دَ بټاله نه لاهور ته راغلے وو. او دلته ئے دَ سلسله عالیه قادریه فیوضات جاري کړي وو. دَ هغوئ نه روستو حضرت پیر حسین شاه قادري په لاهور کښې دَ هغوئ

جانشین وُو. علیهم الرحمة

دَ حضرت شیخ محمد فاضل قادری علیه الرحمة په اولاد کښې چه کوم خاندان په بټاله کښې پاتے وو. هغوئ هم دَ طریقه قادریه دَ فیوضاتو خوره ولو. دَ دینی علومو دَ درس او تدریس او خانقاه جاری ساتلو دا سلسله قائمه کړے وه. او دَ ظاهری او باطنی فیض حاصلونکو دَ پاره دَ لنګر عام انتظام موجود وو. ددے خاندان په روستنو بزرګانو کښې حضرت شیخ نذر محی الدین قادری فاضلی علیه الرحمة دَ پاکستان دَ جوړیدلو نه روستو دَ بټالے نه لاهور ته تشریف راوړے وو. او بیا هم دلته وفات شو. چه اوس دَ هغوئ فرزند ارجمند حضرت شاه بدر محی الدین سجاده نشین دے. او دَ لاهور سهر په فیروزشاه روډ فاضلیه کالونی کښې ئے خانقاه دے. او زما محسن او مهربان دوست سید آغا عنایت علی شاه ضیاء جعفری قادری په سلسله عالیه قادریه فاضلیه کښې دَ دغه مرحوم شاه

نذر محی الدین علیه الرحمة

مرید او

خلیفه دے.

ادام الله

فیوضاتهم

# حضرت اخوند درویزه علیه الرحمة

ولادت ــــــــــــــــــــ سنه ۹۴۰ھ

وفات ــــــــــــــــــــ سنه ۱۰۴۸ھ

حضرت مولانا شیخ المشائخ قدوة العلماء الراسخین زبدة الاولیاء الکاملین شیخ عبد الله المعروف په الله داد او ملقب په اخوند درویزه ننګرهاری پاپینی علیه الرحمة یو مشهور دینی عالم او روحانی پیشوا دے. چه د لسمے پیړۍ په روستنۍ او یوولسمے پیړۍ په اولنۍ نیمه حصه کښې ژوندے وو. او د علم او عرفان ادب تاریخ په میدان کښې ډیر لوئ نوم ئے ګټلے دے. او کوم شهرت چه دوئ ته حاصل شوے دے. هغه د پښتو نخوا بل کوم یو عالم او بزرګ ته نه دے نصیب شوے. شجره د نسب ئے دا شے ده.

عبد الله (الهداد) اخوند درویزه بن ګدائی بن سعدی بن احمد بن متہ (معروف په درغان) بن جیون بن جنتی.

شیرم نیکه ئے چه نوم ئے جیون وو. هغه په لمغان کښې اوسیده. د هغه ځوئ متہ د ننګرهار په مهمند ره کښې اوسیده. د هغوئ ځوئ احمد د ننګرهار د شیوار و په علاقه کښې په پاپین نومے علاقه کښې اوسیده. د هغه ځوئ سعدی هم بدغه پاپین کښې اوسیده. او چه هر کله په سنه ۸۱۲ھ کښې د یوسفزو وغیره قبائیلو خلق د کابل نه د ننګرهار په لاره د خانه کوچ وادئ پیښور ته راتلل نو د هغوئ سره دغه سعدی چه په تاریخ کښې په "شیخ سعدی" نامه مشهور دے. یو ځائے ملګرے وادی پیښور ته راغلے وو. او بیا چه د یوسفزو د قبائیلی مشر ملک احمد خان او نورو قبائیلی سردارانو په اتفاق سره د سنه ۸۲۱ھ نه تر سنه ۸۲۹ھ پورے زمانه کښې مشهور پښتون مقنن شیخ ملی علیه الرحمة د ټولو مفتوحه علاقو ویش په ټولو قبائیلو

پنده دَ افرادو دَ شمار په حساب کوټو. نو شیخ سعدی له ئے دَ مندیزی قبیله سره په ویش کښې حصه ورکړه. دَ شیخ ملی دَ ویش له مخه مندیزی قبیله دَ موجوده ضلع پېښور دَ تحصیل چارسده کَ دَ دوآبے په علاقه کښې دَ خیالی او سردریاب نوم سیندونو تر منځه دَ خیالی په قبلیزه غاړه دَ سرېخ او مروزی نومے کلوخواته آباده شوے ده. چه ددے قبیلے دَ نوم په مناسبت سره په دغه علاقه کښې یوکلے تراوسه پورے په مندیزی نامه مشهوردے. حضرت شیخ سعدی علیه الرحمة دغلته آباد شوے وو. او بیا هم دغلته په یوه پیښه کښې شهید شوے وو. مزار مبارک ئے دَ سرېخ او مروزی نومے کلوخواته مقبره کښې دے.

دَ حضرت شیخ سعدی ځوی (دَ اخوند درویزه والد ماجد) اخوند گدائی دغلته پیدا شوے وو. او دَ خپل والد ماجد دَ شهادت په وخت چه دَ دشمنانو په بند کښې پریوتلے وو. دَ هغه نه چه را خلاص شو. نو څه زمانه پس حضرت شیخ گدائی علیه الرحمة بُنیر نومے علاقے ته دَ چغرزی نومے قبیلے خلقوته لاړ. او هغوئ ورله دَ مخیله دَ اسماعیل خیل نومے کورنئ کښې دَ لسرکسانو برخه ورکړه. او هلته آباد شو. دَ تاریخونو او تذکرو دَ مطالعے نه دا صفا نه معلومیږی چه آیا دَ حضرت گدائی دغه نامور ځوئ حضرت اخوند درویزه دَ پېښور په مندیزو نومے کلی کښې پیدا شویدے. او که دَ بُنیر دَ چغرزو په علاقه کښې. البته زیات خیال دا دے. چه پیدا ئش ئے دَ بُنیر دَ علاقے دے. او بیا دَ ورکوتی والی په عمر کښې خو یقیناً چه په چغرزو کښې وو.

اخوند درویزه په سنه ۱۰۲۱ھ کښې دَ "تذکرة الابرار" په نوم یو کتاب تالیف کړے دے د دغه کتاب په ص ۱۱۹ لیکی چه دا وخت ځما عمر اتیا کاله دے. دَ هغې نه په قیاس سره ددهٔ دَ ولادت کال سنه ۹۴۰ھ اندازه کولے شی. مورئے دَ ننگرهار دَ پاپین دَ ملک نازو خان لور وه چه قراره نوم ئے وو.

او پیره زاهده عابده او صالحه بی بی وه. علیها الرحمة. د اخوند رویزه
پلار په (قندز) ترکستان کښې هم څه زمانه تیره کړیده. هرکله چه د
اخوند رویزه بعض نیکونو په ننګرهار کښې عمر تیر کړیدے. په دغه
وجه د دغه خپل نوم سره نسبتی نوم "ننګرهاری" لیکی، او د پاپین سره د
تعلق په وجه ځان ته پاپینی هم وائی. او هرکله چه دے په خپله د وادئ
پیښور اوسیدونکی وو. او مزار ئے هم په پیښور ښهر کښې دے. د دغه وجے نه
روستو راتلونکی مؤرخان لکه غلام سرور لاهوری په خپل کتاب "خزینة
الاصفیاء" جلد ۲ ص ۱۶۴) کښې او رحمان علی لاهوری په "تذکرۂ علمائے هند"
(ص ۵۹) کښې د دوی نوم "اخوند رویزه پشاوری" یاد کړے دے.

حضرت اخوند رویزه بابا علیه الرحمة د لویو او مشاهیرو استاذانو
نه سبق وئیلے دے. لکه ملا سید مصر احمد پاپینی علیه الرحمة.
ملا محمد زنګی علیه الرحمة، او ملا سنجر پاپینی علیه الرحمة شول. د
ظاهری علومونو نه علاوه په باطنی علومونو او طریقت کښې هم د کمال
درجے ته رسیدلے وو. د ملا زنګی په واسطه ئے د مشهور بزرګ او پیر
طریقت حضرت شیخ الاسلام والمسلمین، غواص بحر الاسرار والرموز
والمعانی السید علی ترمذی الحسینی المعروف په پیر بابا علیه الرحمة د
تبرنه لاس بیعه کړے وه. چه بیا روستو هغه خپل خلیفه کړ.
او څلور وطریقو یعنے قادریه، سهروردیه، چشتیه، او کبرویه کښې
ئے اجازت ورکړ. او په پنځمه طریقه شطاریه کښې ئے هم خلیفه او مجاز
کړے وو.

د خزینة الاصفیاء د بیان مطابق اخوند رویزه رح په کال ۱۰۴۸ هـ په
حق رسیدلے دے، په دے حساب سره د ده عمر (۱۰۹) کاله جوړیږی. زیارت
ئے د پیښور ښهر د ګنج دروازے نه بهر د پیښور ښهر په لویه ادیره کښې د

هلارخوانی نوم کلی سره نزدے واقع دے۔ علیه الرحمة والغفران۔

په دے دومره اوږد عمر کښې چه حضرت اخوند رویزهؒ کوم علمی، ادبی، تاریخی، مذهبی او تبلیغی کارنامے انجام ته رسولے دی. دَ هغے له مخه روستو راتلونکو ټولو عالمانو. مؤرخانو او بزرګانو او په خصوصیت سره دَ پښتو ژبے ادیبانو او شاعرانو ورته په حیثیت دَ عالم. ادیب. مؤرخ. صوفی. واعظ. مناظر او مبلغ او مصنف سره خراج دَ عقیدت پیش کړیدے.

حضرت عبدالمقتدر نقشبندی، چشتی، سهروردی المعروف دَ الپوریؒ حافظ دَ ددیؒ په حقله فرمائی:-

لکه زړه په ټول پښتون دے اخون ایښے
همره زړهٔ کله په څوک خیل پدرزدی

دَ روستو زمانے راتلونکو عالمانو او بزرګانو چه په خپلو یاداشتونو کښې دے په کومو تعریفی الفاظو یاد کړیدے. په هغے کښې یو څو دادی. (۱) دَ دین اسلام ړیوه (۲) دَ مذهب اسلام رڼا (۳) دَ حق خاوند (۴) فاضل عالم (۵) دَ اهل هوا او بدعت په مقابل کښې دَ ایمان او اسلام لوی مدافع (۶) قطب المکنة ورکن السنة ومنبع الانوار (۷) شیخ شیوخ الطریقة. (۸) علامه دَ امور شریعت (۹) مجذوب دَ جذباتو دَ وحدت (۱۰) قبلة الابرار نقطة الاحرار (۱۱) الشیخ الفاضل والولی الکامل (۱۲) حضرت مولانا اخون درویزه علیه الرحمة.

## ابتدائی احوال او نور واقعات

ځما دا خیال دے چه ددے بزرګترینې هستئ ابتدائی احوال او دَ ژوند واقعات په ترتیب سره بیان کړو۔ نو فائده به یئے زیاته شی ۔

حضرت اخوند رویزه دَ پلار دَ طرف نه په قام تاجک دے. دَ مشهور مورخ میکیتنهر دَ بیان مطابق دَ تاجک. طایک قوم خلق ارښین تالئ ۔ عرب طائیان یعنی د سبائ د نسل خلق دے. چه دَ سنه ۵۰۰ قام نه په دے علاقه کښې

آباد وو۔ او په افغانستان کښې د دیګان اود وادئ پیښور په پخوانی تاریخ کښې دهقانان په نوم یاد شویدی. د دے قوم خلق د مغربی پاکستان په مختلفو حصو کښې ترنن ورځ پورے آباد دی او د دغه علاوه په خصوصیت سره د سمت مشرقی او شمالی افغانستان په وادئ کنړ۔ لغمان۔ کوهستان۔ ریزه کوهدامن۔ تګاب۔ نجراب۔ پنجشیر وغیره علاقو کښې د اندراب تر علاقے پورے تقریباً د یو ویشت لکهه په تعداد کښې غونډ آباد دی. او د سوویټ روس په ریاستو نو کښې د تاجکستان په نوم یوه علاقه د دے قوم د خلقو موجود ده چه د اشتراکی نظام د لاندے دی. لیکن مسلمانان دی. نسلاً عرب دی چه د جنوبی عرب نه راغلی دی.

د حضرت اخوند درویزه مور رحمة الله علیها د سلاطین پنج په خاندان کښې د سلطان تومنا په اولاد کښې وه. د اخوند درویزه خپل روایت دے چه د سلاطینو دا خاندان په اصل یونانیان وو. په دے سلسله کښې حمّا (اثر افغانی) چه نور څه معلومات دی. هغه چونکه او رد بحث غواړی. په دے وجه هغه ټول تفصیل ما په خپل کتاب "اخوند درویزه" کښې بیان کړیدے.

د حضرت اخوند درویزه خپل اصلی نوم عبد الله دے. او په عامو تذکرو کښې "الله داد" راغلے دے. وجه ئے داده چه په هغه زمانه د عزلی نومونو ځنے د فارسی ترکیب مطابق د نومونو جوړ ولو یو عام رواج وو۔ او د دغے عامے قاعدے مطابق د عبدالله نه الله داد جوړ کړے شو۔ دا یوه داسے خبره ده چه د دے ډیر مثالونه موجود دی. لکه څنګه د اخوند درویزه په کورنئ کښې د ده د یو ځوئ نوم عبد الکریم دے په میاں کریمداد یادیږی. د دویم ځوئ ئے پیر محمد نوم دے پیرداد یادیږی. د ده په نمسو کښې د یو نمسی نوم عبد الرحیم دے په رحیمداد یادیږی. دغه شان د بایزید انصاری په خاندان کښې د عبد الکریم په ځائے کریمداد د عبد الواحد په ځائے احداد د عبدالقادر په ځائے قادرداد

دَ پیر محمد په ځای پیر داد. دَ عبد الخالق په ځای خالقداد او دَ عبد الهادی په ځای هادی داد نوموونه په طور دَ مثال څوئیز په وړاندے دی.

اخوند درویزه پخپل کتاب تذکرة الابرار کښ (دَ ۱۰۵ نه تر ۱۲۵ پورے) په ډیر تفصیل دَ علم دین دَ طلب او دَ علوم معرفت دَ حصول حالات بیان کړیدی. فرمائی چه په ورکوټی والی کښ دَ طریقه سنت دَ تابعداری دَ بدعت او ناکاره کارونو نه دَ بیزارئ او دَ زهد او ریاضت شوق ئم لرلو. په ورکوټی والی کښ ئم دا حال وو. چه هر وخت به دَ خدائ دَ ویرے نه په زړا ووم والده ماجده به چه څما دَ ډیرے ژړا نه تنګه شوه. نو خپیره به ئے هم راکړه. چه لږ لوئ شوم نو هر وخت به او دس کښ او سیدل دَ ورځ روژه او دَ شپے عبادت ئم روزګار وو. دَ احکام شریعت په ځائ راوړل او دَ خلاف شریعت کارونو نه ځان ساتل ئم چه اختیار کړل. په دغے راته دَ زړهٔ صفائي حاصله شوه او ډیر څه ئم اوموندل. او دَ افغانانو په اصطلاح کښ کامل بزرګ راته جوړ شو. کشف راته حاصل شو او دَ غیب حالات به ئم خلقو ته بیانول. او په دے بیا روستو پوهه شوم چه دغه هر څه چه ما لیدل او کوّل یعنے دَ غیبو خبرے کوّل او ځان بزرګ کنړل. دغه ټول دَ طریقت په نزد هیڅ قدر قیمت نلری. چه څهٔ وخت دَ دین دَ علمونو نه خبردار شوم نو دَ هغے په ذریعه دَ حقانی وارداتو او شیطانی وارداتو ترمینځه ئم فرق اوکړلے شو. او دَ حق او باطل ترمینځه په تمیز کولو پوهه شوم. نو نتیجه ئے دا شوه چه ناشایسته واردات ئم په شایسته بدل شول. او دَ اهل السنة والجماعت په سمه لاره دَ تللو توفیق خدائے راکړو.

دَ اخوند درویزه دَ خپل بیان نه معلومیږی. چه په ابتدا کښ ئے دَ حضرت ملا سنجر پاپینی نه ئے علم حاصل کړے وو. لیکن باقاعده تعلیم او خط و کتابت ئے ځلمی توب په زمانه کښ دَ حضرت مولانا سید مصر احمد بخاری نه حاصل کړے وو. دغه مولانا مصر احمد دَ حضرت سید محمود تارن بخاری په اولاد کښ وو.

اخوند درویزه وائي چه د دلانه م د لیکلو او لوستلو ابتداء اوکړه. نو مور بي بي م شیریني ویلي وه. ابتدا مې د لیکلو نه اوکړه. قرآن مجید مې په یو کال کښې یاد کړ او په دوه کاله کښې مې د علم دین ابتدائي کتابونه اولوستل. څه زمانه مې د مولانا جمال الدین اهندوستاني نه هم درس اولوست. بیا خپل بخوانۍ استاذ ملا سنجر له راغي خپل ورته مې ورته بیان کړل چه له خپلې روحاني بې قرارۍ نه پریشانه یم. او د ظاهري علم د حصول نه پس هم د زړه اطمنان راته حاصل شوی نه دے. غرض دا چه د پیر طریقت په تلاش کښې مې د هغوی نه راهنمائي اوغوښتله هغه ورسره شو. او حضرت شیخ المشائخ سید علي ترمذي پیر بابا له "شل بانړي کئ" له بوتللو. د هغوی په خدمت کښې چه حاضر شو. نو اخوند درویزه بابا وائي چه تحصیل زهد. ریاضت. عبادت او کشف وغیره ټول حالات مې هغوی ته بیان کړل. هغوی راته اوفرمائیل چه بیشکه د پښتنو په اصطلاح کښې کامل بزرګ درنه جوړ شویدے. لیکن په دے کښې یوه خبره ده. او هغه دا ده چه د یو کامل پیر د رهنمائي نه په غیر چه د زهد او ریاضت لاره اختیار کړے شي. د هغې آخر انجام ګمراهي وي. د زهد او ریاضت کولو نه اول د دے خبرے علم ضروري دے. چه د زهد او ریاضت هغه بنیادي اصول کوم کوم دي. چه د نبي کریم علیه السلام په اقوالو او افعالو کښې سبو دلي شویدي. یعنے مبتدي له پکار دي چه زهد او ریاضت خالص هم په هغه طریقه سره اوکړي کومه طریقه چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په علمي او عملي تعلیماتو کښې بیان شویدي. اخون درویزه فرمائي. چه د دغے نه پس بو نصیحتونه یې هم راته اوکړل. د تهجد یې را پابندے اوکړ. د جمعے سره نمونځ ګذارل. د ایام بیض روژے نیول. صلوٰة آوابین ګذارل. او د نورو واجب او سنتو ادا کولو هدایت یې راته اوفرمائیل. اګر چه په دے ټولو عبادتونو پابندے د وړاندې نه م هم پیر په کلکه عمل کولو. لیکن حضرت پیر بابا د قاعدے په مطابق د دے امر راته فرمائیلے ود.

اخوند رویزه پنځه کاله دَ احکام شریعت دَ مکملې پابندئ دَغه وظائف چه په ځائ راوړل. نو بیا دَ حضرت سید مصراحمدؒ په وسیله سره ئې حضرت پیر بابا ته درخواست اوکړو چه اوس دَ ذکر الهی تلقین ورته اوکړی. اخوند رویزه په یو بل ځائ کښې ددے وضاحت داسے کړیدے چه دَ پیر بابا طریقه دَ کار داوه چه اول به ئې مرید نو ته دَ شریعت بیعت کولو او چه مرید به دَ شریعت په ټولو احکامو استقامت اوموندو نو هاله به ئې ورته دَ طریقت بیعت کولو. اوعامه قاعده ئې داوه چه دَ طریقت بیعت به ئې ډیر وکمو خلقو ګولو. او چه په چا کښې به ددے درو ند بار دَ سنبالولو او پوره کولو اهلیت نه وو. هغه ته به ئې داراز نه ښکاره کولو. دا به ئې فرمائیل چه دا یو الهی امانت دے. او دا فقط هغه کسانو ته سپارل پکاردی چه څوک ئې ساتلے شي. بهرحال پیر بابا دَ پوره تسلئ نه پس دَ اخوند رویزه درخواست منظور کړو. او درجه په درجه ئې ورته په سلسله چشتیه. سهروردیه. قادریه. کبرویه. شطاریه کښې اجازت او خلافت ورکړو. او په دغه منځ کښې دَ تصوف دَ علم حاصلولو هدایت ئې هم ورته کړے وو. او دَ علم تصوف دَ یو مشهور کتاب "جام جهان نما" دَ مطالعے کولو سبق نه ئې ورته کړے وو. چنانچه اخوند رویزه بابا دَغه "جام جهان نما" دیوان دَ خواجه قاسم لمعات او لوائح دَ جامی او نور دَ تصوف کتابونه دَ پیر بابا نه اولوستل. او دومره کمال ئې پکښې حاصل کړو چه روستو ئې پخپله دَ "ارشاد المریدین" په نوم یو کتاب تالیف کړو چه په هغې کښې ئې دَ کتاب "جام جهان نما" ټول تصوفی مطالب په زیات واضح شکل کښې بیان کړل. او دده په پیروی کښې دده نامور فرزند یعنے میاں کریمداد ولد اخوند رویزه په "جام جهان نما" باندے یوه ډیره فاضلانه شرح اولیکله (څو ورځے کیږی چه ما اثر افغانی دَ میاں کریمداد په دے کتاب شرح جام جهان نما باندے یوه مبسوطه دیباچه لیکلے ده.)

هر کله چه اخوند درویزه دَ پیر بابا په صحبت کښې دَ طریقت او معرفت په علمونو کښې دَ کمال درجه حاصله کړله. نو دَ خپل پیر طریقت په ملګرتیا کښې دَ علم ظاهری او باطنی په اشاعت او تبلیغ کښې مصروف شو. او دَ پښتونخوا په کوټ کوټ کښې دَ اهل السنت والجماعة دَ عقیدے مطابق عوامو او خواصو ته یے امر معروف او نهی عن المنکر شروع کړو.

دَ اخوند درویزه په مخکښې دوه کارونه وو. یو دَ اهل هوا او بدعت مقابله کول. عوام دَ هغوی دَ غلطو عقیدو دَ اثراتو نه بچ کول او دویم دَ اهل السنت والجماعت دَ عقیدے تبلیغ او نشر و اشاعت کول. دَ اخوند درویزه دَدے کارونو په ضرورت او اهمیت باندے او دَ هغه په مخنیله زمانه کښې په رشتیا سره دَ دین اسلام کوم عظیم الشان خدمت کړیدے. دَ هغے په قدر او قیمت باندے سړے هاله پوهیدلے شی. چه دَدَه په زمانه کښې دَ اهل سنت و الجماعت په خلاف دَ نورو عقیدو لکه قدریه. جبریه. ملامتیه. حلولیه وغیره عقیدو وخصوصاً باطنیه فرقے کوم عالمان. بزرګان او داعیان وو. اول دَ هغے په پوره حقیقت باندے خبردار شی. او دا اوره معلومه شی چه بنیادی طور په دغه پورته ټولو عقیدو کښې خرابے څه څیز دے او که اخوند درویزه او دَده شیخ طریقت پیر بابا دَ اهل السنت والجماعة دَ صحیح اسلامی عقیدے په حمایت او مدافعت کښې کوشش نه وے کړے. نو چه نن به دَ پښتون قوم په مذهبی اعتبار سره څه حال وو. اخوند درویزه وائی "که بالفرض په دے زمانه کښې حضرت شیخ المشائخ پیر بابا علیه الرحمه په دے ملک کښې موجود نه وے. نو معلومه نه ده که یو فرد له افرادو نه هم مسلمان پاتے شوے وے". دَ اخوند درویزه دے وینا دَ حقیقت معلومولو دَ پاره هم مونږ له دَ هغے زمانے او دَ هغے په پس منظر باندے غور کول دے. دَدے غرض دَ پاره به اول دا یو څو خبرے په فکر کښې او ساتو چه مطلب ته رسیدل آسان شی::

اُوکا خبره داده. چه برصغیر پاک و هند ته د اسلام د دعوت او پیغام اکثرو داعیان او مبلغان د طرف د مغرب نه په هغه لاره راغلی دی. چرته چه پښتانه قبایل آباد دی. دغه شان په مسلمانانو کښ چه روستو کومے نورے فرقے پیدا شویدی - چه په هغے کښ قرامطه. باطنیه. رافضیه. قدریه. جبریه. حلولیه فرقے په خاص طور سره د ذکر قابلے دی. د دے ټولو فرقو داعیان او مبلغان هم په دغه لاره راغلی وو. دا ټولے فرقے چه پورته یے نومونه ذکر شول. د مسلمانانو د هغه صحیح او برحقه ډلے او جماعت نه خلاف دی. کومے ته چه د اهل سنت والجماعت ډله ویلے شی. او قرآن. حدیث. فقه او اجماع د اُمت د خپل دین د اسلام د پاره مشعل راه گڼړی. او بنیادی طور د حنفی. مالکی. حنبلی. شافعی څلور واړه برحق مذهبونو پیروکاران دی -

ظاهره ده چه تبلیغی مهمونه هم لکه د عامو سیاسی مهمونو پښتانو په قدم قدم وړاندے روان دی. د دے په بناء د مسلمانانو د هر څو مرکه مختلفو فرقو داعیانو او مبلغانو چه په برصغیر او هند کښ د خپلو عقیدو د اثراتو خوره ولو کوشش کړیدے. د هغے د پاره ئے اول د پښتونخوا په علاقه کښ خپلے جوړے مضبوطے کړیدی. او بیا روستو د پاک او هند خاورے ته ورشریک شویدی. د تاریخ په کوم دورکښ چه یونخوا ته د مشرقی او مغربی پښتونخوا علاقو ته او وروستو د برصغیر پاک و هند علاقو ته د دغه مختلفو فرقو مثلاً قرامطه. باطنیه وغیره داعیان او مبلغان راخواره شوی وو. د لته ئے خپلے پښے مضبوطے کړے وی. او چه کوم مسلمانانو هغه ئے د بدعت او الحاد په لار روان کړی وو. نو بیا خواته د تاریخ هم په دغه دورکښ د اهل سنت والجماعت عقیده لرونکو علمانو او بزرګانو مشهور مرکزی مقام بغداد وو. دغه ځای نه دوی هم د ماوراءالنهر. خراسان او هند طرف ته توجه راوګرځوله. بخارا. هرات او غزنی. پیښور. لاهور او ملتان ئے د خپلو تبلیغاتو د پاره

مرکز ونه اوګرځول او بیا د دے ځایونو نه د اهل سنت والجماعت مشاهیر
بزرګان لکه سید محمد ګیسو دراز اول. سید محمد طاهر تارن. سید محمود
تاج الدین. سید علی هجویری وغیره چه ځکښې ئې ذکر راغلے دے د دیو رته
ذکر شو. و ملکونو مختلفو علاقو ته متوجه شول. او اهل بدعت چه کوم
نا کاره تعلیمات خوارہ کړی وو. د خدائ مخلوق ئې د دغه غلطو عقیدو او
نا کاره تعلیماتو د نا کاره اثراتو نه بچ کړل.

د اهل سنت والجماعت او د اهل بدعت د مختلفو فرقو ترمنځه چه کوم
مذهبی کشمکش او جد وجهد تیر شوید ے. او د هغے چه کوم تاریخی اثرات او
نتائج وو. او بعض اثرات ئې د اخوند درویزه تر زمانے پاتے وو. او اخوند درویزه هم
لکه د اهل سنت والجماعت د نورو مخوانو او معصرو بزرګانو پشان د هغے په
خلاف کوششونه کړی دی. د دغے په حقله ما بخپل کتاب "اخوند درویزه"
کښې په تفصیل سره بحث کړے دے. چه دلته په اختصار سره اشاره کول ورته مناسب
ګنړو. په تاریخی اعتبار سره د دے مذهبی کشمکش واقعات مونږ په
څلورو طبقاتو تقسیم کولے شو. (۱) د قرامطه او باطنیه فرقو دور (۲) د
قدریه. جبریه. حلولیه فرقو دور (۳) د وجودیه اباحیه فرقو دور (۴) د
روښانیه. حلولیه. باطنیه دور. په دے هر یو دور کښې چه د اهل سنت والجماعت
د مسلک کومو مشاهیرو بزرګانو د دین اسلام خدمتونه کړی دی. ورسره
ورسره به په اختصار سره هغے ته هم اشاره اوکړے شی.

## (۱) فرقه قرامطه او باطنیه

د فرقه قرامطه او باطنیه د ابتداء وضاحت داسے دے. چه د حضرت سیدنا امام جعفر
صادق رضی الله عنه نه روستو شیعه ګان دوه ډلے شول. یوے ډلے حضرت
سیدنا امام موسیٰ کاظم ابن سید امام جعفر صادق خپل امام تسلیم کړو او بلے
ډلے حضرت سیدنا امام اسماعیل بن سید جعفر صادق خپل امام تسلیم کړو.

په دغه وخت کښې چه داد وارلاړ لے جوړ ید لے سیدنا امام اسماعیل شهید شوئے وو.
په دے وجه دَ هغه په ځائے دَ هغه ځوئے سیدنا محمد ئے امام تسلیم کړ. بیا دَ هغه
جانشین سیدنا احمد وفی اوګرځولے شو. دَ هغه نه روستو سیدنا محمد تقی
الحبیب. دَ هغه نه روستو سیدنا حسین الرضی اودَ هغه نه روستو سیدنا
عبد الله (عبید الله) المهدی جانشینان شول. دغه سیدنا امام عبد الله
المهدی افریقے ته په کښه لاړ. اوهلته ئے دَ خاندان "بنی فاطمه" په نوم دَ "فاطمی
سلطنت" بنیاد کیښوده او په خپلو شیعه کانوئے "دَ فرقه اسماعیلیه" نوم کیښود
روستو دے فرقے دَ یو منظم خفیه تحریک شکل اختیار کړ. چه دَ هغې په وجه ورته
فرقه باطنیه (خفیه انجمن) وئیلے شو. عبد الله المهدی خپله دَ دے دَ یو منظم
تحریک په شکل سره (دَ بغداد دَ عباسیه خلافت په خلاف) په ټوله دنیا کښې
خوره کړه. او ټولو اسلامی ملکونو ته ئے خپل داعیان اولیږل. چه په هغې کښې
په سنه ۲۷۰ھ کښې دَ عبد الله ابن عمر هباری والئ سندهـ (مغربی پاکستان)
په زمانه کښې هیثم نوم یو داعی ئے سندهـ ته هم رالیږلے وو. لیکن دَ هغه کامیابی شوی نه وو.
دَ اسماعیلیانو اولنے مرکز په شام کښې وو. بیا په افریقه کښې قیروان
او بیا مهدیه ئے مرکز شو. او دَ هغه ځائ نه ټول احکامات ئے جاری کیدل. او بیا
چه په مصر کښې دَ "فاطمی خاندان" بنیاد کیښودے شو. نو دے ملکونو ته داعیان
دَ مصر نه رالیږلے شول. اودَ باطنیه تحریک کارکنانو به پټ په پټه کارکولو دَ سنه ۲۷۰ھ
نه ترسنه ۳۷۰ھ پورے هرکله چه په خراسان او مغربی پاکستان کښې دَ طبقات ناصری
(صـ طبع کلکته) دَ بیان مطابق دَ "فرقه باطنیه مشهور شاخ قرامطه پوره اثر و
رسوخ حاصل کړ. نو په سنه ۳۷۲ھ کښې دَ مصر دَ فاطمی خلیفه العزیز بالله په
زمانه کښې جلم ابن شیبان په طور دَ داعی دلته رالیږلے شو. هغه دَ خراسان
په لاره ملتان ته اورسیده. په حکومت ئے قبضه اوکړه. په هغه زمانه کښې خراسان
کښې چه کوم پښتنو قبائیلو قرمطی عقیده قبوله کړے وه. خصوصاً دَ لودهی قبیلے

ځنې خلقو. نو چونکه جلم ابن شیبان دَ دوئ په ملاتړ دَ ملتان دَ اهل سنة والجماعت دَ ابن مُنبّه خاندان دَ حکومت تخته اړولے وه. په دغه وجه چه کله جلم ابن شیبان مړ شو. نو دَ هغه په ځائ شیخ حمید لودهی (قرمطی) دَ ملتان بادشاه شو. وروستو دَ هغه ځوئ نصر بادشاه شو او په هغې پسې دَ هغه ځوئ ابو الفتح داؤد لودهی بادشاه شو.

دَ ټولو مؤرخینو په دے اتفاق دے. چه دَ فرقه باطنیه د دغه خصوصی شاخ قرامطه پیروکاران ملحدان وو. هم دغه وجه ده چه سلطان محمود غزنوی علیه الرحمة په سنه ۴۰۱ھ کښې دَ شیخ حمید لودهی په ښمسی ابو الفتح داؤد لودهی باندے حمله کړے وه. او دَ قرامطه طاقت ئے ختم کړے وو. دَ چانه ئے لاس او خپے پرے کړی وو څوک ئے قتل کړل. او څوک ئے قید کړل. چه په دغه قیدیانو کښې شیخ ابو الفتوح داؤد هم شامل وو. غزنی ته بندیوان ئے بوتلے وو. او ترمرګه دَ غزنی په غورک نوم مقام کښې بندیوان وو. په تاریخی اعتبار سره دَ دیو مسلمان بادشاه دَ طرف نه دَ اهل بدعت په خلاف دا اولنے جهاد کړلے شی. حضرت پیر بابا او حضرت اخوند درویزه چه بار بار کومه خبره کوله چه افسوس چه محمود بن. په زمانه څوک مسلمان بادشاه نشته دے چه دَ اهل بدعت نه زور ختم کړی. هغه ئے دَ سلطان محمود دے جهاد ته اشاره کوله. ځکه چه دَ دوئ دَ زمانے بادشاه اکبر ځپلے دَ دین اسلام په مقابله کښې یو نوے طریقه جوړ کړے وه. چه په دین الٰهی یادیږی. او دَ هغه نه روستو جهانګیر هم دَ بد قسمتئ نه دَ هغه خلقو سرپرستی کوله. چه هغه دَ وحدة الوجود قائل وو. لکه شیخ عیسی مشوانے وغیره شول. او دَ هغه چاسره ئے سختی کوله چه څوک پلخه اهل سنت والجماعت وو. لکه شیخ ابراهیم بابا ستوریانی خویشکی. شیخ احمد سرن غوږښتی او شیخ احمد سرهندی مجدد الف ثانی

علیهم الرحمة شول.

## (۱) حضرت شیخ رضی لودهی علیه الرحمة

دا حېره چه قرامطه اهل بدعت او ملحدان وو. او په هغه زمانه چه کوم دَ اهل سنت والجماعت علماء او مشائخ وو. هغوی ئې هغه شان مخالفت کولو لکه چه اخوند رویزه دَ خپلې زمانې دَ قرامطه عقیدګلرونکو اهل بدعت او ملحدانو مخالفت کولو. ددې دَ پاره (دَ شیخ نصر لودهی حکمران حکومت ملتان دَ تره دَ څوی) حضرت شیخ رضی لودهی دَ یو او ږد نظم یو څو شعرونه دلته درج کوو چه دا نظم ئې شیخ نصر لودهی ته لیږلې وو. هغه شعرونه دا دی.

دَ الحاد لورته دې تر یلل ∴ ګروه دې څموږ وکوراوه
موږ رونړکه په زیارونه ∴ تا په تورو تورا وه
لرغون ولې ګروهید لې ∴ چه دې ګوبنې اړاوه ∴
هغه ګروه دې اوس اړه کړ ∴ چه پلرو دې رونړاوه ∴
لودهی ستا په نامه سپک شو ∴ که هر څو مو درناوه
نصره! نه موئې له کماله ∴ لودهی نه ئې په کاوه
څموږ دُغاده ستاله ګروهه
دور څلوي په رغاوه

ظاهره دَه چه اګرچه سلطان محمود په سنه ۴۰۱ھ کښې دَ قرامطه دَ حکومتی طاقت ختم کړې وو. لیکن ددې فرقې دَ عقیدې او خیالاتو تخلق پدې ملک کښې پاتې وو. او چه په ژورنظر وورته او کتلې شي، دَ فرقه روښانیه په مسلک اعمالو افعالو دعوت او طریقه دَ کار کښې دَ قرامطه فرقې دومره بې شماره آثار په نظر راځي چه دَ هغې نه انکار کول ګران کار دې نو اخوند رویزه به دَ اهل بدعت او الحاد فرقو په خلاف تبلیغ دَ جهاد کولو. یو به په هغې کښې او رقه وه. او دَ پیر تاریکی نه علاوه نور ګن رداعیان ئې په دې ملک کښې موجود وو.

## (۲) دَ قدریّه. جبریّه. حلولیّه فرقې

دَ غزنوي سلطانانو نه روستو چه دَ غوري سلطانانو دور راغے. نو دوی هم دَ اهل سنت والجماعت دَ عقیدے پیروکاران وو. او دَ دوی په زمانه بے شمیره علماء او مشائخ دَ خراسان او مغربي پاکستان علاقو ته راغلي وو. لیکن دَ غوري خاندان دَ کمزورتیا په زمانه کښې دَ سابق صوبه سرحد او قبائلي علاقو په زمکه دَ قدریه. جبریه او حلولیه فرقو چه دا ټول دَ اهل بدعت او الحاد فرقے دي. دومره بے شمیره مبلغان راخواره شول. چه په خصوصیت سره دَ پښتون قوم دَ گمراه کیدلو یوه عظیمه خطره پیدا شوه دا دَ سنه ۵۶۵ھ نه ترسنه ۵۷۵ھ پورے واقعات دي. په دغه شان حالاتو کښې دَ حضرت سیدنا محمد طاهر تارن په شپږم پښت کښې نمسے حضرت سید محمود علیه الرحمة او دَ هغه پنځه ځامن میدان ته راووتل. او دَ بدعت او الحاد ددغه عظیم سیلاب مقابله ئے اوکړله.

## پنځه پیران علیهم الرحمة

حضرت سید محمود علیه الرحمة چه دَ حضرت سیدنا محمد طاهر تارن په شپږم پښت کښې نمسے وو. او دَ حضرت مولانا عبدالوهاب پنجو بابا په لسم پښت کښې نیکه وو. دے دَ ارغستان نه وادي برمل ته او بیا دَ هغه ځائ نه ولایت پاپین ته راغلي وو. دَ موجوده مغربي پاکستان علاقے ته ددے پنځه ځامن دَ دین اسلام دَ تبلیغ او دَ قدریه. جبریه او حلولیه اهل بدعت فرقو دَ ناکاره اثراتو نه دَ مسلمانانو دَ عقیدو دَ بچ کولو دَ پاره راغلي وو. دَ دوی دَ تبلیغاتو اولنی مرکز دَ پېښور ښهر جنوب مشرق طرفته دَ هزارخوانئ او بهادرکلي ترمنځه او دَ اخوند رویزه دَ مزار سره نزدے جنوب مغرب طرفته چه په کوم ځائ کښې وو. نن ورځ دَ دوی دَ عبادت او استوګنے ددغه مقام بانده زیارت جوړ دے. او هغه دَ پنځه پیرانو په مزار مشهور دے. ددے پنځه پیرانو

چیلې او عبادت ځایونه خانقاه په اکبرپوره ضلع پېښور کښې دے چه په دغه مقام باندے هم دَ پنځه پیرانو په نوم زیارت جوړ دے. دَ دوی دریم دَ چیلې. عبادت او تبلیغاتو مرکز په ضلع مردان تحصیل صوابۍ کښے وو. چه دغه مقام نن ورځ په پنج پیر کلی یادیږی - روستو دا پنځه واړه روهـ دے ملک مختلفو علاقوته لاړل. یعنے (۱) حضرت سید خواجه جو علیه الرحمة دَ ضلع پېښور رد و آبه ته لاړ. هلته پاتے شو - مزار ئے هم هلته دے. (۲) حضرت سید خواجه وجود علیه الرحمة قبا ئیلی علاقه باجوړ ته لاړ. هلته پاتے شو. مزار ئے هم هلته دے. (۳) حضرت خواجه احمد دَ ضلع مردان دَ کلپانۍ په غاړه استوګن شو - مزار ئے هم هلته دے. (۴) حضرت سید خواجه محمد دَ ضلع مردان په لنګر نوے مقام کښې استوګن شو. مزار ئے هم هلته وو. پدې وګانه دغه دریم رور حضرت خواجه احمد چه مزار مبارک ئے دَ کلپانۍ نوے خوړ په غاړه په موضع کنړ اکبن دے. دَ سلسله عالیه قادریه په بزرګانو کښې دَ اوچتے مرتبے خاوند وو. او دا علاقه دَ دوی په انوارو باندے تر دے ورځے روښانه ده. (۵) د دے پنځه پیرانو پنځم رور حضرت سید خواجه حسن علیه الرحمة وو. چه په حسن ابدال نوم باندے مشهور وو. او دَ دوی دَ نوم په مناسبت سره په ضلع کیمبل پور کښې حسن ابدال نوے یو مشهور مرکزی مقام موجود دے. دَ حضرت اخوند رویزه بابا په استادانو کښې حضرت مولانا سید مصری احمد بابا پیپی د دے پنځه پیرانو دَ خاندان یو ممتاز دینی عالم او روحانی رهنما او. دا پنځه پیران چه په کومه طریقه د دے ملک بیلو بیلو علاقو ته خوارهٔ شوی وو. دَ هغې نه معلومیږی چه د دے ملک په کوټ کوټ کښې اهل بدعت را خوارهٔ شوی وو. او دَ هغوی دَ ناکاره عقیدو دَ ناکاره اثراتو نه دَ مسلمانانو دَ بچ کولو دَ پاره دَ سادانو دغه مشائخو ملا تړلے وه. وروستو دَ هغوی اولاد دغه نیکه سلسله جاری ساتلے وه. او د دے خاندان یو ممتاز شاګرد یعنے اخوند رویزه

د دغه فريضے په سبنه شان سره سرته رسولو دَ پاره خپل ژوند وقف کړے وو. اخوند رويزه بابا وائی۔ (تذکرة الابرار ص۱۵۹) دا پنځه پيران په قام سيدان وو. سُنّی مذهبه وو. عالمان وو. او دَ کمال خاوندان وو. په دے ملک کښې چه دَ دوئ دَ پنځه واړه خاندانونو هر څو مره سيدان تر ننه ورځے پاتے دی. هغه هم تړول اهل سنت والجماعت دی. دد غه پنځه پيرانو ساداتو په برکت دَ اهل هوا او اهل بدعت زور تر يوه حده کم شوے وو.

## دَ ساداتِ بخاری تبليغی دور

ليکن دا سے معلوميږی. چه دَ پنځه پيرانو او دَ هغوئ دَ خليفه گانو نه پس تو په دے علاقه کښې بيا دَ قدريه. جبريه. حلوليه عقيده لرونکو گمراه پيرانو او ملحدانو دوردوران راغلے وو. دَ مثال په طور دَ اخوند رويزه دَ روايت (ص۱۵۹ وص۱۶۰) نه معلوميږی چه حلوليه او اباحيه عقيده لرونکی يو گمراه پير چه دَ هغه شهباز قلندر نوم وو. دَ موجوده ضلع مردان دَ تيه امازی علاقے ته راغلے وو. او دد ے علاقے خلق يے تر دے حده لغزولی وو. چه دَ حضرت خواجه سيد محمود تارن بخاری عليه الرحمة مزار مبارک يے وران کړے وو. دَ هغوئ لاش يے تر پينه او کښلے وو. بل ځائ يے دفن کړے وو. دَ هغوئ دَ مزار احاطے يے دَ شرابو، کبابو او ډول سرنا غر. ولو حجره کړے وه. او دا وصيت يے کړے وو. چه زه مړ شم. نو په دے مقام به ځما قبر جوړ کړی. چنانچه روستو هر کله دے دَ هزارے دَ تناولی قوم دَ لاسه او وژلے شو. نو خپلو مريدانو هم په هغه دَ سيد خواجه محمود په قبر کښې ښخ کړ. اونن ورځے دده په نوم باندے دد غه اديرے خواته جوړ شوے کلے په شهباز گړهئ ياديږی. چه دَ مردان او صوابئ په سړک لوئ مشهور مقام دے. دا تړول دَ سنه ۱۰۰۰ھ دَ آخری ورځو واقعات دی.

په دغه زمانه په وادئ پيښور دَ دلازاک قبيلے قبضه وه. دَ شهباز قلندر او دد ے نمونے نورو بے شميره گمراه او ملحدانو په وجه چه دد ے قام

عقیدے تردے حد لا خرابے شولے. چہ لمونځ، روژه او دَ اسلام ټول احکام او ارکان ختم شول. نو بیا دے باندے دَ هغه وخت دَ ټولو اهل سنت والجماعت علماء او مشائخو توجه دے طرف ته را او کرځیدله. ځکه چه دَ یو لوئ روحانی پیشوا حضرت خواجه سید محمودؒ دَ مزار مبارک په دا سے شرمناکه طریقه سره بے حرمتی پیره لو یه حادثه وه. چه دَ یو قوم عقیده دا سے حد ته او رسیږی چه دَ خاندان نبوت او رسالت دَ بزرګانو سیدانو دَ قبرو نو بے حرمتی کولو ته هم جوړ شی. نو دا یقیناً چه معمولی واقعه نه ده. او په دے باندے په ټولو علماء و مشائخو کښ بے آرامی پیدا کیدل یوه قدرتی خبره وه.

دلازاک قبیله چه په دغه زمانه په وادئ پیښور کښ آباده وه. دا قبیله په نسب باندے دَ پښتنو دَ غور غشتی قوم یو شاخ دے. چنانچه په دغه پورتنئ واقعه باندے دَ کوه سلیمان دَ شهر علی نومے مقام مشهور بزرګ حضرت خواجه یحیٰ کبیر غورغشتی علیه الرحمة را ولاړ شو. خپل پیر طریقت یعنے حضرت شیخ المشائخ خواجه سید جلال الدین حسین بخاری الملقب په مخدوم جهانیان جهان ګشت علیه الرحمة ئے را او غوښتلو. هغوئ تشریف راوړ. او دَ سابق صوبه سرحد او قبائیلی علاقو په او ره مشهورو مقاماتو او علاقو کښ لکه. هشنغر. مردان. صوابئ. سوات. دیر. هزاره. پیښور. کرم وغیره کښ ئے دَ پښتنو دَ بیلو بیلو قبیلو په علاقو کښ دَ اهل بدعت او الحاد دَ ګمراه پیرانو او دَ هغوئ دَ ناکاره تعلیماتو په خلاف کوشش نه او کړل. او مسلمانان ئے سمے لارے ته را واړه ول.

په تاریخی اعتبار سره دا دَ سنه ۷۵۰ھ نه تر سنه ۷۸۵ھ دَ منځ زمانے واقعات دی. په سنه ۷۸۵ھ کښ دَ مخدوم جهانیان دَ وفات او په سنه ۸۳۳ھ کښ دَ خواجه یحیٰ کبیر غورغشتی دَ وفات نه روستو دَ دوئ مریدانو او خلیفه ګانو دا سلسله جاری ساتلے وه. لیکن دَ ګمراه پیرانو او ملحدانو زور بالکل ختم

شوے نه وو. اوَ حق اوَ باطل دا معرکه دَ اخوندر ویزه تر زمانے پورے
هم دغه شان را روانه ده.

چونکه حضرت اخوندر ویزه په سلسله عالیه سهرورديه کښې
هم د دغه حضرت مخدوم جهانیان سید جلال الدین حسین بخاری مریدانو
په سلسله کښې وو. (حضرت اخوندر ویزه له حضرت پیر بابا له حضرت سالار
رومی له حضرت شیخ نظام الدین مهاجری له حضرت شیخ قطب الدین مهاجری
له حضرت شیخ فخر الدین مجبولی له حضرت شیخ مخدوم جهانیان)

په دے وجه حضرت مخدوم جهانیان چه دَ تبلیغ او اشاعت کومه سلسله
شروع کړے وه. هغه حضرت اخوندر ویزه برقراره اوساتله. او په دے علاقو
کښې چه دَ مخدوم جهانیان په زمانه کښې کوم گمراه پیران وو. لکه شهباز قلندر
وغیره او د دغه گمراه پیرانو نه چه کومه سلسله دَ ....... الحاد. اباحت
او حلول او جبر په عقیده لرونکو پیر و کارانو پاتے وه حضرت اخوندر ویزه
علیه الرحمة دَ هغوئ ټولو په خلاف جهاد ونه اوکړل.

(۳) دَ وجودیه اباحیه فرقو دور

دَ وجودیه او اباحیه فرقو دَ غلطو عقیدو په افکارو او خیالاتو باندے دَ پوهیدلو
دَ پاره مونږ له دَ حضرت پیر بابا علیه الرحمة هغه نصیحت او وصیت را یادول پکار
دی چه څه وخت اخوندر ویزه له ئے خلافت ورکړ او په دغه موقع ئے هغه
ته کړے وو. حضرت پیر بابا فرمائی:-

اے اخوندر ویزه! دَ علم تصوف په طلب کښې پوره پوره جد و جهد
اوکړه. چه دَ شریعت محمدی مطابق دَ عرفان مرتبه و رته حاصله شی. او
ورسره دَ نور و مؤمنانو سره او زنانه وُ ایمان دَ زوال نه بچ کړے شی. او کمزورے
عقیدے لرونکی مسلمانان دَ تشبیه او تعطیل نه په امان کړے شی. ځکه چه
نن ورځ اکثر اهل هوا پیران چه په علم توحید کښې کوم غورا و فکر کوی.

چونکه دوئ دده علم دضروري شرائطو او اصولو لحاظ نه ساتي په دغه وجه نتيجه يئ داشوے ده. چه دوئ د اشاراتو او عبارتونو دے علم نه بے خبره پاتے شوي دي. او په معرفت د الله تعالیٰ کښې چه د هغه ذات بېچون او بیچگون دے. لاره ئے غلطه کړے ده. او حد د کفر او الحاد ته رسيدلي دي. کفرئے دا دے چه د ننن زمانے (۱) بعض گمراه پيران د خدائي دجسم او صورت قائل دي. د مثال په طور ملا مير و ميان خان خدرزائے. يار احمد خان وغيره د صورت او جسم قائل وو. د دوئ وينا دا وه. چه خداي په تخت ناست دے. د عرش د پاسه فرش دے. بيا په هغې کانړې دي. او د هغې کانړې د پاسه تخت پروت دے. په هغې تخت ميمه راتاوده. چه د هغې او يا زره دروازے دي. خداي په هغې کښې ناست دي. مگر ملايان او عالمان ترينه بے خبره دي. (نعوذ بالله)

(۲) بعض نفسونه او ارواح خدايان گڼړي. بعض کل اشياء د خداي پاک عين وجود او ذات گڼړي. بعض خدائي په مخلوق کښې او خلق په خدائي کښې محوه گڼړي. بعض د خداي پاک د مثل او مثال قائل وو. (لکه ملا عمر شلمانے. ملا رکن الدين. ملا رحمت الله. ملا نعمت الله. ملا فيض الله. ملا بايزيد. ملا عبد الرحمان وغيره شول.)

(۳) بعض د تناسخ او حلول قائل دي. د خدائي مثال په مخلوق کښې داسے گڼړي. لکه په کياه کښې چه د نم مثال دے. بعض خدائي پاک ذره ذره کيدونکے او په ټول عالم کښې خور گڼړي (لکه شيخ يوسف مامونزے. ملا تاني او ملا عبيد مامونزے) چه دا ټولے خبرے د همه اوست. حلول، اتحاد، له قسم نه د الحاد نه ډکے خبرې دي. دے فرقے ته وجوديه په دے اعتبار وئيلے شي چه په يو نه يو شکل کښې د خدائي د جسم او وجود قائل دي. او د حضرت پير بابا د ارشاد مطابق اخوند درويزه بابا د دے نمونے گمراه پيرانو مقابله کړله.

(۴) د اباحيه فرقے گمراه پيران

دَاخوند رویزه په زمانه کښې دَ اباحیه فرقې دَ گمراه پیرانو زیات زور وو.
ددې فرقې گنړ قسم داعیان او مبلّغان وو چه خلق یې دَ اسلام دَ صحیح لارې
نه گمراه کول.

---

الف — دَ یوې فرقې نوم حیدریه او قلندریه وو. دا پیره پخوانۍ فرقه وه.
بنیادي طور دَ قرامطه او زنادقه فرقې شاخ وو. ابتدا یې دَ سنه ۳۰۰ هـ
نه شوې وه. بیا روستو دَ کتاب "مجموعه ملکي" دَ تفصیل مطابق په سنه ۶۰۰ هـ
کښې په خراسان کښې ددې فرقې گنړ داعیان او مبلغان پیدا شوي وو. دَ دوی
دَ مشر نوم حیدر وو. دَ ترکستان او سید ونکي وو. دَ هغه په نوم دا فرقه
په حیدریه نوم مشهوره شوې وه. دَ دوی یوه مشهوره مصرعه ده (هیدیم
قلندرم مستم) نخښه یې داده چه په لاسونو او ښپو کښې یې زنځیر ونه اچولي
وي. ځیې ابله. سرتو رسر گرځي. قمیص پرتوک نه اغوندي. یوه پښمینه
شړکۍ یې دَ ځان نه تاوکړې وي. نمونځ او دس یلغسل نه کوي. زنا او لواطت
جائز گنړي. ډول رباب. سُرنا وهل یې کسب وي. دَ عالمانو دشمني کوي.
وائي دَ مارلرم سره کښینا ستل ښه دي. او دَ عالم سره ښه نه دي. وائي
عبادت ته حاجت نشته. زړه صفا پکار دې. وائي شریعت حجاب دې. دَ طریقت
مقام ته دغه سړې رسیدلې شي چه شریعت پریږدي. او بیا چه طریقت
هم پریږدي نو هاله دَ معرفت مقام ته رسیدلې شي. حالانکه دا ښکاره
خبره ده. چه هرهغه څوک چه دَ شریعت اسلام نه لاس واخلي هغه ته
کافر ویلې شي. لکه چه وړاندې ذکر اوشو. دا فرقه په حقیقت کښې دَ فرقه زنادقه
یو شاخ دې. ددې فرقې لویه نخښه داده چه دوی دَ ظاهري شریعت دَ احکامو
لکه نمونځ، روژه، حج، زکوٰة، پاکي، پاکیزگي هرڅه نه انکار کوي. او اباحیه ورته
ځکه وائي. چه دوی دَ شریعت اسلام ټول حرام په ځان حلال گنړي.
مباح یې گنړي. دوی وائي.

اَنَّ العبد اذ ابلغ المحبة وصفا قلبه و اختار الدين على الكفر من غير نفاقٍ سقط عنه الامر والنهي ولا يدخله الله بارتكاب الكبائر النار۔ وسيقط عنه العبادة الظاهرة ويكون عبادته التفكر۔ وقد تبيّن انّ هذا كله كفر وضلالٌ (تمهيد الى شكور سالمى)

ب — ددے اباحيه فرقے دوېم شاخ جبريّه دے. ددے عقيدے خرابوالے دا دے چه ځان دَ قضا او قدر په وړاندے مجبور محض گنړى. او په دَ ښان دَ ثواب او عقاب نه انكار كوى. دوئ وائ هرڅو مره اعمال او افعال چه دَ بنده نه صادريږى كه هغه ښه وى كه بد هر كله چه دا هر څه دَ خدائ په حكم او اراده كيږى. او دَ بنده په كښ هيڅ اختيار نشته دے. نو ځكه په هر قسم گناهونو كولو كښ هيڅ عذاب نشته دے. نتيجه ئے دا ده چه ددے عقيدے خلق هر گناه مباح گنړى. دَ ثواب او عذاب، دوزخ او جنت هر څه نه انكار كوى. ظاهره ده چه دا ټولے دَ كفر خبرے دى. دَ اخوند درويزه بابا دَ قول مطابق

دَ اخوند درويزه په زمانه كښ شيخ فتح خان مامون زائے، شيخ حاجى عمر غورى خيل........ پير طيب غلزائے، ملا ولى بريڅ، پير سالاك مهتك پير سرمست، كريمداد غورغښتى، جلال الدين كلال، شيخ الياس، شيخ ابراهيم، ميران شاه صوائے، شيخ ميرداد خليل، شيخ جليل روغانے او شيخ حاجى محمد وغيره دَ پورته عقيدے لرونكو گمراه پيران وو چه اخون درويزه عليه الرحمة دَ هغوئ دَ غلطو عقيدو په مقابله كښ دَ دين اسلام مدافعت كولو۔

## (۴) دَ روښانيه، حلوليه، باطنيه فرقو دور

دَ اخوند درويزه په زمانه كښ دَ ټولو نه زيات زور دَ روښانيه فرقے وو. ددے فرقے مشر بايزيد انصارى اُرمړ وو. چه روستو په پير تاريك او پير روښان دواړو لقبونو سره مشهور شوے دے. دَ عقيدے په لحاظ چه دَ پير روښان گوم افكار او خيالات او اعمال و افعال وو. هغه دَ حلوليه

اباحیه او دَ قرامطه دَ باطنیه فرقے هغه اعمال او افعال او معتقدات وو. چه هغه په صراحت او یقین سره دَ شریعت اسلام دَ واضحه احکامو او هدایاتو خلاف وو. دَ پیر روښان دَ معتقداتو په حقله چه دَ اخوند درویزه په درے کتابونو (۱) ارشاد المریدین (۲) تذکرة الابرار و الاشرار (۳) مخزن الاسلام کښې په کوم تفصیل سره بحث شوید ے دَ پیر روښان پخپلو تالیفاتو (۱) مقصود المؤمنین (۲) حالنامه (۳) خیر البیان کښې او دَ پیر روښان دَ مریدانو لکه علی محمد مخلص، محمد عزیز ارزانی، دولت خان لوانړے، مرزا خان انصاری په کتابونو کښې هم لفظ په لفظ هغه خبرے درج دی. دَ کوم خبر و نسبت چه اخوند درویزه دوی ته کړے دے. یعنے د دے روښانیه فرقے دَ عقیدے په حقله دَ اخوند درویزه ټول بیانونه رښتیا معلومیږی. دَ روښانیه فرقے دَ عقیدے خلاصه دا ده، چه د دے فرقے دَ معتقداتو، اعمالو، افعالو ټول دار و مدار په عقلی دلائلو او وهمی الهاماتو دے. دا سے الهامات او واردات چه هغه دَ اسلام دَ منلو شوو اصولو نه صراحتاً خلاف وُو. د دے فرقے پیر و کارانو دَ شریعت اسلام دَ نقلیاتو یعنے نص القرآن او حدیث پیر وی نه کوله. او که چرته کیر به شول نو دَ باطنیه فرقے دَ مخصوص حکمت عملئ، چه هغے ته تقیه وائی. دَ ځان دَ بچ کولو دَ پاره به ئے په خله باندے وقتی طور دَ اسلام دَ احکامو منلو اقرار هم کولو. لیکن ورسره ورسره دَ اسلامی احکامو دا سے تاویلونه به ئے کول چه هغه دَ اهل السنت والجماعت او اجماع دَ مسلمانانو دَ تعبیر او تفسیر نه به خلاف وو. د دے طریقے دَ کار نتیجه دا وه چه روښانیه مسلک دَ معتقداتو او اعمالو افعالو په لحاظ سره دَ ملحدیه، اباحیه او باطنیه فرقو دَ معتقداتو مسلک وو. چه په اتفاق دَ علماء اسلام دغه مسلک دَ ګمراهئ مسلک ګڼړے شو. دَ روښانیه فرقے عقیده دا وه چه کل اشیاء ته به ئے خدائی ویلو. او مخلوقات صورکی هر څو مره

چه دی. دیته به ئې کله دَ خدائ ذات وئیلے او کله به ئې ورته دَ خدائ صفات وئیل.
او دے خپلے مدعا دَ ثبوت دَ پاره به ئې دَ قرآن په آیتونو کښې تحریف هم کولو دَ
مثال په طور آیت دے. اِنَّ اللهَ عَلیٰ کُلِّ شَیْءٍ مُّحِیْطٌ. او دوئ به دا آیت داسے
لوستلو "اِنَّ اللهَ مَعَ کُلِّ شَیْءٍ مُّحِیْطٌ" یعنے دَ لفظ "علیٰ" په ځائ به ئې "مع"
لوستلو. او دوی نه به ئې دَ خدائ او بنده یو والے او عین ذات کیدل مراد کول.
دَ دوئ بل دلیل دا و چه دَ خدائ مثال دَ دریاب دے او بنده په مثال دَ مهی دے.
مهی چه په دریاب کښې هر خوا ته مخ کړی هغه هغه خوا ته متوجه وی. دغه شان
بنده هم که هر خوا ته مخ کړی هغه ته خدائ وی. آیت شریف دے. اَیْنَمَا تُوَلُّوْا
فَثَمَّ وَجْهُ اللهِ نو بیا په نمانځه کښې قبلے ته مخ کړل نه دی پکار، چه کوم
خوا دَ سړی خوښه وی هغه طرف ته دے مخ کوی. په دے پسے پیر روښان په
حالنامه کښې وائی چه "هر کله بنده عین ذات دَ خدائ دے. نو بیا نمونځ کول
او خدائ ته سجده کول خو داسے مثال دے. لکه سړے چه خپل ځان ته سجده
کوی. چونکه دا دے نه شرک لازمیږی. په دے وجه نمونځ کول ئې پریښودل (حالنامه)

دَ فرقه روښانیه چه کوم معتقدات وو او اخوند درویزه په کومو
دلائلو دَ هغې تردید کړے دے. دغه ټول بحثونه په پوره تفصیل سره ما په خپل دویم
کتاب "اخوند درویزه" کښې بیان کړی دی. هلته دے ملاحظه کړے شی. دلته دَ
نمونے په طور دَ پیر روښان دَ یو دوه مشهور و مریدانو علی محمد مخلص او محمد
عزیز ارزانی یو څو شعرونه را نقل کوو چه دَ هغې نه دَ پیر روښان دَ مخصوصے
عقیدے اندازه لګول آسان شی. علی محمد مخلص وائی

په لطیف کښې الطف کوره :: که دے فتح دَ زړه باب دے
دا الطف دَ حق هستی شوه :: پرے بینا عارف ارباب دے
هم پکښې هم ترِ چاپیره :: دے ماهی هستی ئې آب دے
ماهی هر لور ته چه کړځی :: وا و بو ته ئې مآب دے

سړے هر لور ته چه ګرځی ؛ پر غه لور دَ حق جناب دے

والي ؛-

دغه جزؤ به یې کل شی په یقین کښں ؛ چه مشغول دَ کل به ذکر شی مدام

داوحدت مثال اؤبه کثرت پرِ بحث ؛ دغه بحث به څور نګه به څونام

داوحدت په مثال بیخ کثرت سبا خونه ؛ دَیوه میوه بحث دَ بل خوخام

محمد عزیز ارزانی والیُ :-

مولیٰ پټه خزینه ده ؛ دے مشغول په خپل وجوده

چه محبت یې غالی شه ؛ خلقې یې کړے موجوده

دَ کثرت پر میدان راغے ؛ پټ دے یو، څرګنده دوده ؛

دَ عنصر لباس یې واغوست ؛ که مسلم او که هندو ده ؛

دَ بندګی نامه یې کشیشوه ؛ خودَ ساجد او خود مسجوده

یو آواز دے چه یې آوری ؛ هم له چنګه هم له عوده ؛

که فکر ورته او کړلے شی نو بېے اشعار و کښں چه څه وئیلی شوی

دی دا په صراحت سره دَ اسلام خلاف خبرے دی۔

دَ اخوند رویزه په زمانه چه هر څو مره داسے پیران وو۔ چه دَ عقیدے

په لحاظ دَ اهل سنت والجماعت دَ عام مسلک نه خلاف وو۔ او ده دَ هغوئ

په خلاف تبلیغ او جد وجهد کړے دے په هغو کښں دَ پیر روښان

بایزید انصاری دَ مسلک مخالفانه کوششونه یې زیات شهرت حاصل

شوے دے۔ په دے کتاب کښں اګرچه اخوند رویزهٔ بالکل په حقه وو۔ او ده

تبلیغ ټول دَ اسلام دَ مدافعت له پاره وو۔ لیکن څنے نور داسے عوامل او

خبرے منځ ته راغلے دے چه دَ هغے په وجه نن و رځ بعض خلق دَ اخوند رویزهٔ

او دَ هغه دَ پیر طریقت حضرت پیر بابا علیه الرحمة دغه دینی خدمتو نو

ته خالص په دینی نقطهٔ نظر سره نه ګوری۔ بلکه په دے وجه چه بایزید انصاری

پښتون وو۔ او په مقابل کښې اخوند رويزه او پير بابا د واړه پښتانه وو۔ او
بل خوا ته بايزيد انصاري د هغه زمانے د مغل حکمرانانو په خلاف سياسي
جدوجهد کولو۔ نو دا بعض خلق دا خيال کوي۔ چه که اخوند رويزه د بايزيد
انصاري مخالفت نه وے کړے نو بايزيد به د مغلو په مقابل کښې د پښتنو د
خود مختاره حکومت جوړولو په مهم کښې کامياب شوے وے۔ او هم په دے
خيال نن ورځ بعض خلق د اخوند رويزه په حقله نامناسب الفاظ هم استعمالوي.
ليکن دا خلق دا حقيقت په نظر کښې نه ساتي۔ چه د يو حقيقت پرست او رباني
عالم په مخکښې دا سوال نه وي چه دا يو سړے چه د شريعت اسلام د اصولو
خلاف ورزي کوي دے په قام څوک دے؟ بلکه د هغه په ناکاره عمل تنقيد
کوي۔ او هغه چه د بدعت او ګمراهئ کوم کارونه کوي د هغې مخالفت کوي. او د دے
غنے مثال هغه د شيخ رضي لودهي عليه الرحمة دے چه موبزه مخکښې بيان
کړے اګو چه شيخ رضي او شيخ نصر ابن حميد دواړه په قام لودهيان وو۔ او
شيخ نصر د ملتان بادشاه شوے هم وو۔ ليکن هر کله چه شيخ نصر قرمطي عقيده
قبوله کړے وه. نو شيخ رضي ورته وائي چه" اے نصره! هر کله چه تا د الحاد
لورته تر پلي نو اوس ته ځمونږ د خاندان د پاره د شرم باعث يې. ځکه چه کوم
دين اسلام موبزه او ځمونږ پلرونو روښانه کړے وو۔ تا هغه تورا وخړ کړو"
د غه مثال د بايزيد روښان هم دے. که فکر او کړو د بايزيد روښان په
اومه پيړئ کښې نيکه حضرت شيخ ابراهيم دانشمند عليه الرحمة د حضرت شيخ
شهاب الدين سهروردي مريد وو۔ د شيخ ابراهيم ځوئ شيخ سراج الدين
هم د حضرت شيخ بهاء الدين ذکريا ملتاني مريد وو۔ د بايزيد انصاري پخپل
پلار شيخ عبد الله دانشمند د سهرورديه طريقے شيخ او د سلطان ابراهيم لودهي
قاضي القضاة وو۔ بل خوا ته اخوند رويزه هم په سهرورديه طريقه کښې د
شيخ بهاء الدين ملتاني مريد وو۔ دا ټولے خبرے حقے دي۔ ليکن هر کله

چه دَ بایزید پلرونه او نیکونه او دَهغوئ دَ سلسلے ټول پیران حنفی مذهبه اهل السنت والجماعت وو. او بایزید دغه دَ اسلام صحیح مسلک پر پیښودۀ. او خپل پلار هم په هغے ترینه ناراضه شو. نوکه اخوند درویزۀ ئے مخالفت کولو نو دغه دینی تعصب گنړلے شو. سیاسی مصلحت او تعصب ئے نه شو گنړلے. او نه گنړل پکاردی. بلکه دا به او وایو چه اخوند درویزۀ به دَ نورو ټولو بدعتی پیرانو په مقابله کښې دَ بایزید انصاری مخالفت کول زیات لازمی وو. ځکه چه بایزید دَ یو داسے لوئ روحانی کورنۍ فرد وو. چه دَ هغے روحانی سرچشمه دَ حضرت شیخ الشیوخ شهاب الدین سهروردی فیوضات وو. دَ حضرت شیخ شهاب الدین سهروردی په کتاب عوارف کښې صفا ارشاد دے. اَجْمَعَ العلماء فی حرمة الغناء وبالغوافیه. ان الغناء حرّمه ابوحنیفه واهل العراق وحَرَّمه الشافعی وهو المشهور من مذهب المالک والامام ابن حنبل وسُئِلَ (اے الامام احمد) عن الغناء قال هو مُحْدَثٌ اکرهته (اے حرّمته) قیل (للامام احمد) انه یَرِّق علیه القلب. فقال (احمد) لاتجالسوا معهم لانهم المجرمون. قال تعالیٰ اِنّهٗ لایُفلح المجرمون، فتَبَیَّنَ انه بدعةٌ. دد ے تفصیل په رڼا کښې انصاف پکار دے. چه هر کله هم دغه شهاب الدین سهروردی دَ مریدانو په کورنۍ کښې بایزید انصاری راپورته کیږی او دَ پیرۍ مریدۍ یوه داسے سلسله بناء کوی چه په هغے کښې بنځے او نرګډ وهکښینولے شی. رقص او سرود کولے شی نوکه هم دغه شهاب الدین سهروردی په مریدانو کښې اخوند درویزۀ راپورته شی او بایزید انصاری ته د دغه بدعتونو او حرامو کارونو په کولو مجرم، بدعتی او گمراه او وائی. نو دا خو یو خالصه دینی مسئله ده. د دے سره دَ پښتون او غیر پښتون دَ قیصو ملګر و کولو کوم جواز دے؟ په دے وجه هم دا به وایو چه په دے سلسله کښې اخوند درویزۀ په حقه وو. او زیاتے دَ بایزید انصاری وو چه دَ اهل سنت والجماعة

دَ صحیح احادیثو په خلاف ئې لاره اختیار کړې وه. او ددې غلطئ په وجه دَ هغه سیاسی مقاصدو ته هم نقصان اورسیدلو. بهرحال دا یو جدا بحث دے. پوره تفصیل غواړی. او موږ پوره په شرح او بسط سره په خپل کتاب" اخوند درویزه" کښې پرے رڼا اچولے ده.

## دَ اخوند درویزه تالیفات

اخوند درویزه دَ علم دَ توسیع او دَ خلقو په زړونو کښې دَ علم سره دَ مینے او محبت پیدا کولو دَ پاره ډیر کوششونه کړیدی. او په هغه خلقو ئے سخته نکته چینی کړے ده. چه چا به علم ته حجاب اکبر وئیلو. فرمائی که ددے خلقو دا قول صحیح وے. نو نبی علیه السلام به دا دعا نه کولے. چه رَبِّ زِدْنِي عِلْمًا. چنانچه ددے غرض دَ پاره دوئ په پښتو او فارسئ دواړو ژبو کښې کښې کتابونه لیکلی دی. لکه چه مخکښې ورته هم اشاره شویده.

| ۱ | دَ دوئ یو تالیف" ارشاد الطالبین" دے. ژبه ئے فارسی ده. تقریباً دَ پنځه نیم سوه صفحو کتاب دے. پدے کښې څلور بابونه او یوه خاتمه ده. |
|---|---|

په اول باب کښې څلور فصلونه دی. (۱) فصل توحید (۲) ایمان (۳) او دس (۴) لمونځ. په دویم باب کښې هم څلور فصلونه دی. (۱) فصل توبه (۲) دَ پیر کامل [illegible]) دَ علم فضیلت (۴) دَ ذکر الٰهی بیان. په دریم باب کښې دا بحثونه دی. سیر سلوک. سیر من الله. سیر فی الله. سیر مع الله. څلورم باب بیا په څلورو فصلونو مشتمل دے. (۱) اخلاق حمیده. (۲) اخلاق ذمیمه (۳) صبر (۴) شکر. دَ کتاب خاتمه په درے فصلونو مشتمله ده (۱) دَ قیامت علامات (۲) کیفیت دَ حشر او نشر (۳) پدے کښې مختلف مسائل دی. دے کتاب ته دَ اخوند درویزه په زوئ کښې دَ هغه نامور زوئ میاں کریمداد ترتیب ورکړیدے. او دَ برصغیر پاک و هند په مختلفو چاپ خانو دهلی، لاهور، پیښور کښې ډیر ډیر ځله چاپ شویدے او دَ خراسان دَ عالمانو منلے شوے کتاب دے.

۲ دَ اخوند رویزه دوېم کتاب "ارشاد المریدین" دے دا کتاب په ۱۲۸۴ھ کښې په مطبعه مصطفائی پېښور ښهر کښې چاپ شوېدے. د دغې نه وړاندے په ۱۲۷۲ھ کښې په دهلی کښې هم چاپ شوېدے. دے کتاب له هم دَ اخوند رویزه ځوئ میاں کریمداد دَ خپل پلار په ژوند ترتیب ورکړېدے. میاں کریمداد لیکی چه ځما دَ پلار دا شپږم کتاب دے چه زۀ ئې تصحیح کوم او ترتیب ورله ورکوم. ژبه ئې فارسی ده. او لکه چه مخکښې هم ورته اشاره شوېده. دا کتاب په حقیقت کښې دَ مشهور کتاب "جام جهان نما" دَ مطالبو آزادانه شرح ده. چه دَ شیخ شهاب الدین سهروردی دَ کتاب عوارف دَ شیخ کمال الدین کتاب "الاشراق" او مولانا عبد الرحمن دَ کتاب "لوائح" مطالب ئې دَ خپل پیر طریقت حضرت پیر بابا دَ فیوضاتو او ارشاداتو په رڼا کښې مرتب کړیدی. د ایو قسم له دَ تصوفی مسالکو او مطالبو دَ پوهې دَ پاره تنقیدی کتاب دے. د دے کتاب په دیباچه کښې فرمائی دا کتاب م په دے غرض او لیکه چه پیران او مریدان ټول صحیح طریقه اختیار کړی. دَ ملاحدۀ او اهل بدعت په لاره لاړ نه شی. او دا ورته معلومه شی چه دَ مشائخو دَ طریقے حصول څرنګ کیدلے شی. او غرض ئے څه شلدے.

دا کتاب په یوه مقدمه. او ۷ نکتو او یوه خاتمه باندے مشتمل دے. په مقدمه کښې دَ مریدانو دَ پاره دَ فیض حاصلولو دَ طریقو بیان دے. په دے کښې دَ هغه مخوانو بزرګانو پیرانو طریقے بیان شوے دی. چه ترنن ورځے زرګونه او لکونه خلق ترینه فائده اخلی. بیا په اولنئ نکته کښې د دے بیان دے. چه دَ طریقت دَ حصول دَ پاره دَ شریعت فرمانبرداری او مکمله پیروی ضروری ده. په دوېمه نکته کښې هغه فوائد بیان شویدی چه د دے اولنئ نکتے په وجه حاصلیږی. په دریمه نکته کښې د دے بیان دے. چه اهل طریقت چه دا کوم نومونه لکه. پیر. شیخ. صوفی. درویش. مرید وغیره استعمالوی د دے استنباط دَ کوم ځائ نه کیږی او شویدے. په څلورم نکته کښې دَ پیر دَ مرتبے

او دَ پیر دَ حصول دَ شرائطو بیان دے. پہ پنځمه نکته کښې دَ ایمان راوړلو بیان دے. پہ شپږمه نکته کښې دَ بعضې اذکارو بیان دے. او مه نکته دَ نمانځه پہ بیان کښې ده. خاتمه دَ طریقت سره دَ تعلق لرونکو نورو مسائلو پہ بیان کښې ده. دا کتاب پہ علم تصوف کښې یو بهترین تحقیقي او تنقیدي کتاب دے. خصوصًا د دے کتاب پہ مقدمه کښې دَ خدای پاک دَ توحید پہ موضوع او دَ اهلِ سلوک دَ سیر او عروج او دَ تنزّلاتو پہ باب ډیر بهترین تفصیلات درج دی. دَ تنزّلاتو دا حصه یې خالص علمي ده. پہ کتاب جام جهان نما کښې چه دَ عرفان او طریقت او سلوک دَ تنزّلاتو او عروج دَ پوهه کولو دَ پاره کوم اشکال او نقشے درج کړے شوي دي. او دَ یونان پہ فلسفه کښې چه دَ تنزّلاتو کوم تصور دے. پدغه موضوع دَ ارشاد المریدین بحثونه دَ ملاحظه کولو دي.

دا کتاب دَ تصوف پہ موضوع تحقیقي او تنقیدي پہ دے لحاظ دے. چه پہ دے کښې دَ صحیح او غلطو پیرانو دَ پیژندلو دَ پاره ډیر مفید او ضروري معلومات بیان شوي دي. او پہ دے باندے زور ورکړے شوے دے. چه هر هغه پیر چه پہ سنت نبوي باندے عمل نه لري. دَ علم تفسیر، حدیث او فقه نه نا خبره وي. هرګز هرګز هغه پیر کتړل نه دي پکار. فرمائي:-

## دَ اخوند درویزه اقوال

(۱) دَ مسلمانانو پہ منځ کښې دَ اختلافاتو پیدا کیدلو، دَ عوامو دَ ګمراه کیدلو او دَ خدائې پہ قهر او غضب اخته کیدلو. اصلي باعث بدعتیان او ګمراه پیران دي. چه غلطے دعوے او بدعتي طریقے پہ خلقو کښې رائج کړي. د دے فقط یو علاج دے چه دَ پخوانو نیکانو او صحیح العقیده مسلمانانو بزرګانو پیروي اختیار کړے شي. او هر هغه کار چه دَ قرآن او حدیث نه خلاف وي دَ هغې نه توبه او کښلے شي.

(۲) که یو سړے دَ خلقو پہ نظر کښې ډیر لوئې سړے او ډیر لوئې بزرګ وي. لیکن چه دَ شریعت محمدي نه یوه ذره هم قدم چپ کیږدي. او پہ دین کښې خود سري

او مطلق العنانی اختیار کړی. د داسے مطلق العنان او بے واکو پیر په لاس کښې لاس مه ورکوی.

(۳) تن ور ځے د پیرۍ مریدۍ داروزګار د دکانداری او خپلونا کارو اغراضو پوره کولو. او د خلقو نه د مالونو راغونډولو او لو. خزانو جمعه کولو. خپلے خیټے ښه ولو د پاره ذریعه ګرځیدلے ده. او پیرو ګمراه پیرانو د پیرۍ مریدۍ روزګار ته د یو داسے بدعت شکل ورکړے دے. د خدائ په مخلوق ئے ګمراهئ

د بنا غلی شیخ محمد اکرام خبره. اخوند درویزه یو زبردست اهل قلم (مؤلف) مصنف، ادیب وو. لیکن د دوئ اصلی مرتبه د مصلح او مجدد ده.

دوئ نه صرف د میاں بایزید انصاری د مطلق العنانۍ د خپل حمیت اسلامی او مضبوط علمی خدماتو په ذریعه مقابله او کړه. بلکه د اسلام د بنیادی عقایدو خلاف چه چرته هم څه څیز به ئے په نظر راغلو او تر ینه خبر به شو د هغے مخالفت به ئے کولو"..... تر دے حده چه خپل پیر طریقت یعنی پیر بابا چه چشتیه طریقه ئے لرله او د دغے طریقے د مسلک په وجه د اخون درویزه په قول "د سماع بلا مزا میر شنیدے" د ساز او سرود تنګ او ټکور نه په غیر تشه په خوش آوازۍ سره قوالی به ئے آوریدله. هغه ئے هم په پیر بابا بنده کړے وه. د کتاب اخبار الاولیاء روایت دے. چه پیر بابا په خپل ژوند کښے بیا دغه تشه قوالی نه آوریدله".

دا تفصیل چه شیخ محمد اکرام بیان کړیدے د دے نه اندازه لګیدلے شی چه اخوند رویزه هر کله د امر معروف په سلسله کښې د خپل پیر هم لحاظ نکوی. نو د نورو چا په ئے څه لحاظ کولو او د اتولے خبرے د ده په زبردست قوت ایمانی او د میاں کریمداد د قول مطابق د ده په دینی تعصب دلالت کوی.

او هم په دغه وجه د حاجی عبد الله کوهاټی غوندے ولی الله علیه الرحمة ورته "د مذهب اسلام رنړا، د حق خاوند. قطب المکنة. ورکن السنة ومنبع

الانوار۔ قبلۃ الانوار۔ ونقطۃ الاحرار وائ۔

۳ دَ اخوند درویزه دریم کتاب "مخزن الاسلام" دے۔ دا کتاب ژبه پښتو ده۔ دا دَ نثر مقفیٰ او مسجع په یو مخصوص ادبی سبک کښې لیکلے شویدے۔ دا کتاب په دے نومونو یادیږی۔ مخزن اسلام۔ مخزن درویزه۔ مخزن پښتو۔ دا کتاب څو څو ځلې چاپ شوے دے۔ موجوده چاپ شوے نسخه په څلورو حصو تقسیم ده۔

(۱) اولنۍ حصه تالیف دَ اخوند درویزه دَ ص۱ نه تر ص۱۳۳ پورے

(۲) تالیف دَ ملا عبدالسلام بن پاینده محمد بن اخوند درویزه دَ پنج کوهر په نوم سره ص۱۳۳۔

(۳) دریمه حصه تالیف دَ میاں کریمداد بن اخوند درویزه دَ ص۱۳۳ نه تر ص۱۵۲ پورے۔ په دے حصه کښې یو غزل دے او بله "الف نامه" ده چه "کلمات الوافیات" نوم ئې دے۔ او حضرت حاجی بهادر صاحب دَ کوهاټ دَ "تبیان الحقائق" په نوم دده شرح لیکلے ده۔

(۴) څلورمه حصه دَ اخوند درویزه تالیف دے۔ دَ ص۱۵۲ نه تر ص۱۶۲ پورے

دده کتاب کومه حصه چه دَ اخوند درویزه تالیف دے په هغې کښې دَ علم فقه دَ مشهور کتاب خلاصه کیدانۍ، دَ علم عقاید دَ ابتدائی کتاب فقه اکبر (۳) دَ قصیدۀ امالی" قصیدۀ بردۀ پښتو ترجمے دی چه دَ اهل سنت والجماعۀ دَ عقیدے مطابق دَ ایمان او توحید مسائل او نور ابتدائی دینی او مذهبی مسائل ئې پکښې په ساده او اسانه پښتو ژبه راجمع کړیدی۔ دده نه علاوه یوه الف نامه ده چه په خصوصیت سره دَ پیر تاریکی دَ مشهور مرید علی محمد مخلص دَ الف نامه په جواب کښې ده دده کتاب په حقله اخون درویزه فرمائی:۔ سبا ئیسته مخزن م او کیښې پُریه دَ ځکو هرو۔

۴ دده نه علاوه دَ اخوند درویزه نور ځینې تالیفات دی۔ لکه شرح قصیدۀ امالی فارسی۔ شرح اسماء الحسنیٰ فارسی۔ برهان الانبیاء والاولیاء وغیره۔

## حامن او خلفاء

**میاں کریمداد**

دَ اخوند رویزہ بابا څلور حامن وُو. (۱) عبدالکریم چہ پہ میاں کریمداد شہید مشہور دے پہ ظاہری او باطنی دواړو علمونو کښې ئې دَ خپل پلار نہ فیض موندلے دے. او پہ قول دَ مفتی غلام سرور لاهوری دَ پیر بابا مأذون او خلیفہ هم وو. مؤلف او محقق عالم دے. ادیب او شاعر دے. پہ علم فقہ کښې دَ تحفۃ الخانیۃ پہ نوم یو مستند کتاب ئې لیکلے دے. چہ دَ روستو زمانے دَ خراسان ټولو عالمانو تر نیہ استناد کړیدے شرح جام جہان نما او کلمات الوافیات ئې دَ علم تصوف کتابونہ دی. دَ اولنی کتاب ژبہ فارسی او دویم پښتو دہ. دَ پښتو ژبے دَ اشعارو یو دیوان ئې یادگار پاتے دے. دَ زنانہ وُ دَ پارہ ئې دَ علم فقہ پہ مسائلو یو خصوصی کتاب لیکلے دے. پہ دے کښې صرف هغہ مسائل راجمع کړیدی چہ هغہ دَ زنانہ وُ سرہ تعلق لری. پہ شریعت، طریقت او حقیقت درے واړو کښې لویہ مرتبہ ئې لرلہ دَ کرامت او ولایت خاوند وو. دَ روستو راتلونکے زمانے ټولو عالمانو او بزرگانو دہ دَ دہ دَ اوچتے علمی او عرفانی مرتبے ستائینہ کړیدہ. دَ حضرت میاں کریمداد پہ شاگردانو او مریدانو کښې دد دہ خپل ځوئے میاں نور محمد ورېرونہ ملا عبدالسلام، ملا عبدالحلیم دَ پیر بابا درے واړہ نمسی میاں قاسم، میاں عبدل، میاں حسن دَ کوهاټ حضرت حاجی بهادر صاحب. اخوند قاسم پاپین خیل او دَ پښتو ژبے مشهور شاعر حضرت عبدالرحمن بابا مهمند دَ یاد ولو دی. مزار مبارک ئې پہ موضع کانجو ریاست سوات کښې دے. پہ میاں شهید بابا یادیږی.

---

**میاں اللہداد**

دَ دویم ځوئے نوم ئې میاں عبداللہ دے. چہ پہ میاں اللہ داد

---

حاشیہ بر ۱ صفحہ ۵۳۹ اخوند رویزہ دَ دے خپل تالیف برهان الانبیاء والاولیاء ذکر پخپل کتاب ارشاد المریدین کښې کړے دے. او پخپل کتاب تذکرۃ الابرار کښې هم دَ دے کتاب بعض اقتباسات رانقل کړیدی. دا کتاب نن ورځے نایاب دے. (اثر)

مشهور دے۔ عالم او فاضل وو. روحانی مرتبہ ئې ډیرہ اوچتہ وہ. مزار مبارک ئې په موضع سلامپور ریاست سوات کښې دے. په میاں جیڅوبابا یاد یږی. دَ خپل پلار مرید او خلیفه وو.

**میاں خالقداد**

د دریم ځوئ ئې عبد الخالق نوم دے. په خالقداد مشهور دے. دَ خپل پلار مرید او خلیفه وو. عالم، فاضل او مؤلف وو. دَ "شرائط و احکام ایمان" په نوم ئې یو کتاب تالیف کړے دے. زیارت ئې دَ ریاست سوات دَ موضع منګورہ سرہ نزدے په موضع نوی کلی کښې دے.

**میاں پائنده محمد**

دَ څلورم ځوئ ئې پائنده محمد نوم دے. دَ خپل پلار مرید او خلیفه وو. عالم او فاضل وو. دَ علم فقه په کتابو ئې حاشیے لیکلے دی. مزار مبارک ئې دَ ریاست دیر په آندیزائی نوے علاقه کښې دے.

**اخون پنجو بابا**

دَ حضرت اخوند درویزه په بے شمیرہ شاګردانو، مریدانو او خلیفه ګانو کښې فقط دَ یو مرید او خلیفه حضرت اخون پنجو بابا نوم ذکر کول کافی ګڼړو چه دَ دے نامور بزرګ مرید په ذریعه دَ اخون درویزه دَ روحانی فیوضاتو سلسله په ټول خراسان او برصغیر پاک و هند کښے ترننه ورځے پورے باقی پاتے دہ. او انشاء الله چه تر آخره به باقی پاتے وی. او دوئ چه دَ علم او فضل او حقائق و معارف کوم مشعلونه روښانه کړی دی. دَ هغے رڼا به هم دغه شان روښانتیا او خوره وُ نګے او دَ بدعت او الحاد تیارہ لرے کونکے باقی پاتے شی. او دغے په ذریعه په دَ مسلمانانو ترمنځه روحانی ترون له دوام حاصل شی.

دَ مفتی غلام سرور لاهوری دَ بیان مطابق اخوند درویزه بابا په سنه ۱۰۴۸ھ کښې په حق رسیدلے دے. دَ وفات تاریخ ئې دَ دے جملے نه ښکاری (والی رضا) مزار مبارک ئې دَ پېښور ښهر دَ ګنج دروازے نه جنوب مشرق طرف ته دَ موضع هزار خانی سره نزدے دے. قبر ئې دَ ډیرے زمانے نو خ دے. بحه چار دیواری ترینه چاپیره دہ. ورسره نزدے یو جماعت دے. عام خلق ئې زیارت له ورځی. البته زنانه وُ ته زیارت ته دننه تللو اجازت نشته دے. دَ روحانی فیوضاتو لوئ مرکز دے. علیه الرحمة والغفران

# حضرت مولانا شیخ سیّد محمّد ذکریا

ولادت ــــــــــ ورډک پیښور سنه ۹۸۱ ھ

وفات ــــــــــ اتمرخیل (قبایلی علاقه مهمند) سنه ۱۰۵۵ ھ

حضرت مولانا شیخ المشایخ سید محمد ذکریا علیه الرحمهٔ دَ قبایلی علاقه مهمند (مهمند ایجنسۍ، مغربی پاکستان) په مشاهیرو روحانی پیشوایانو کښې دَ اوچتې مرتبې خاوند بزرګ تیر شوے دے. په عام او خاص کښې دَ "حضرت شیخ بابا" په نوم مشهور دے. دَ کشف او کرامت او روحانی تصرفاتو لوی ملکے ور. فیوضات او برکتونه ئې عام دی. او په خصوصیت سره دَ قبایلی علاقه مهمند او باجوړه او سمت مشرقی افغانستان ټول خلق که واړه دی که لوئے دی. دَ دوی نوم په عزت سره اخلی. او دَ دوئ دَ روحانیت او کرامت دَ فیوضاتو له برکته دا ملک دَ اسلام په رڼا روښانه دے. حضرت مولانا شیخ المشایخ سید محمد ذکریا علیه الرحمهٔ صحیح النسب حسینی سید دے. شجرهٔ دَ نسب ئې دا سے دی:-

حضرت سید محمد ذکریا [1] ابن سید خواجه علی [2] ابن سید محمد عمر [3] ابن محمد ثابت [4] ابن محمد یحیٰی [5] ابن محمد جمال [6] ابن سید نور [7] ابن محمد باقر [8] ابن نعمت الله [9] ابن علی اکبر [10] ابن عبد الکریم [11] ابن محمد ناظر [12] ابن محمد محبوب [13] ابن محمد معصوم [14] ابن سید سلام [15] ابن محمد [16] ابن تقی [17] ابن فتح الله [18] ابن محمد طاهر [19] ابن محمد اسماعیل [20] ابن محمد محسن [21] ابن احمد [22] ابن عبد الله [23] الملقب په سید الرجال ابن علی نقی [24] ابن محمد مکی [25] ابن محمد مهدی ابن الامام سید محمد [26] حسن عسکری [27] ابن الامام علی نقی [28] ابن سید محمد تقی [29] ابن سید امام موسیٰ [30] رضا ابن الامام موسیٰ کاظم [31] ابن الامام الهمام محمد جعفر صادق [32] ابن الامام محمد باقر [33] ابن الامام علی زین العابدین [34] ابن الامام سید الشهداء امام حسین [35] ابن مولی الکائنات علی ابن ابی طالب کرم الله وجهه رضوان الله تعالیٰ عنهم اجمعین

دَ حضرت مولانا شیخ محمد ذکریا والد ماجد حضرت مولانا شیخ سید خواجه علی اوڈ هغه مشر ورحضرت خواجه سید هارون دواړه دَ غزنی په شاؤخوا کښ دَ وردګ قبیلے په علاقه کښ په موضع چنار کښ اوسیدل. دَ دوئ والد ماجد سید محمد عمر اوڈ هغه نه پورته دَ حضرت مولانا سید عبدالکریم پورے دَ پلرونو اونیکونو نهه پیړئ مشران ټول دَ غزنی په وردګ نومے علاقه کښ آباد وو. اوڈ ساداتو دا خاندان دَ علاقه غزنی دَ حسینی ساداتو په خاندانونو کښ دَ علم او عرفان په لحاظ سره یو او چت اوعزتمند خاندان وو. ددے خاندان په مشرانو بزرګانو کښ چه فکر او کړے شی. نو معلومه شی. چه ددے خاندان ټول مشاهیر سیدان دَ افغانستان په غزنی او قندهار کښ اوڈ مغزلی پاکستان په پشین کښ اوسیدلی وو. دَ مثال په طور

1 دَ حضرت شیخ محمد ذکریا په پوولسم پښت کښ حضرت سید عبدالکریم زیارت په غزنی کښ دے. لیکن دَ هغه والد ماجد حضرت سید محمد ناظر علیه الرحمة مزار مبارک په پشین کښ دے.

2 دَ حضرت سید محمد ناظرڈ والد ماجد سید محبوب مزار مبارک په موضع ششګاؤں غزنی کښ دے. اوڈ سید محبوب دَ والد ماجد محمد معصوم زیارت هم په غزنی کښ دے.

3 دَ حضرت سید محمد معصوم دَ والد ماجد سید محمد ملا ام مزار مبارک په موضع مشکی بلوچستان کښ دے. حال دا چه دَ هغه دَ پلار او نیکه دواړو بیټے حضرت سید محمد او سید تقی مزارونه په غزنی کښ دی.

4 بیا دغه حضرت سید تقی دَ والد ماجد خواجه فتح الله (زمانه سنه ۴۰۰ هـ) مزار پرانوار په قندهار ښهر کښ دے.

5 ددے حضرت مولانا خواجه فتح الله نیکه سید خواجه اسمعیل هغه نامور بزرګ دے. چه دَ حضرت سید محمد ذکریا. اوڈ حضرت خواجه

شیخ. مشایخ سید رحمکار کاکا صاحب دواړو بزرگانو مشرنیکه دے - او دَ دوئ دواړو دَ نسب شجره برے پوځائے کیږی.[له]

حضرت مولانا سید خواجه محمد هارون او سید خواجه علی دواړه رونړه دَ افغانستان دَ وردګ نومے علاقے نه دَ سنه ۹۷۰ھ په شاؤخوا کښں وادیٔ پیښور ته راغلی وو. او دلته اول په پیښور ښهر کښں او بیا دَ ضلع پیښور تحصیل چارسده دَ دوآبے په علاقه کښں دَ ګګیانړی قبیلے دَ خلقو سره آباد شوی وو.

حضرت خواجه سید هارون او حضرت سید خواجه علیؒ دواړه رونړه دَ حضرت شیخ المشائخ پیر سید علی ترمذی المعروف پیر بابا نه په سلسله چشتیه کښے بیعت او کړ - خرقه دَ خلافت ئے حاصله کړه. په هغه زمانه دَ حضرت پیر بابا او دَ هغه دَ نامور خلیفه حضرت اخوند درویزه بابا دَ طرف نه دَ بایزید انصاری المعروف پیر تاریکی سره چه کوم علمی بحثونه او مقابلے کیدلے. په هغے کښں سید خواجه هارون او سید خواجه علی دواړه دَ اخوند درویزه بابا ملګری وو.[۲له]

اخوند درویزه بابا دَ دے دواړو رونړو دَ او چتے علمی او عرفانی مرتبے ډیره ستاینه کړے ده. او هغه کښں ئے لیکلی دی. چه دے دواړو رونړو دَ محکمه قضا عهده قبوله کړی وه. هرکله چه اخوند درویزه دا بیان په سنه ۱۰۲۲ھ کښں لیکلے دے. په دے بناء کیدلے شی چه دے دواړو رونړو دَ قاضی توب عهده دَ جلال الدین اکبر نه روستو دَ شهنشاه جهانګیر په زمانه کښں قبوله کړی وی. او خیال دا دے چه دکابل په شاؤخوا علاقے قاضیان شوی وو. او دے خیال تائید دے نه کیږی. چه دَ حضرت سید خواجه علی مزار پر انوار دَ علاقه وردګ په موضع چنار کښں دے[له]. دے دواړو رونړو دَ وفات صحیح تاریخونه تر دے وخته را ته معلوم شوی نه دی. البته دَ اخوند درویزه

---

[له] په حواله دَ شجره نسب سادات شیخ ذکریا خیل قلمی [۲له] تذکرة الابرار صفحه ۲۲۲

دَ پورتني بيان نه معلوميږي چه ترسنه ۱۰۲۲ پورے ژوندی وو۔ او په دے اعتبار دَ وفات تاريخ يَ دَ دغه نه روستو کنټرول پکار دی۔ په دوی کښ دَ سيد هارون مزار مبارک نه دے معلوم چه چرته دے۔ يا دا چه اولاد يَ کومه زمکه آباد ده۔

روايت دے چه په حضرت سيد خواجه علی بانډے دَ حضرت اخوند درويزه بابا لوروادکاوه۔ دَ سنه ۹۸۱ھ په شاؤخوا کښ يَ دَ هغه نه يو فرزند پيدا شو۔ په هغه باندِ محمد ذکريا نوم کيښودو۔ چه نن ورځ په "شيخ ذکريا بابا" او "شيخ بابا" په نومونو مشهور دے۔ او اولاد يَ په "شيخانو او مياګانو" ياديږي۔

لکه چه مخکښ ورته اشاره اوشوه دَ حضرت شيخ سيد محمد ذکريا والد ماجد سيد خواجه علی دَ سنه ۹۸۱ھ په خواؤشا زمانه کښ دَ ضلع پيښور په دوآبه علاقه کښ اوسيده۔ شيخ ذکريا دَ دينی علمونو کتابونه دَ خپل والد ماجد نه اوبيا په هغه زمانه چه په دغه علاقه کښ کوم نور عالمان وو۔ دَ هغوی نه لوستلی وو۔ او په ظاهری علمونو کښ يَ درجه دَ کمال حاصله کړے وه۔ دَ هغه نه روستو دَ حضرت اخوند درويزه بابا نه يَ بيعت کړے وو۔ خرقه دَ خلافت يَ موندلے وه۔ او بيا دَ خپل پير طريقت او دَ مورد طرفنه نيکه حضرت اخوند درويزه بابا دَ ارشاد او هدايت مطابق غالباً دَ سنه ۱۰۴۰ھ په شاؤخوا کښ قبائيلی علاقے مهمند ته يَ تشريف وړے وو۔ چه روستو هم دغلته پاتے شوے وو۔

حضرت مولانا شيخ ذکريا په اول سر کښ دَ جلال آباد سرکا نږدے موضع کامه ته تلے وو۔ بيا دَ هغه ځائ نه دَ قبائيلی علاقے مهمند دَ موسی خيل قبيلے "سيپنکی تنګی" نومے علاقے ته راغے۔ هلته آباد شو۔ دَ دين اسلام دَ تبليغ او اشاعت سلسله يَ شروع کړه۔ دَ شريعت او معرفت په فيوضاتو يَ دَ خدای مخلوق سرفرازه کړلو۔ او آخر په سنه ۱۰۵۵ھ کښ وفات شو۔ مزار مبارک يَ

دَ قبائیلي علاقه مهمندو ،، بابازی مهمندو ،، په علاقه کښې دَ قبیله ،، اتمرخیل ،، په
علاقه کښې دے. او دغه مقام دَ دوئ دَ نوم په مناسبت سره په ،، شیخ بابا ،، یادیږي
او مرجع دَ خاص او عام او مرکز دَ فیوضاتو دے. علیه الرحمة والغفران.

لکه چه مخکښې ورته اشاره شوې ده. دَ حضرت خواجه محمد ذکریا نه بے شمیره خلقو
ته روحانی فیض رسیدلے وو. او دَ دوئ بے شمیره مریدان او خلیفه گان وو. چه په
هغوئ کښې دَ دوئ خپل درے نامور فرزندان دَ یاد ولو دی. چه دوئ درے واړه دَ
خپل والد ماجد مریدان وو. دَ ولایت درجے ته رسیدلی وو. باکماله عارفان
او اولیاء الله وو. نومونه ئے دا دی.

(۱) حضرت شیخ سید موسیٰ چه مزار ئے په بائی زی مهمند کښے دَ بابازی قبیلے په علاقه
کښې دے. دَ ده دوه ځامن وو. سید حبیب. سید میاں چه روستو دَ دوی دواړو نه
دَ اولاد سلسله خوره شوې ده.

(۲) حضرت شیخ خواجه ابوبکر دَ ده یو ځوئ وو. سید خواجه علی شیر چه دَ ده اولاد
په شیرکو رایدیږي. دَ ده څلور ځامن وو. سید نوروز. سید اسمٰعیل. سید بهائی. سید
میان. دَ دوی نه ئے دَ اولاد سلسله خوره شوے ده.

(۳) حضرت سید خواجه محمد عیسیٰ (دَ ده دَ اولاد شجره په لاس نه ده راغلے) دَ حضرت سید
خواجه محمد ذکریا دَ دے درے واړه ځامنو دَ اولاد کومه سلسله چه په قبائیل
علاقه مهمند ایجنسئ کښې خوره شوې ده. دَ ساداتو دا خاندان نن ورځ یو
عزتمند قوم دے. په کنړو خیلو او خاندانونو مشتمل
دے. او په پخوانئ او موجوده زمانه کښې ډیر لوئ لوئ بزرگان
او عالمان پکښې تیر شوی دی. چه دَ دین اسلام ډیر شاندار خدمتونه
ئے کړی دی. او نن هم ډیره بختوره کورنئ ده. دَ ساداتو
دَ دے خاندان په خصوصی تعریفونو کښې اهم تعریف

دَدوئ "جلالی شان" دے۔ او "انقلابی جذبه" دَه۔ چه دَدین
اسلام دَحمایت۔ سرلوړئ۔ عزت اوناموس
ساتلو دَپاره هر وخت او په هرحالت کښې
دَحق آواز پورته کولو او دَ کلمهٔ حق
وئیلو نه دریغ نه کوی۔ او
همیشه دَحق ملګرتیا
کوی۔ خدائ پاک دې
دَدین اسلام
دَروحانی رهنمائۍ
دَپاره دَدے
خاندان
عزت
او
برکت
نور هم
زیات
کړې



# حضرت مولانا سیّد شیخ اخوند محمد یونس

ولادت ———— خاوه (افغانستان) سنه

وفات ———— غله ډهیر (مردان) سنه ۱۰۵۹ھ

حضرت مولانا شیخ المشایخ اخوند حافظ سید نور العلماء محمد یونس فیضی الملقب په شیخ نور محمد[له] گیلانی قادری چشتی نقشبندی سهروردی علیه الرحمة دَ وادئ پیښور هغه جلیل القدر بزرگ دے. چه دَ افغانستان په موضع خاوه کښې پیدا شوے وو[له] - او دَ موجوده شمالمغربی پاکستان په سمه او سوات کښې ئے دَ علم او عرفان دَ فیوضاتو خوره ولو نه علاوه دَ دین اسلام دَ اشاعت تبلیغ او سرلوړئ دَپاره مسلسل جهادونه کړیدی. او دَ اسلام بیرغ ئے دَ وادئ پیښور دَ شمال. شمالمشرقی او مشرقی کوهستانونو تر آخری سرپورے رسولے دے.

او هم دا هغه جلیل القدر بزرگ دے. چه روستو دده په اولاد او خاندان کښې پښت په پښت بے شمیره روحانی پیشوایان او عالمان تیر شویدی. چه دَ هغوئ په کوششونو او دَ هغوئ دَ علمی او روحانی فیوضاتو په انوارو باندې لا ترننه ورځے پورے دا ملک روښانه دے. دَ حضرت مولانا سید محمد یونس شجره دَ نسب دا سے ده.

سید محمد یونس[۱] ابن سید محمد درویش[۲] ابن سید نور الدین[۳] ثانی ابن سید حسام الدین[۴] ابن سید نور الدین[۵] اول ابن سید ولی الدین[۶] الفاضل ابن سید زین الدین[۷] ابن سید شرف الدین[۸] ابن سید السادات شمس الدین[۹] ابن سید

---

له دَ دوئ په مزار مبارک چه کوم کتبه ده. په هغے کښې دا الفاظ په جلی قلم درج دی. (خاوو بابا نور العلماء اخوند محمد یونس فیضی معروف په شیخ نور محمد پښاوری.) له دَ کابل ښهر په شمال کښې دَ وادئ لوګر په شرق نومے علاقه کښې (خاوه) دَ یو کلی نوم دے. چه (خاوی) هغے ته نسبتی نوم دے. او په دغه مناسبت حضرت اخوند محمد یونس په "خاوو بابا" نوم مشهور دے. خاوه کې یو مبارک مقام دے. دَ حضرت داتا گنج بخش استاذ خواجه احمد خاوی هم دلته ددے کلی وو.

محمد الهتاک ابن سید المحنان عبد العزیز ابن سید الشیخ قطب ربانی محبوب سبحانی محی الدین عبد القادر جیلانی الحسنی الحسینی قدس سرہ۔

د حضرت مولانا سید محمد درویش درے ځامن وو. سید زین الدین سید محمود. سید محمد یونس علیهم الرحمة. د لته اول د حضرت شیخ سید محمد درویش او وروسته د دوی د درے وارو ځامنو حالات په ترتیب سره درج کولے شی.

## سید محمد درویش

لکه چه مخکښ ورته اشاره اوشوه حضرت مولانا سید محمد درویش گیلانی قادری علیه الرحمة د علاقه لوگر (افغانستان) په خرخ (خاوه) کښ اوسیدلو. په یو قلمی کتاب کښ چه د فارسی ژبے په مخصوصه لهجه (دری) کښ په نظم کښ لیکلے شویدے. (صفت نامه) نوم یے دے. او دے قلمی نسخه ځما (اثر افغانی) دیو دوست سره موجود که دکه. په هغے کښ د حضرت سید محمد درویش د ژوند او هغوی چه کومے غزاگانے کړیدی. د هغے حالات لیکلی دی. په دے کتاب کښ روایت دے. چه حضرت مولانا شیخ سید محمد درویش په سادات افاغنه کښ نامو رسیدے. چه د کافرستان (موجوده نورستان) په دره بچگان او دره پراچگان کښ یے غزاگانے کړیدی. د املک یے فتح کړے وو. د دے علاقے (کافرستان) کفار او مشرکان یے مسلمانان کړی وو. او چه کومو کفارو د اسلام مقابله کوله نو هغوی یے له تیغه تیره کړی وو. او د دهٔ فرستان په څخله کښ د لمغان په علاقه کښ په دره علیشنگ کښ یے د اسلام آباد په نوم یوه مضبوطه قلعه جوړه کړله. د پاره د دے چه د کافرستان په حالاتو او واقعاتو قابو اوساتلے شی. په هغه زمانه "اسلام آباد" د مجاهدین اسلام فوځی مرکز وو. چه روستو لوی علمی مرکز ترینه جوړ شوے وو. او تر ننه ورځے پورے لوی علمی مرکز دے. د "اسلام آباد" لو تعریف د دنیا په عجائبو کښ شمارلے شی. چه د دے ځایے چه هر څو مره خلق دی. که هغه لوهاران دی. که ترکانان دی. که جولاگان که زمیندارانان او که دهقانان دی. ټول خیل کسب هم کوی.

او دینی علمونه هم حاصلوی. دَ " اسلام آباد " نر ښځے لوئ. واړه خوار غریب، هر څوک چه کوم ے دَ علم دین نه خبردار او دَ لیکلو په فن به پوهه وی. او دغه دَ حضرت سید محمد درویش گیلانی قادری بودا سے فیض دے. چه ترنن و رځے جاری دے.

په دے کتاب کښ هغه ټول واقعات درج دی. چه دَ حضرت سید محمد درویش په قیادت کښ غازیانو کوم جهاد و نه کړی دی. او دَ کفار و سره ئے مقابله راغلے دی. د دے کتاب دَ مطالعے نه معلومیږی چه حضرت سید محمد درویش دَ محمد حکیم مرزا (ابن نصیر الدین همایون ابن ظهیر الدین بابر بادشاه) متوفی سنه ۹۹۳ھ دَ شهزادګئ په زمانه کښ ژوندے وو. او دَ محمد حکیم مرزا دَ طرف نه دَ مملکت کابلستان دَ وزیر امنیه عهده ئے لرله. او چه کله دَ وزارت او حکومتی منصب نه ئے لاس واخیست نو دَ یو روحانی پیشوا په حیثیت ئے دَ اسلام دَ سر لوړئ دَ پاره دَ کافرستان او لغمان په تنګو او دروکښ غزاګانے کوټلے او دَ اسلام رڼا ئے خوره وله. دَ دوئ دَ وفات صحیح تاریخ راته معلوم شوے نه دے. مزار مبارک ئے په اسلام آباد کښ دے.

## سید زین الدین گیلانی

دَ حضرت سید محمد درویش دَ یو ځوئ نوم سید زین الدین وو. د دۀ تذکره په "نسب نامه سادات شیخ سید ذکریا خیل کښ راغلے دۀ. د دۀ دَ ځوئ نوم وو. سید مصطفیٰ دَ هغه دَ ځوئ نوم وو. سید سلیمان دَ هغه دَ ځوئ نوم وو. سید علی او بیا دَ هغه دَ ځوئ نوم وو. سید سلیمان ثانی. دا سے معلومیږی چه دَ حضرت سید زین الدین اولاد او خاندان دَ افغانستان په علاقه کښ آباد وو. نور حالات ئے په لاس نه دی راغلی. ګیدے شی چه د دے خاندان حالات دَ افغانستان په سمت مشرقی کنړ او لغمان کښ پیدا شی۔

## سید محمود گیلانی

دَ حضرت سید محمد درویش دَ دوئ دَ دویم ځوئ نوم وو. حضرت مولانا سید محمود گیلانی علیه الرحمه رامپور (هند) ته ئے تشریف وړے وو.

او هلته آباد شوے وو. دَ دوئ دَ فرزند ارجمند نوم و و سید عبد الجلیل دَ هغه دَ
ځوئ سید عبد الله نوم وو. او دا هغه نامور بزرګ دے. چه مفتی غلام سرورؔ
ئے په دے الفاظو ذکر کړے دے[1]۔ سید العرب والعجم عمدة الاولاد غوث الاعظم
حضرت شاه عبد الله بغدادی قادری کیلانی قدس سره العزیز. دَ حضرتؒ سید
عبد الله دَ فرزند ارجمند نوم مولانا سید عبید الله وو. دَ سلسلهٔ چشتیه نظامیه
نیازیه بانی حضرت شاه نیاز احمد نیاز بریلوی[2] چشتی نظامی قادری علیه الرحمة
په سلسله عالیه قادریه کښن هم دے. حضرت سید عبد الله فرزند ارجمند سید
عبید الله په چشتیه سلسله کښن دَ حضرت شاه نیاز احمد بریلوی نه خرقه دَ
خلافت حاصله کړے وه[3]۔

حضرت سید عبد الله په سلسله قادریه کښن دَ خپل والد ماجد سید
عبد الجلیل خلیفه وو. او په سابق هندوستان کښن دَ دوئ په واسطه دَ قادریه
سلسلے فیوضات خوارهٔ وو.

## سید محمد یونس کیلانی

دَ حضرت مولانا سید محمد درویش علیه الرحمة دَ دویم ځوئ نوم حضرتؒ مولانا
حافظ سید اخوند محمد یونس المعروف په حافظ نور محمد پښاوری علیه الرحمة دے.
چه دلته دَ دوئ تذکره په تفصیل سره درج کول غواړو.

حضرت مولانا سید اخوند محمد یونس دَ دینی علومو تحصیل او تکمیل
دَ خپل والد ماجد او ورپسے په هغه زمانه چه په علاقه لوګر- غزنی او کابل
کښن کوم عالمان وو. دَ هغوئ نه کړے وو. دَ بغداد شریف دَ کیلانی ساداتو

[1] خزینة الاصفیاء جلد ۱ ص ۱۳۵۔ [2] دَ حضرت شاه نیاز احمد نیاز دَ ولادت کال
سنه ۱۱۴۳ھ دے. او دَ وفات کال سنه ۱۲۵۰ھ دے.

[3] "تحفه سعادت" (قلمی) تالیف سید عبد الستار شاه نظامی. نیازی. لکه چه روستو به
بحث راشی. دا دے حضرتؒ سید عبید الله دَ مرید نوم وو. شیخ محمد عظیم کشمیری او دَ هغه مرید وو
سید عبد الستار شاه پښاوری.

یوه خصوصي قاعده ده. او هغه دا ده چه د حضرت شیخ محی الدین عبد القادر جیلاني قدس سره تول نسبي پشت په پشت هر یو د خپل والد ماجد نه په سلسله قادریه کښې بیعت کوي. او خرقه د خلافت تر ینه حاصلوي. د دغې قاعدې مطابق حضرت مولانا اخوند محمد یونس هم د سلسله عالیه قادریه فیوضات د خپل والد ماجد نه حاصل کړي وو. د هغې نه روستو یې وادئ پیښور ته تشریف راوړے وو. او د حضرت مولانا عبد الوهاب المعروف په اخون پنجو بابا د خدمت نیکبختي ورته حاصله شوے ده. او د حضرت مولانا اخون پنجو بابا نه یې په سلسله چشتیه صابریه. او سهروردیه کښې خرقه د خلافت حاصله کړے وه. او په سلسله عالیه نقشبندیه کښې یې د حضرت سیدنا آدم بنوري نه خرقه د خلافت موندلے وه.

د حضرت مولانا سید محمد یونس پیر طریقت حضرت مولانا اخون پنجو بابا چه د سلطان محمود گدون په ملګرتیا کښې د اباسینده کوهستان په علاقو کښې کوم جهاد ونه کړیدی. مخکښې د اخون پنجو بابا په تذکره کښې د هغې بیان په تفصیل سره درج شویدے. چه هر کله اخون پنجو بابا د خپل عمر په آخرینۍ حصه کښې د موجوده ضلع هزاره د موضع مانکرانه (چه د غلته د گدون قوم د سالار قبیلے خلق آباد وو.) را روان شو. او د موجوده ضلع پیښور موضع اکبرپوره ته یې تشریف راوړ. نو د اباسینده کوهستان په علاقو کښې چه کوم غیر مسلم قومونه آباد وو. او هغوئ ته د اسلام پیغام رسولو د پاره د جهاد کومه سلسله یې شروع کړے وه. دغه دیني فریضه یې خپلو نامور و خلیفه گانو ته سپارلے وه. هر یو خلیفه له یې د مختلفو پښتنو قبائیلو د غازیانو لښکرونو د پاره جدا جدا بیرغ ورکړے وو. چه د هغو خلیفه گانو نومونه دا دي.

**ملامست**

حضرت مولانا شیخ اخوند ملامست علیه الرحمه له یې چه کوم بیرغ ورکړے وو. د هغې د لانډې د باجوړ. مهمند. خیبر د

علاقو د ترکلانی، مهمند، شنواری، ملاکوری، صافی وغیره قبیلو غازیان راجمع وو.[1]

**اخوند سالاک**

د حضرت مولانا اخوند سالاک[2] د بیرغ د لاندې د کرلانی قوم قبایل لکه آفریدی، خټک، څدران، اتمانخیل شامل وو. جهاد ونه یې کول. د جهاد د پاره د دوی د لښکر د راجمع کیدلو مرکز کاټلنګ وو.

**سلطان محمود**

حضرت سلطان محمود د ګډون قوم د دوو مشهورو قبیلو سالار او منصور قومی مشرانو حکمران وو. په علاقه هزاره او کوهستان مهابن کښې چه د ګډون قوم کوم مخلق آباد وو. د هغې غازیانو د جهاد بیرغ د دوی په لاس کښې وو.

**اخوند محمد یونس**

حضرت مولانا اخوند محمد یونس علیه الرحمة ته یې د یوسف او مندنړ د وو مشهورو قبیلو د غازیانو بیرغ ورکړے وو.

د حضرت مولانا حافظ اخوند سید محمد یونس د بیرغ د لاندې د دې دواړو قبیلو خلق چه د جهاد د پاره کوم ځای ته به راغونډیدل. هغه د جهاد مرکز د موجوده طورو ونومے کلی نه مغرب طرفته د کلپانړۍ نه قبیلے غاړے ته د "طور وړ هیرۍ" په مقام وو. په دغه مقام د دلزاک قبیلے د اقتدار د زمانے راسے د ساداتو خاندانونه آباد وو. هر کله چه حضرت مولانا سید اخوند محمد یونس علیه الرحمة دغه مقام

---

[1] د ملامست متوفی سنه ۱۰۷۰ د حالاتو د پاره ملاحظه کړئ ځما کتاب "افغان مورخین"

[2] حضرت مولانا اخوند سالاک او حضرت مولانا پیر سباک دواړه رونړه او په قول د اخوند رویزه (تذکرة الابرار صفحه ۱۳۲) دوی په قام خټک وو. د مولانا سالاک په نوم یو کلے د قندهار په ارغنداب نومے علاقه کښې (خالا) او بل کلے د ضلع مردان په علاقه بایزائ کښې د لوند خوړ نه مشرق طرفته (سالاک) نومے موجود دے. مزار مبارک یې د اباسیند کوهستان په کابل بګرام کښې دے. په سنه ۱۰۷۵ هـ کښې وفات شویدے. د دوی ورور اخوند سباک[3] د نوښهر ضلع پیښور په علاقه کښې په موضع ولی کښې اوسیدلو. حضرت شیخ رحمکار صاحب یې صحبت نه فیض حاصل کړے وو. د دستو د نوښهر د سیند په غاړه په کوم کلی کښې چه اوسیدلو هغې کلي د دوی د نوم په مناسبت سره په "پیر سباک" نامه یادیږی. مزار مبارک یې د ضلع مردان علاقه سد نوم په موضع رستم کښې دے. (ناشر)

دَجهاد دَ لښکرو دَ پاره فوځي مرکز اوګرځولو. نو په دغه مناسبت سره دا ځائے په "جهاد ګے" نوم مشهور شو. چه نن ورځے دَ کثرت استعمال په وجه په "جاټ ګے" نامه یادیږی. لکه چه مخکښې ذکر او شو دَ حضرت اخون پنجو بابا دے تولو نامور خلیفه ګانو دَ اباسینه کوهستان، کوهستان سوات، دیر، باجوړ (ساؤ، ناړی، نرصات، بیلم) او دَ سمت مشرقی افغانستان په علاقه کافرستان باندے غزا ګانے او کړلے. او دَ اسلام دَ تبلیغ او نشر و اشاعت حق ئے ادا کړ.

حضرت حافظ، سید، اخون محمد یونس ګیلانی درے ودونه کړی وو.

۱ — دَ دوئ دَ یو بے بی بی نوم حضرت "آلینه" علیها الرحمة وو. چه دَ حضرت اخون پنجو بابا لور بی بی وه. دَ هغے نه ئے دوه ځامن پیدا شوی وو. دَ یو نوم حضرت اخوند محمد یوسف او دَ دویم نوم حضرت اخوند محمد عنایت الله.

۲ — دَ دوئ دویمه بی بی اُمِ ولید لاوه. چه دَ هغے "جهان آرا" نوم وو. د دے بی بی نه ئے چه کوم فرزند احمد پیدا شوے وو. دَ هغه نوم حافظ اخوند محمد رفیع وو.

۳ — دریمه بی بی ئے دَ حضرت مولانا شیخ المشائخ محمد عمر المعروف په "پیر سباک" لور بی بی وه. چه دَ هغے "بیګم" نوم وو. دَ ضلع مردان تحصیل صوابی دَ موضع پرمولی پیران ئے د دغه بی بی اولاد دے.

حضرت مولانا اخوند محمد یونس دَ زهد او ریاضت، تقوی او پرهیز ګاری، د دینی علومو دَ درس او تدریس دَ روحانی فیوضاتو دَ خورولو او دَ دین اسلام دَ تبلیغ دَ پاره دَ مجاهدانه کارنامو انجام ته رسولو نه پس په سنه ۱۰۵۹ھ کښې د دے دنیا نه سفر او کړ او په مقام دَ "غله ډهیر" ضلع مردان کښې ئے مزار جوړ کړے شو. او د دوئ دَ نوم په مناسبت سره د دغه مقام هم نن ورځے په "خاؤر" نامه یادیږی. دَ ولادت صحیح تاریخ ئے را ته معلوم شوے نه دے. علیه الرحمة

## دَ دوئ دَ اولاد تذکره

هر کله چه دَ تیر وشو درے سوه کلونو راسے دَ حضرت مولانا اخوند یونس علیه الرحمة

اولاد پشت په پشت د دین اسلام د پرشانداره خدمتونه کړیدي. او لکه چه مخکښې ورته اشاره شویده کال په دے مبارک خاندان کښې ډیر لوئ لوئ عالمان او بزرګان تیر شویدي. چه د روستو ځائي په ځائي ځمونږ په دے کتاب کښې په دوئ کښې د بعض مشاهیر و حالات به په اختصار سره مخے ته راشي. په دے وجه دا مناسب معلومیږي چه دلته د حضرت خاؤ و بابا د اولاد په حقله په اختصار سره تذکره درج کړے شي.

**عنایت الله** د حضرت اخون پنجو بابا حضرت آلینه بی بی نه ئے چه کوم دوه ځامن وو. په هغوئ کښې د مشر نوم وو. عنایت الله. د ده دوه ځامن وو. (۱) جلال الدین (۲) شرف الدین. د شرف الدین دوه ځامن وو. (۱) امام الدین (۲) ظهیر الدین. بیا د ظهیر الدین دوه ځامن وو. قیام الدین. ضیاء الدین. (لاولد) او د قیام الدین یو ځوئ وو. عین الدین (لاولد) او د دوئ نه روستو د دے خاندان سلسله ختمه شوے ده.

**محمد یوسف** دا هغه نامور عالم او روحانی پیشوا دے. چه په محمد یوسف یوسفزئے نامه مشهور دے. او د پښتو ژبے او ادب دوه نامور صوفي شاعران حضرت عبد الرحمان بابا سربني مهمند. او حضرت شیخ اخوند بابو جان لغمانی علیهم الرحمة دواړه د دوئ شاګردان وو. حضرت مولانا اخوند محمد یوسف علیه الرحمة د حضرت اخوند سالاک بابا په ملګرتیا کښې د کوهستان دیر په علاقه لرجم او برجم کښې حصه اخیستے. د ولادت او وفات تاریخونه ئے راته معلوم شوي نه دي. مزار مبارک ئے د خپل والد ماجد سره په موضع خاؤ و (طورو) کښې دے.

**ولی محمد** د حضرت مولانا اخوند محمد یوسف علیه الرحمة یو ځوئ وو. چه د هغه نوم وو. ولی محمد. دا هغه جلیل القدر عالم او ممتاز عارف وو. چه نادر شاه افشار خپل دربار ته سره د نورو درے اهل سنت والجماعت عالمانو او قومي مشرانو غوښتلے وو. چه د ایران د مجتهد العصر عالم سره بحث وکړي. د مولانا ولی محمد د درے نورو ملګرو نومونه دا دي.

(۱) حضرت مولانا عبد الرشید قریشي ملتاني چه دَ ضلع مردان په موضع لنډ کوړ (امازوکړهي) کښې اوسیده. لوئ فاضل عالم وو. او دَ پښتو ژبې مشهور دیني کتاب (رشید البیان) مؤلف دے.

(۲) مولانا صاحب دَ موضع "سره چینه" (تحصیل صوابئ ضلع مردان) دَ دوئ نوم راته معلوم شوے نه دے.

(۳) ملک نازوخان مندنړ دَ قومي مشر په حیثیت.

هر کله چه بحث جوړ شو. نو باوجود دے چه دَ ایران هغه مجتهد العصر عالم شکست اوخوړلو. بیاهم نادر شاه افشار اولګیده داخلو وارو ته ونیول اودَ غزني په بندی خانه کښې یې قید کړل. څه لږ زمانه پس حضرت مولانا سید ولي محمد او ورسره یو بل عالم چه غالبًا مولانا عبد الرشید قریشي وو. دواړه هلته دَ غزني په بندی خانه کښې وفات شول. او زیارتونه یې په غزني کښې جوړ شول. او بیا چه احمد شاه ابدالي بادشاه شو نو ملک نازوخان او ورسره مولانا صاحب دَ سره چینه یې دَ بند نه آزاد کړل. او هغوئ واپس خپل وطن ته راغلي وو.[۵۱] دَ حضرت مولانا سید ولي محمد درے ځامن وو.[۵۲]

---

**تاج محمد** — دَ مشر ځوئ نوم یې وو. حضرت سید تاج محمد. ده دوه ځامن وو: (۱) سید نظام الدین (۲) سید جمال الدین. دَ سید نظام الدین دَ ځوئ نوم محبوب شاه وو. دَ هغه دوه ځامن وو (۱) صاحب شاه (لاولد) (۲) حضرت شاه چه ده دَ ځوئ نوم حسین شاه وو. او دَ حضرت جمال الدین دَ ځوئ نوم عرب شاه وو چه دَ هغه دَ ځوئ نوم فضل شاه وو. او دَ هغه دَ ځوئ سید اصغر نوم وو.

**سید محمد** — دَ حضرت مولانا سید ولي محمد دَ دویم ځوئ نوم "سید محمد" وو. دَ دوئ دوه ځامن وو. حضرت سید معظم شاه او حضرت سید محمد سعید دادواړه رونړه جلیل القدر عالمان دَ قرآن حافظان او چتے مرتبے لرونکي عارفان وو.

---

[۵۱] مکتوب دَ سید محمد امین خوګیاني [۵۲] تذکره جمیل (قلمي) (اثر)

**سید معظم شاه**

حضرت مولانا سید محمد معظم شاه دَ علم دین ابتدائی کتابونه دَ خپل والد ماجد نه لوستلی وو. او دَهغې نه روستو دَ موضع شیخ جانا (تحصیل صوابئ ضلع مردان) دَ حضرت مولانا محمد ضیاء علیه الرحمة[1] نه په ټولو دینی علمونو کښې درجه دَ فضیلت حاصله کړې وه. او دَهغې نه روستو ئې په سلسله نقشبندیه کښې دَ حضرت اخوند محمد صدیق دَ بشونړئ نه خرقه دَ خلافت حاصله کړې وه. دَ پښتو ژبې ادیب او شاعر هم وو. یوه منظومه پښتو الف نامه تر ینه یادګار پاتے دَه[2].

دَ حضرت بدر العلماء مولانا سید معظم شاه شپږ ځامن وو. حفیظ الله[1]. حمید الله[2]. حبیب الله[3]. عبد الله[4]. فیض الله[5]. سعد الله[6] دا شپږ. واړه رونړه فاضلان عالمان او دَ قادریه، چشتیه، صابریه، نقشبندیه طریقے بزرګان وو.

په دوئ کښې حضرت مولانا سید اخوند حفیظ الله (متوفی ۱۳۰۷ھ) په سلسله قادریه او نقشبندیه کښې دَ خپل والد ماجد نه او په سلسله چشتیه کښې دَ حضرت مولانا سید ذکری میاں صاحب چشتی صابری نه خرقه دَ خلافت حاصله کړې وه. دَ حضرت اخوند صاحب سوات او دَ دوئ تر مینځه پرخلوصه تعلق وو. دَ حضرت مولانا حافظ سید حفیظ الله پنځه ځامن وو. دا پنځه واړه رونړه دَ حضرت ذکری میاں صاحب شاګردان وو. او قادریه، چشتیه، نقشبندیه مسلک ئے لرلو. نو مونه ئې دا دی.

---

[1] حضرت مولانا محمد ضیاء لوی عالم، کامل بزرګ تیر شوے دے. دَ علم فقهې په کښې کتابونو دَ دوئ حاشئے موجودے دی. او دَ میاں محمد عمر دَ چمکنو علیه الرحمة سره مرید وو. او حضرت میاں صاحب ورته دعا فرمائیلے وه چه خدائ پاک دے دَ علماء رونړکار سر آمد کړه. [2] په دیوان حافظ الپوری مطبوعه نسخه کښې چه دَ حافظ محمد معظم کومه الف نامه شامله ده او لنبے شعر ئې دا دے. الف اول دَ کائناتو. نور دَ پاک نبی لوی ځخات وو. او په دیوان حافظ کښې دے الف نامے دی (۱) یوه پکښې دَ خپل حافظ الپوری عبد المقتدر دے (۲) دَ حافظ محمد معظم شاه دے (۳) دَ حافظ حضرت شاه دَ چوپړ ضلع مردان ده. (اشر)

(۱) مولانا محمد اسحاق متولد ۱۲۵۷ھ دده دوه ځامن وو۔ عبد الشکور مرحوم مولانا حافظ سید امین الحق (چه نن ورځ په جامع مسجد شنو پوره کښ خطیب دے)

(۲) مولانا محمد اسماعیل (متولد ۱۲۲۹ھ) د دوئ دوه ځامن وو۔ مولانا لطف الرحمان حافظ (مرحوم) مولانا حافظ فیض الرحمان زاد مجده۔ د مولانا لطف الرحمان درے ځامن وو۔ ظهور الحق۔ نور الحق۔ عزیز الحق او د مولانا حافظ فیض الرحمان یو ځوئ دے۔ سید عبد الحق سلمهم الله۔ حضرت مولانا سید اسماعیل رح حمّا (اثر) استاذ وو۔ "مناقب غوثیه" د دوئ تالیف دے۔

(۳) مولانا محمد اسرائیل شهید (متولد ۱۲۷۳ھ) داهغه نامور عالم دے چه د ۱۲۹۵ھ نه تر ۱۳۳۲ھ پورے د وادئ پیښور او افغانستان په ملاتو کښ په ټولو غزاگانو کښ شریک وو۔ او په روحانی طریقه سره حمّا (اثر افغانی) مربی او شفق دے۔

(۴) مولانا عبد الجمیل (متولد ۱۲۸۱ھ) فاضل عالم۔ ادیب او مورخ۔ واعظ او خطیب وو۔ د پاک وهند د نامورو عالمانو نه ئے درس لوستلے وو۔ "تذکرهٔ جمیل" د دوئ تالیف دے۔ دده درے ځامن دی۔ لطف الله۔ عنایت الله۔ حافظ امانت الله (درے واړه ژوندی دی) په دوئ کښ د (۱) لطف الله دوه ځامن دی۔ سلامت الله۔ شرافت الله (۲) د عنایت الله دوه ځامن دی۔ اسرار الرحمان۔ مشتاق الرحمان (۳) د امانت الله دوه ځامن دی۔ اظهار الله۔ طیب الله۔

(۵) مولانا عبد الجلیل (متولد ۱۲۹۶ھ) فاضل عالم وو۔ د منقول ومعقول درس به ئے کولو۔ د دوی درے ځامن دی۔ حافظ عبد النبی۔ عبد العلیم۔ عبد الغنی۔

**محمد سعید** د حضرت مولانا حافظ اخوند سید محمد د دریم ځوئ نوم محمد سعید وو۔ ډیر لوئ فاضل عالم او کامل عارف وو۔ د حضرت شیخ المشائخ فضل احمد معصومی المعروف حضرت جی صاحب د پیښور نه ئے په سلسله نقشبندیه کښ خرقه د خلافت حاصله کړے وه۔ د دوئ دوه ځامن وو۔ سید محمد میر۔ سید محمد غلام۔ د سید محمد میر دوه ځامن وو۔ محمد اکرم (لاولد) عبد الوهاب۔ او د

مولانا سید محمد غلام پنځه ځامن وو. عطا محمد. محمد اکبر. محمد اعظم. علی اصغر۔ سید سلطان۔

## سید حافظ محمد رفیع گیلانی

د حضرت مولانا حافظ سید اخوند محمد یونس گیلانی المعروف په خاوو بابا د هغه بی بی نه چه ام ولد وه. د هغې نه یوه کوم ځوی شوی وو. د هغه نوم حضرت مولانا حافظ سید اخوند محمد رفیع علیه الرحمة وو. د ده د ځوی نوم وو عبد الله د هغه ځوی وو محی الدین چه د هغه شپږ ځامن وو. نیاز الدین (لاولد) فضل الدین (لاولد) سراج الدین (لاولد) بدر الدین. محمد دین. میر ملنګ. په دوی کښې د حضرت بدر الدین درې ځامن وو. (۱) قطب الدین چه د هغه ځامن وو. عبدالحلیم عبدالعلیم. (۲) غفران الدین چه د هغه ځوی وو سید شهزاده (۳) رفیع الدین چه د هغه دوه ځامن وو. قیاس الدین. سید حسین. په دوی کښې بیا د قیاس الدین دوه ځامن وو. ریحان الدین. رحمان الدین. د ریحان الدین دوه ځامن وو. غالب الرحمان. کلیم الرحمان. او د رفیع الدین د دویم ځوی سید حسین یو ځوی وو. سید حافظ سراج الدین.

او د حضرت مولانا سید محی الدین د پنځم ځوی سید محمد الدین دوه ځامن وو. (۱) سید نجم الدین چه د هغه د ځوی سید شجاعت نوم وو (۲) سید زین الدین چه د هغه د ځوی سید غلام نوم وو.

لکه چه مخکښې ورته اشاره او شوه هر کله چه د گیلانی سادات و د دې بختور خاندان د نامور و علمی او عرفانی شخصیتونو په ذریعه د تیرو شوو درې سوو کالونو راسې په ټول شمالمغربی پاکستان کښې د فیوضاتو یوه لویه سلسله جاری ده. په دې وجه د دوی حالات په تفصیل سره دلته درج کړې شول. خدای پاک دې د دوی اجر لا نور هم زیات کړي۔

علیهم الرحمة والغفران۔

تذکرہ اولیائے پاکستان افغانستان

دشرق اوغربی پاکستان مشاهیر
اولیاء الله اوعالمانو حالات

# روحانی رابطه

او

# روحانی ترون

جلد دوم

مؤلف
عبدالحلیم اثر افغانی

مکتبه حضرت سید نجات قلندر علیه الرحمه
قریه هوتی سیدان